# له پیر روښانه
# تر باچا خان پورې
# د پښتنو ملي مبارزې ته کتنه

مولف

علي خان محسود

بسم الله الرحمن الرحيم

## کتاب پیژندنه:


د کتاب نوم :: له پیر روښانه تر باچا خان پورې د پښتو ملي مبارزې ته کتنه.

لیکوال :: علي خان محسود

خطاط :: سید محي الدین هاشمي

شمیر :: ۱۰۰۰ ټوکه

بیه :: ٤۰۰ روپۍ

**چاپچارې:**

د دانش خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه



قصه خوانی بازار، پېښور **Tel/Fax:091-2564513**

**E-mail:danish2k2000@yahoo.com**

# فهرست

| مخ | عنوان |
|---|---|

| عنوان | مخ |
|---|---|
|  | ۸۵۹ |

| عنوان | مخ |
| --- | --- |
|  | ۳۱۰ |

ډاکټر جلال الدین
اسلامیه کالج پېښور

# سریزه

د هر لیکوال دپاره دغه گرانه وي چې سریزه دکوم ځای نه شروع کړي. دغسې زه هم حق حیران یم چې سریزه دکوم ځای نه شروع کړم. خو بیا هم د یو ځای نه شروع کول پکار دي. زه د سریزې ابتدا د لیکوال د ژوند د یوې لنډې قیصې نه کوم:

د کتاب « د پښتنو تاریخ له بایزید روښانه تر باچا خانه » د لیکوال تعلق د منځنۍ پښتونخوا قطبي وزیرستان د پښتنو محسود قبیلې سره دے. دوی د موږ د میاشتې په لسمه نیټه کال ۱۹۴۹م کښې د قطبي وزیرستان په شاهور تنګي کلي کښې زیږیدلے دے، دوئ خپل ابتدائي سبق د کلي د پرائمري اولسم جماعت د ګورنمنټ هائی سکول ټانک نه پاس کړے دے. څوارلسم جماعت يې د ګورنمنټ کالج بنو ه اسماعیل خان نه کړیدے. بیا وروستوئي د سیاسیاتو په څانګه پېښور پوهنتون کښې داخله واخیسته په کال ۱۹۷۲م کښې يې په سیاسیاتو کښې شپارسم اوکړو، او بیا سمدستي په خیبر لاء کالج کښې داخل شو. په کال ۱۹۷۵ کښې يې د لاء کالج نه ایل ایل بي اوکړه. دا بنافلے د پښتونخوا په سیاسي هلو ځلو کښې یو ځلنده مقام لري.

الوسرې

دبناغلي د ليکلو په هکله به دا ووايو چې په وينا او ليکلو دواړو کښې يو رفتار لري دوی په ... پرومبی کتاب «جرمنيان بيا يو شول» باندې ډېره زياته خواري کړې ده، او لوستونکو ته يې هغه کتاب وړاندې کړے دے چې ډېر ښه ښه ليکوالان نه شي کولے. دغسې په دې دويم کتاب «دپښتنو تاريخ له باينيد روښانه ترباچاخانه» کښې دوی د پښتنو په تاريخ ډېر په يو نوره رابنکونکي انداز کښې رانځکښې کړي دی. د پښتنو په تاريخ کتابونه ليکلی شوي دي، خو دغه کتاب د تېر شويو کتابونو نه ډېر مختلف دے او هغه معلومات پکښې موجود دي چې په نورو کښې نشته. زه د ليکوال سره ډېر نژدې پاتې شوے يم، ما ډېر څه د هغوی نه زده کړي دي. د ليکوال د سوانح او فکر د پوهوالي اندازه هغوی سره د ناستې نه لګي.

زه د ليکوال په يو اړخ د دې احسان منديم چې هغوی د سرېزې د ليکلو دغه سهره ځما غاړې ته را واچوله او بل اړخ ته په دې احسان منديم چې هغوی لوستونکو ته د علم نه ډک او خوندور ليکونه وړاندې کوي. په اخر کښې د لاندينو شعرونو سره خپله سرېزه سرته رسوم:

خاونده ته و دانه کړې زموږ د يووالي حجره
يو ځای پکښې د ځانه کړې د پښتنو ټوله خوره
يو زړې يو سا يو شانې کړې د بل او بل پښتون لره
ديو وجود په شانې کړې يا خدايه دا ذره ذره
په موږ لار اسانه کړې
چې موږ يو سو ګل سره

—— دويم ——

# ځما څوخبرې

## ( سریزه )

که څه هم د دې کتاب نوم د پیر روښان نه تر باچاخان پورې دے مګر حقیقت کښې دغه نورتش سرېک یعنې سرسري یاد شوي دي ، د دې زیات ژوره برخه باچاخان دے. دغه نورهې په دې خیال ورسره مل کړي دي ، چې لږ تر لږه د پښتون ملت ملي غورځنګو نه دعام لوستونکي د پاره د پوهې وړ شي ، هغه خاصه طبقه لوستونکي چې د پښتون اولس د ژوند ژورتیا او تاریخ متعلق ژوره مطالعه لري کېدای شي ، د دوئ علمي او معلوماتي تنده په سمه توګه ماته نه کړي ، لیکن هغه کسان چې سرسري معلومات لري ، د دوئ په پوهه کښې به ربط او پیاوړتیا رامینځ نه کړي. ما دغه ته د ( CHRONOLOGY ) شکل ځکه ورکړے دے ، چې د ۱۵۲٦ نه تر ۲۰ جنوري ۱۹۸۸ پورې حالاتو باندې یو نظر اچولو موقع په لاس ورشي ، او دغه تاریخي تسلسل د دوئ په مغزو کښې ترڅه حده پاتې شي ، چې د دې منځ

کښې پښـتون ملت سره څه شوي او وشول، د دې دور - سياسي، فوجي، او اقتصادي وجوهات څه وو، او زمونږ ناکامه او کاميابۍ څه وې ؟

بحثيت ملت څومره هلې ځلې منظمې د مغلـو خلاف د روښـاني غورځنګ تر جنډې لاندې پيل شوې وې. لږ وخت دپاره شير شاه بابا دغه وېوه په هند کښې بله کړه، مګر روښـاني تحريک د مغلـو مقابله په اصلي تاتوبي لويه پښتونخوا کښې وکړه، که څه هم دغه غورځنګ اول مـذهبي جامه کښې و، مګر وروسته سوچه ملي خوځ يې خپل کړو، دغه غورځنګ نه صرف فوجي او سياسي هلې ځلې کړي دي، بلکې ثبوت ته رسيدلي دلا ئيلو په بنسټ اول ملي غورځنګ دے، چې دوئ پښتو ژبې ته شعوري پام وکړو، د - RESISTANCE LARATURE -» تا داو يې کښېـود، دغه اول غورځنګ دے چې پښتو ژبې ته يې ليکلې شکل ورکـړو، که څه هم پټه خزانه يادېږي، مګر پټه خزانه روستو هوتکي دور کښې ليکلې شوې ده. شعرونه يې د ځواني وخت پکښې راغونډ شوي دي، خو د اصلي او شلخې شکونو نه د پيرروښان او د دوئ د مريدانو شاعري او نثري وتلي دي، د حقيقت نه يې څوک هم انکار نه کوي.

د پښتـو ن پوهنه کښې نن هم سوچه « SECULAR »

سیکولر سیاست او هلې ځلې د مخالفت سره مخامخ کیږي، نوځکه
ځمونږ ملي مشرانو د پیرروښان نه تر باچا خان پورې دې
شي ته شعوري متوجي وو، د بابا د غورځنګ نوم خدائي
خدمتګار په دې پس منظرکښې کتل پکار دي، داځکه چې
مونږه همیشه د ښمن د دین موبین په نوم جنګولي او غولولي
یوو، هم دغه حال د پیر روښان وُ، چې د پیر بابا او اخوند
درویزه د پاره بې دینه او د اسلام نه باغي او مرتد او د نوي
دین الٰهی باني اکبر مغل باچا پاک وو، مګر پیر روښان چې
سوچه او خالص مسلمان وُ د دوئ د پاره ملعون وُ، دا ځکه
چې دلته ربړه حقیقت کښې مذهبي نه وه، بلکې سیاسي وه، نو
ځکه دوئ مذهبي جامه کښې سوچه سیاسي ربړه پټه کړه،
د خپل ملي مشر او غورځنګ خلاف یې د اسلام په نوم پښتانه
بې اتفاقه او بیا سره وجنګول. د مذهب په نوم کافر پرنګي
غازي امان الله خان جلا وطنۍ ته اړ کړو، او د باچا خان
پسې څه څه دراځي د مذهب په نوم و نه شوې.

خوشحال بابا هم د دې نه خلاص نه وو، یوه سوا یې،
داخوند درویزه لمسی میانور د شیعه دیوې فرقې تور په
لګولی و، چونکه خوشحال بابا د یوې مضبوطې قبیلې رهبر
وو، نوځکه مغلو د ده خلاف د مذهب په ځائ د پیسو او
منصبو نه کار واخیست، بابا ته یې خپل اولاد او پښتانه په لاس

کښې ونیول، مګر بابا اول جوت پښتون مشر دے، چې پښتو
ژبه یې نه صرف ادبي معیار ته ورسوله، بلکې ژبه یې د دښمن
خلاف اول ځل د پاره دیوې وسلې په طور استعمال کړه.
میرویس نیکه ته هم دغه د پښتون ملت کمزوري -
معلومه وه، نو ځکه یې د صفویانو خلاف د پاڅون نه
مخکښې حج وکړو، د مکې شریفې او مدینې د عالمانو نه یې
فتوی اخیستې وه، داځکه چې ده ته شعوري د پښتون
ملت د مذهب په نوم د غولولو کمزوري معلومه وه، پدې
خاطر یې دغه کار کړے وو، چې څوک د ښمن پښتانه راته
عین میدان جنګ کښې د مذهب په نوم تیر نه باسي، چې
صفویان مسلمانان دي، د دوی خلاف پاڅون غیر شرعي دے.
د لوی بابا احمد شاه ابدالي شاعري هم د روحانیت -
ترجماني کوي،
په افغانستان کښې د تره کي، آمین او ببرک او ورسره د دوی
استاذانو روسیانو د ناکامیو یوه غټه وجه دغه وه، چې
دوی خپل ملت و نه پیژانده، نه ضرورته یې د دوی -
مذهبي احساسات زخمي کړل، چې نتیجه یې څمورنږه
او ستاسې په مخکښې پرته ده، چې نه صرف د دوی د قبرونو
درک نه لګي، بلکې افغانستان په کنډر واله بدل شو، او سابق
سویټ یونین دړې وړې شو، دوی ځان تباه کړو، او

افغانستان هم، دا ځکه چې باچاخان افغاني مشرانو ته وئيلي وو، چې د مذهب سره چهیړ مه کړئ، د ملت سره تشدد مه کړئ، حکومت د توپ، جهاز او ټینک په زور په افغانانو څوک نه شي کولے، دغه کار تاسو په مینه او ورورولۍ کولے شئ، افغان ملت څوک په زور جنت ته نه شي بوتلے، مګر په رضا او په مینه دوزخ ته ځي.

«داجمل خټک دوینا مطابق دافغاني کمونستي خلقي مشرانو باچاخان ته دغه ځواب ورکړے وو، چې څوک دا سې خبرې مونږ ته کوي، هغه مونږه د ديوال نه دراوو، - چارماري کاوو يې». چې کوم تشدد افغاني او روسي کمیونستانو پیل کړے و، دوئ په خپله پګښې دوږ شول.

داسلام نه ګټه افغان ملت نه بلکې امریکې برطانیه او یورپ واخيسته، افغان ملت دوئ د خپلو ګټو دپاره داسلام په نوم دخپل ازلي دښمن روس خلاف وجنګولو، چې خپل کار يې په افغاني اسلامي مشرانو وکړو، بیا په نیمه ګهنټه کښې دننه د C.I.A او M.I.C اوموساد خفیه جاسوسي ادارو د دوئ نه دارو مار، دهشتګرد او « Terrorist » جوړ کړل، تش په نوم اسلامي مشرانو دافغان ملت سره هغه تشدد وکړو، چې دکابل ښاريان يې د ډاکټر نجیب الله پسې ارماني کړل، دوئ

هم دکمیونستانو غوښتنې خپل ملت ونه پېژاندو، تشدد یې وکړو، خپل کلي او ښارونه یې په توپونو او راکټونو وویشتل، او دکابل ښایسته او تاریخي ښارونه یې د ځمکې سره سم کړو، هم ددې تشدد وجه وه چې افغان ملت د طالب غوندې ځنګ سره ملګري شول، د اسلام ټهیکدارانو سبا ژوروکښې شپې کوي.

که د باچا خان فلسفه عدم تشدد باندې عمل وشي، نو ځما یقین دے چې، ځمونږ د هر مسائل حل کیدائ شي.

باید پښتون نوے نسل که هغه پښاور یا قندهار کښې وي، دافغان ملت دیوالي او سمسورتیا دپاره د خپل افغان ورور سره د عدم تشدد تر اصولو لاندې چلن وکړي. نو ځمونږه خاوره بیا د "The Great Game" په حلقه کښې راغلې ده، د امریکې او یورپ، چین او هند او نوے روس دعربو ایرانیانو او مرکزي ایشیا د تیلو په چینو بزکشي سره په تونده سره روانه ده، دغه د راتلونکې پیړۍ داقتصادي پیاوړتیا دپاره، یو بنسټي رول لوبوي، نو په نړۍ کښې درې غټ اقتصادي ZONS جوړیږي، چې هغه ډالر ین- او یورو زونونه یعنې حلقې دي، د درې واړو سړکې په تیل او ګیس دي، ځمونږ خاوره هم دلته پرته ده، باید لراو بر افغانان او په خاص توګه سیاسي او حکومتي -

اتم

مشران او کوغدونه په دې لویه لوبه کښې ویده او غافله نشي، بايه دکور دننه دیوبل سره مینه او رورولي، دښمن دپاره اتفاق جرگه، او صلاح مشوره وي، دغه یویشتمه پیړۍ دټیکنالوجي او معلوماتو پیړۍ ده. چې څوک ویده شول هغه د همیشه دپاره لاړل، باید موږ ژر خپل ملت داسلامي اصولو سره سره د نوې زمانې تعلیم او ټیکنالوجۍ په لاره سم کړو، اوس جنګ او تجارت د جنګ بدر او جنګ اُحد دوخت نه ډیر فرق لري، کوم قومونه او یا مذهبي جماعتونه چې په زړه زانګو ننګیدل غواړي، نه به صرف دوی دنوې زمانې تیزه اقتصادي او ټیکنالوجي او کمپیوټرې سیلۍ یوړرنه او نیست و نابود کړي، بلکې ورسره به افغان لر او بر ملت تباه کړي، دپښتون کور همیشه دپاره تشدد وران کړي دے.

دغه تشدد باید دعلم تشدد په ذریعه دمنځه لاړ شي، تر څو چې لر او بر افغان ملت خپله انرجي بچت کړي، دملي غربت او پس ماندګۍ او بې علمۍ خلاف جهاد وکړي، هر هغه قوم چې په خیټه موړ نه وي، او په جامه پټ نه وي او دکور او خونې خاوند نه وي، په حقیقت کښې آزاد ندے.

داځکه چې نن سبا غلامي دتیرو پیړیو نه فرق لري، نن سبا سامراجي نړۍ دعسکرو په ذریعه دچا په هیواد قبضه نه کوي، نن سبا لارډ صاحب واشنګټن او نیویارک، لندن

برلن، پیرس کښې ناست دے، دخپل اقتصادي قوت په
ذریعه د نورو هیوادونو وینې څښېي، اوچې وغواړي په لږ
وخت کښې دیو هیواد اقتصاد تباکولے شي، بغیر ددې نه چې
یو ډز ورباندې وکړي، نن ورلډ بنک او I.M.F دوه
غټې ادارې دسامراجي نړۍ په لاس کښې دي، ددې په
ذریعه نړۍ په اقتصادي توګه غلامه ساتي، روس نن هم
دومره اټیمي بمونه او میزائیل لري چې دغه نړۍ درې
ځله پرې تباه کولے شي، مګر دوئ په افغانستان بغیرد
دقیقي منصوبې نه ورننوتل، اقتصادي اړخ ته یې خیال نه وُ،
افغاني بزګرو کښې یې اقتصادي مالا داسې ماته شوه، چې د
مغرب په لنګر کښې اوس وګوره په ټیټې سترګې خورې،
دغه دهغې تشدد نتیجه ده چې دوئ دغریب افغان
اولس سره وکړه، چې نن دروېزګه ته سیخ شول،
نو دباچاخان عدم تشدد بنسټې مقصد دغه وو،
چې داسې افغان ورو زي چې کټه کولے او بیا یې سمبالولے
هم شي، په خیټه موړ، په جامه پټ او په سر یې چهت وي،
تشدد دشوروي اتحاد (سابق سویټ یونین) غونډې هیواد د
نظریې سره پوپنا کړو، نوموړه خو یو ورکوټی اوبې اتفاقه
قوم یو، نو مونږ ته خو دتولونه ضروري ده، چې دتشدد نه
ډډه وکړو، خپلې قوتې ګټې ته موخیال وي، نو را فقی مونه

ځمونږ د اسلام سره سوچه مینه نه غلطه فایده اخلي،
چې خپل کار په مونږه وکړي، بیامونږه داسې پرېږدي،
لکه نن سبا افغانستان، نن ځمونږ کلي تباه، ښارونه تباه او نهرونه
او ویالې ړنګې او هیواد د بارودو ماینونو نه ډک، ټوله
نړۍ د مهاجر افغانستان دکوندو یتیمانو معیوبینو نه
ډکه ده.

نن هغه خلک چرته لاړل چې مونږ یې په شا ټپولو چې
جهاد وکړئ، پرون مو ولیدل چې امریکې د افغانستان په
خوست ولایت باندې راکټونه وویشتل، دسو بشمار نه دافغانانو
په قربانیو خلاص مشول، اوس د شکریې له پاره مزائیل ولي.
مونږ ته پکار دي چې ملت او دین ددواړو حفاظت وکړو، دملت
حفاظت د ټولو نه ضروري دے، داځکه اسلام دانډونیشیا نه
راواخله تر مراکش پورې خور دے، تش ځمونږه ټهیکه نده.
باید دغه نورېږ هم غم وکړي، پښتانه تر ټولو نه سم مسلمانان
دي، خوپښتنو ته دشاباسي په ځای دغه نور عربې او
عجمي مسلمانان بد رد وايي، نن یوه افغان ته د مزدورۍ
دپاره شتمن عربې ملکونه ویزه قدرې نه ورکوي، داخو نکې.
مسلماني ده، باید مونږ ویښ شو، د لوئ بابا په لار روان
شو، خپل کور او قوم اول جوړ کړو، کورکښې اتفاق، مینه
او ورورولي راولو، دغه تش په نوم اسلامي ورورولي خو

مو ولیده چې دوئ مزې کوي ، دافغانانو په وینه یې بنګلې جوړې کړې .

راځئ چې په یوه چغه دې مرام ته روان شو :

چې یا یو کیږو ، ګنې و رکیږو . په درنوای .

# د پښتو لنډ تاریخي پس منظر

د یو قوم تاریخ لیکل ډېر ګران کار دے - دغه کار پوهه او ذریعې غواړي . له دې کبله چې نن سبا د ثابتولو له پاره سوچه او رښتینې تاریخي حوالې پکار دي . په مفروضاتو باندې تاریخ نه جوړېږي، بلکه یو رومان یا قیصه ورته ویلے شي . د یو بې علمه قوم تاریخ نور هم مشکل شي، داځکه چې دوئ په لیکلې توګه خپل زړغونتوب نه وي خوندي کړے او سینه په سینه له یوې پېړۍ یا یو نسل نه بل ته اوړي . او خاصکر د هغو قومونو تاریخ نور هم مشکل شي چې دوئ لویو لویو لارو او درو کښې آباد وي . چې هغو درو او لارو باندې مستقل ټګ راتګ وي، لکه د پښتونخوا درې او لارې چې د معلوم تاریخ نه د انسانې لښکرو او خوځېدنې لارې پاتې شوې دي،

چونکه هند کښې اقتصادي کشش و، نو وړې تر يې نسلونه او قومونه ږمونږ په لاره هندته تللي دي.
زمونږ دوطن مثال دهغې لکاړ يعنې خوړ دے چې هر وخت تږيانې اوبۀ د پاسه نه ښکته په بهېږي او هر وار دځان سره نوي کاڼي راوړي او زاړۀ بېت کړي. نو دې خوړ اصلي تل معلوموّل د بېره خواري غواړي. همدغه شان زمونږ په دروداسې انساني سيلابونه راغلي او هندته تللي دي او په مخه چې څۀ ورغلي دي دَ ځانه سره يې وړي دي. مګر د دروې نه اخوا دېخوا خلک دَ سيلابونو نه خوندي پاتې شوي دي.
او بله مسئله زمونږ د تاريخ دغه هم ده چې زمونږ په وطن کښې قسماقسم رسم الخطونه راغلي دي او بياورک شوي دي. پښتو ضروري نه ده چې نن سبا يې مونږ ليکو همدغسې پخوانۍ زمانه کښې ليکلې شوې وي. دغه نن سبا ليکدود خو داسلام وجه ده. له اسلام نه مخکښې هندي، سنسکرت، يوناني ليکدود او خروشطي ليک و، او ميخي ليک و، نو کېداے شي چې په هغو وختونو کښې پښتو په رواجي ليک باندې ليکلې کړې وي او مونږ نه خوندي وي. مګر مونږ يۀ داسې لاره کښې پراته يو چې مستقل

د جنګ حالات دے او نمونې ئې هم ډېر دي. په دې کښې ځينې ډېرې نازکې شوې دي. د هرڅهٔ فيصله زر غواړو - تار يخي پښتونه لمتهول صبر او ذرايعي غواړي. په دغه نمونه کارونه پوهنتونونه، اکېډمې او دآثار قديمه ادارې کولے شي. د بد مرغۍ نه مونږ تراوسه پورې د خپل پښتون واک لاندې داسې ادارے نه لرو چې دغه کار اوکړي. خو د دې باوجود د پښتنو داصل متعلق دوے نظريې موجود دي. يوه دعولی کوي چې مونږ ه سامي الاصله اسرايليان يو. هغه بله وايي چې مونږ آرين يو. ګوروچې دواړه ډلې څهٔ وايي.

د پښتنو مشهور تاريخ دان خداې بخښلے قاضي عطاالله خان په خپل کتاب دپښتنو تاريخ جلد اول کښې داسې نقل کوي: «د پښتنو د اصل نسل متعلق مختلف روايتونه دي. مستشرقين يورپ دهغوی اصل نسل متعلق مختلفې رايې لري. او هم په دغه وجه په يوه خاصه فيصله کن نتيجه نه دي رسېدلي. د دې برخلاف دپښتنو خپلو مؤرخينو دابيان کړے دے چې پښتون قوم په اصل کښې د يهود يانو د هغه لسو قبيلو اولاد دے کوم چې بخت نصر په بيت المقدس باندې د حملې کولو په وخت د هغوی دقول مطابق وسط ايشياته راغلې،

او د غور په غرونو کښې آبادې شوې او څه عربو ته لاړې ، د مکې شریفې په شاوخوا کښې آبادې شوې. دې لسو قبیلو د نیکهٔ نوم د مؤرخینو مطابق افغان و، او په دې وجه د هغهٔ اولاد د افغان په نوم مشهور شو.

په دوئ کښې بعضې مؤرخین وائي چې دا افغان د حضرت ابراهیم علیه السلام د بي بي هاجرې په نسو کښې یو نمسے دے او د حضرت اسمٰعیل علیه السلام دَ اولاد نه و. مګر بعضې دا وائي چې افغان د آرمیا زوئ و او آرمیا د طالوت علیه السلام ، چې د بني اسرائیلو بادشاو... او په قرآن کښې هم په دویمه سیپاره سورهٔ بقره کښې د هغې ذکر شوی دے ، نوئ و.

د ا قبیلې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم تر مبعوث کېدو پورې بدستور په خپل زوړ مذهب یهودیت باندې قائمې وې. حضرت خالد (رض) چې یو مشهور صحابي و ، هغه هم د دغې افغان قبیلې نه کېنلے شي.

چنانچه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې هرکله خالد رضی الله عنه مسلمان شو ، نو هغه خپلو عزیزانو ته چې د غور په غرونو کښې په قدیم الایام نه آباد وو ، د اسلام قبلولو دعوت ورکړو. ولې دوئ د اسلام قبلولو نه ړومبۍ یو جرګه د قیس نومي یو پښتون

د مشرى د لاندې داسلام دين د مطالعې او په هغه باندې د پوهيدلو دپاره د رباړ رسالت ته ولېږله.

رسول كريم صلى الله وسلم د دې جرګې ډېر قدر او عزت اوكړو او قيس له يې د « ملك عبد الرشيد » خطاب وركړو. دے ټولې جرګه هم په هغه ځاى كښې اسلام قبول كړو او رسول الله صلى الله عليه وسلم هغوئ ته ډېره دُعا وكړه او يو څو عرب مبلغين يې ورسره د تبليغ دَپاره واستول او تقريبًا په څلويښت كاله كښې دا ټولې قبيلې مسلمانې شوې. »

كېدا ے شي چې دغه رښتيا وي، مګر تاريخ ثبوتونه غواړي. آيا د رسول الله صلى الله عليه وسلم په حديثونو كښې داسې حديث شته چې د دې جرګې موجوديت پكښې وي، يا په قرآن كريم كښې يې ذكر وي. تر څو پورې چې ما ته معلوم دى داسې شئ نشته. او له بله دَغور وړ خبره دغه ده چې د اسرائيلي قبيلو شړلو او دَ رسول خدا د راتګ پورې ډېر وخت تېر شوے دے. دغه د مكې يهوديانو او د غور يهوديانو په مينځ كښې دغه رابطه څرنګه ثابت و سند ته وساتله شوه. (۲۰۰۰ ق.م) د حضرت ابراهيم عليه السلام كورنۍ د اور (UR) (عراق د علاقې نه كنعان ته لېږد نه اوكړه چې بيا ئې اولاد مصر ته لاړه، د فرعون غلامان شول. او بيا حضرت موسى عليه السلام (۱۵۰۰ ق م) كې بېرته كنعان ته راوستل.

اسرایلیانو ۱۰۰۰ ق م کې یوه مضبوطه پادشاهي جوړه کړه،
۹۲۲ ق م کې حضرت سلیمان علیه السلام وفات شو. په ۷۲۲ ق م
کښې شمالي اسرائیلي سلطنت د اسیر په قبضه کښې ورغی.
د اسور بادشاه ناړغون لیکي چې ما ۲۷۲۹۰ وګړي
اسرائیلي د ساماریا نه قیدیان بوتلل او د پنځوس جنګي
ګاډي مې د اسرائیلو نه قبضه کړل او شاهي فوځ ته مې
ورسپارل. لیکي چې زه ساماریا به له اول نه بیا جوړه
کړم. او دې کښې به زه هغه خلک آباد کړم چې کوم ما
مخکښې فتح کړي دي.
په ۵۸۷ ق، م کښې د بابیلون بادشاه بخت نصر د
یهودیانو سلطنت ړنګ ویجاړ کړو او د یروشلم بناریان
یې بابیلون ته قیدیان بوتلل. ددوئ شمېر تقریبًا دوه لکه
و. مګر په ۵۳۹ ق م کښې ایراني بادشاه بابل تباه کړو
او اسرائیلیان یې د قید نه آزاد کړل، او دوئ ته یې
خپل وطن ته د تګ اجازت ورکړو، یعنی د دوئ صرف
۴۸ کاله غلامي تېره کړه چې د غه دېر وخت نه دے،
چې دَ دوئ نړدې خپل وطن هېر شوے وے.
څېنې اوړ (۸۳) کښې پاتې شول. د ایران یو ګورنر
چې نوم یې (SESSBASAR) سیسباسر وو، دوئ
ته ډېرې پیسې ورکړې. د بیت المقدس جوړولو

دپاره یې دېر کومکونه ورسره او کړل . اوس داسې

کتل بکار دي چې رسولِ خدا حضرت محمدﷺ، د ظهور

او د یهودیانو د تباهۍ او شړلو سایسی وخت معلوم

کړو. دوئ په ۵۸۷ ق.م کښې بخت نصر شړلي وو یا

یې بندیان کړي وو. په ۵۳۹ ق م کښې د ایران پاچا دوئ

د بابیلون د غلامۍ نه آزاد کړل . دوئ ځینې خپل وطن

کنعان ته لاړل او ځینې اور (۱۱۳) کښې پاتې شول . په

همدې وخت کښې زمونږ مشران وایي چې ځینې یهودي

قبیلې غور ته لاړې آبادې شوې. رسول خدای حضرت

محـمد صلی الله علیه وسلم په ۵۷۰ م کال زیږن بدلے دے

د څلوېښت کالو نه پس وحي پرې راغلې ده ، یعنې

۶۱۰ م کال کښې . او په ۶۲۲ م کال کښې یې هجرت کړے

دے. او په ۶۳۲ م کال کښې وفات شوے دے ، نو دد ۀ

په ژوند کښې دغه جرګه تللې وه یعنې ۶۱۰ م نه ۶۳۲ م

په مینځ کښې . ۵۸۷ ق،م نه تر ۶۳۲ م کال پورې ۱۲۱۹ کاله

موده تېره شوې وه ، دغه دومره اوږده موده

کښې حضرت خالد بن ولید او د قیس په منځ کښې

رابطه څرنګې ثوندې وه . په بله معنا د مکې یهودیانو

او د غور یهودیانو چې (۱۲۱۹) کاله اوږده دیو بل نه

درېې زره میله لرې او بېدل څرنګې قایمه پاتې شوه

چې د رسول خدا له ظهور سره حضرت خالد بن ولید ته خپل خپلوان وریاد شول او دوی ته یې خبر ورکړو. دا دې خبرې ثبوت ته رسول ډېر ګران او ډېر آسان کار هم دی.

ګران په دې دی چې مونږ سره هیڅ لیکلی ثبوتونه نشته، تش قیصې دي. آسان په دې دی چې مونږ ته یوه لار پاتې ده چې هغه آرکیالوجي ده. چې د دولس سوو کالو د تېرېدو باوجود حضرت خالد بن ولید ته د غور د خپلوانو درک و. نو د دې نه معلومېږي چې د دوی په مینځ کښې به ډېرې ټینګې رابطې او تګ راتګ موجود و. او مکې یهودیانو او دغور یهودیانو په مینځ کښې به ضرور ودونه هم شوي وي او تجارت او تحفې به هم دیو بل سره بدل شوي وي. خوریان او ماما ګان به وو. د مکې ناوې به ضرور غور ته ګاڼه، دخوراک لوښي هم راوړي وي. همدغسې به دغور ناوې به د غور مېنګي او کنداوالونه هلته وړي وي او که چېرې دغور زمکه وکندله شي، همدغسې د مکې یا یروشلم زمکه هم نویز ضرور به د زړې زمانې دغور لوښي هلته او ددوی لوښي به په غور کښې مات کود ړي پراته وي. او که داومندل شول او ۵۸۷ ق م نه ۶۳۲ م پورې وختونو سره یې سموت

وخوړ، نو موږ ته د پښتنو د یهود یانو د نسل تیوري
theory تر ډېره حده پورې حقیقت ته ورسوله . او که
دَ غور لوښي کو دي او د مکې پروشلم لوښي کوډ ي
دیو بل سره سمون نه خوري ، نو دغه Theory یا قیصه
دَ تاریخ د نقطه نظره سمه نه ده ، چې پښتانه اسرائیل-
النسل دي .

دویمه قیصه قاضي صاحب د نادر افشار او دیوسفزو
لیکلې ده . لیکي : « بعضي مؤرخین د پښتنو د یهودی
النسل کېدو دا واقعه هم بیانوي چې څه وخت نادر
افشار (شاه ایران) په هندوستان باندې د حملې کولو په
غرض پیشاور ته ورسېدو ، نو د یوسفزو مشرانو هغه
ته د تورات یوه نسخه چې په عبراني ژبه لیکلې شوې وه
پیش کړه ، او نور هم داسې څیزونه یې ورته ښکاره
کړل چې کوم د روم د زمانې یهودیانو په خپلو عبادتونو
کښې استعمالول . چنانچه کوم یهودیان چې د نادر افشار
په فوځ کښې شامل وو ، هغوی دا ټول څیزونه وپېژندل
او د هغوی یهودی النسل کېدل یې تسلیم کړل ››

دلته قاضي صاحب د څه خاص تاریخي کتابې حواله
نه ده ورکړې . مانه دغه ټوله دججبري خبره ښکاري
دا ځکه چې نادر افشار خو د تاریخ د نقطه نظره پروت

تېر شوے دے ؛ يعنې ۱۷۳۹ م کال کښې پېښور ته را
کوز شوے وو. کېدا شي د يوسفزو مشرانو تورات
ورته پېش کړے وي ، خو دغه د پښتنو د خوی خصلت
نه برخلاف خبره ده . دا ځکه چې قبايلي معاشره کښې
کتاب ته څوک اهميت نه ورکوي او عموماً مبلمه ته
ګډ يا ګډان پېش کوي . او بل تورات خو آسماني
کتاب و ، دَ دې کتاب سره نسل او وينه هېڅ تعلق نهٔ
لري . د يو مغل په کور کښې قران شريف موندل کېدل
د دې دغه مطلب نه دے چې هغه نسلاً عرب شو.
يو مسلمان کېدا شي . او بله د توکې خبره خو دغه ده
چې د يوسفزو مشرانو يوغل ، بد معاش جاهل ترکمن
قلي خان ته تورات پېش کولو او خپل عالم ، ليکوال
او پوه زوم بابر ته يې نه سکاره کولو چې خپله تزک بابري
کښې ليکلې وای . او بل نادر افشار خو شوکمار وه ، هغه به
جواهرات پسې ګرځېدو ، کتابونه يې څه کول ، او څهٔ د
آثار قديمه د اثريکتر خو نه و ، چې د زړې زمانې انتهيکونه
يې ټولول . زما خپل خيال دا سې دے چې د حسن ابدال نه
تر پېښاوره پورې به يوسفزو جارتي قافلې لوټلې ، مغلو
به په دوی حملې کولې او وروسته يې ورته خټک واچول ،
مګر دغه لار د اورنګزېب په آخېري وختونو کښې ګډه وه

وه ، حو چې په ۱۷۰۷م کال اورنګزیب مړشو، نو د
مغلو بادشاهۍ آخري سلګۍ وهلې . ما ته داسې معلومېږي
چې هغه وختو نوکښې دکابل- بخارا- مشهد او دهلي
او پېښاور کښې کاروباري یهودیان وو . دوئ خپلې
تجارتي قافلې دَ بخارا نه دتې ډهلي پورې بوتلې . په
همدې قافلو کښې به مذهبي یهو دیان هم وو ، چې
تورات او نور مذهبي شیان به په سفر کښې ورسره
وو، داسې معلومېږي چې د اټک او چچ په مینځ کښې
یوسفزو دغه قافله لوټلې ده . دغه چې تورات بنډل
په سور و، دغه کچر هم دیوسفزو په لاس ورغلې ده
نو دوئ چې واپس راغلي دي ، نوکېدا ے شي دغو
یوسفزوغلو دکتاب (تورات) خپل دکلي خان ته ورکړي
وي او په دې شیو ورځو کښې نادرهم راغلے وي ، نو
دَ هغه بادشاه ته ورکړے وي . ګنې بله منطق لار ما ته
نشي لیدے .

اول داچې د دوئ په قول ۶۳۲م کښې ټول
پښتانه مسلمانان شول . او بل ۱۷۳۹ م کال پورې تورات
دَ خان سره سا تي او یو جاهل او غل بادشاه ته چې دَ دې
په قدر نه پوهېږي ، پېش کوي دغه راته افسانه ښکاري .
دویمه دَ دعوئ کوي چې پښتانه آرین دي

دي ، قاضي صاحب دغه نظر داسې نقل کوي : " دَ پښتنو
داصل نسل متعلق یوه بله نظریه د افغانستان مشهور
تاریخ نویس احمدعلی کهزاد د پښو خپل تاریخ (تاریخ افغانستان جلد اول)
کښې راښکاره کړې ده، چې پښتانه په حقیقت کښې د آریا
نسل یوه قبیله ده ، چې تقریبًا شپږ اووه زره کاله د
مسیح د پیدائیش نه وړمبۍ اول خو د خپل اصلي وطن
(وسط ایشیا) نه باختر ته چې ، د دریابي آمور او سردریاب
په مینځ کښې پروت یا علاقه ده ، راکوز شول . او د زرګونو
کلونو استوګنې نه پس هغوئ بیا دغې علاقې نه تقریبًا سوه
یا دوه زره کاله قبل د موجوده افغانستان ـ فارس او
دره سند لورې ته په ټولو ټولو کښې په ډېره موده کښې
ورو ورو خورېدل ، دې علاقې ته یې (آریانا) (ریګ ویدا)
ایریانه ویجه (اوستا) ویل .
د آثار قدیمه ټول عالمان د وروستني یونیم سل کاله
تحقیقات نه پس په دې خبره متفق شوي دي چې هم
دُ دې {باختري آریا} نسل به بنایې د باختر نه د قبلې په طرف
اول اول په قطبي یورپ کښې سکنډې نیویا ، سویډن ، ناروې
فن لینډ ، جرمني ، د ډینیوب سند په دره کښې د بحیره
اسود په قطبي علاقه ، په جنوبي روس او سایبیریا کښې
آباد شوي دي . او د نن ورځې د یورپ قومونو په اصطلاح

کیږي[ اینډو یورپین ] په نوم یادیږي .

د یورپ محققین او محققین وایي چې دې کښې هیڅ شک نشته چې (آریا) نسل عموماً د هندوستان نه چې واخلي تو عین تر مغربي یورپ پورې، په دې ټولو وطنونو کښې (ما سیوا د مشرقِ اوسطیٰ او عربستان نه چې په هغه علاقه کې د سامي نسل خلق اوسیږي) خوارهٔ شوي دي . او که څه هم د دې نسل بیل بیل قومونه او بیلې بیلې ژبې وایي ، ولې په حقیقت کښې که چرې د دې مختلفو ژبو په ژور والي سره مطالعه وکړې شي نو سړے په دې نتیجه رسیدے شي چې دا ټولې ژبې یو تر بله مشابهت لري . دا محققین رائے لري چې دا ټولې مختلفې ژبې چې په (انډو یورپین) قومونو کښې ویلې شي د (سانسکرټ) یا د (زند) ژبې نه راوتې دي . دَ دې نه ثابتیږي چې همدغه دوه ژبې دي چې آریا نسل په خپل وطن یعنې باختر کښې ویلې شوې »

دَ دې نظریې تائید مرحوم پوهاند (پروفیسر) حبیبي صاحب هم کوي او افغاني ټول عالمان وایي چې پښتانه سامي نهٔ دي، بلکه آرین دي ، داځکه چې پښتو ژبه آریایي ژبه ده .

د یورپ او خاصکر جرمني عالمان پښتانهٔ آریا نسل گڼي. یوه بله وجه دَ آریا دا هم کېدے شي چې په ننني وخت کښې

آريايي يورپي قومونه ترقي يافته دي ، نو دوئ د مال دولت او علم په ذريعه ډېر ژور تحقيقات اوکړل او په دې بوټول يوه خو لهٔ دي چې د آريا نوې ټاټوبے باختر ( چې دوی ډېر شول ، نو ځيني دکوملې، خيبر ،کُرمې او بولان په لاره هند ته لاړل. او د مقامي دراوړخلک يې جنوب دهند ته وشړل. اوځيني د ايشايي کوچک په لاره يورپ ته لاړل او ځيني مورني وطن کښې پاتې شول ، چې نن-سبا پښتانهٔ، تاجک ،بلوچ پاتې دي . هزاره - ترکمن اُزبک دغه اريا نه دي، بلکه دغه ترک يا مغل نسل دی .

د آريا د نظريې طرفدار مشهور تاريخ دان ظفرشاه کاکاخيل هم دے. مګر پښتو کښې د اسې عالمان هم شته چې هغه دا نهٔ مني چې پښتانهٔ آرين دي . حقيقت دغه دے چې د يهودی نظريه زړه او د آريانسل نظريه نوې ده . مګرتاريخ ثبوتونه غواړي . زړې اونوې ته نه ګوري . د آريا نسل تحقيق په علمي اوساينتفيک طريقې سره شوے دے . او د يهودی نسل نظريه زياته په روايتو باندې ولاړه ده. دغه حقيقت دی چې زموږ ژبه آرين ده . دغه هم کېدے شي چې پښتو به آريايي ژبه پښتو نده کړې وي ، لکه نن سبا د افريقې په تور په امريکه کښې مورنۍ ژبه انګريزي ده ، چې دغه يوه آريايي ژبه ده . د دې مطلب دغه نه شو

چې نور امریکایان آرین شول . دغه هم حقیقت دے چې کومې درې او سیندونه په ویدي سندروکښې یادشوي دي ، زمونږ په وطن کښې دي ، مګر دغه هم یو سند نهٔ دے . داځکه چې د پاکستان د جوړېدو نه مخکښې ډېر هندوان ، وکیلان او دکانداران په پښتون کښې اوسېدل نن دهغوئ کورونه او بالاخانوکښې پښتانهٔ آباد دي ، ددې مطلب دغه نهٔ دے چې ننني پښتون وکیل دېروني پیارے لال په بالاخانه کښې ناست دے ، دپیارے لال وارث یا خپلوان شو. په هم دغه شان دآریا په وطن کښې مونږ اوسو چې مونږ به آرین شو. مګر بیا هم د سامي نسل نه زیات آریا نسل دعوه کوونکي عالمانو تله ، د تاریخي ـ علاقایي اوژبني دلایلونو په ذریعه درنه ده. داځکه چې ... زړو تاریخ دانانو په یوشکل یا بل شکل د پښتون قبیلې نوم اخیستې دے. ژبه مو آرین ده ، علاقه مو آرین ده . حقیقت دغه دے چې مونږ پښتانهٔ یو ، ژبه مو پښتو ده . دغه نن چې څهٔ یو ددې د ښته کولو کوشش بېکار دے. نن سبا سوچه نسل یا ذات یوځای هم نشته . دغه ممکن دے زمونږه خاوره کښې ددې انساني سیلابونو نښې نښانې پاتې وي ، داځکه چې محسود وکښې داسې

هندوان دوکانداران وو،چې دوی اسلام قبول کړو ،
نن سبا دغه کورنۍ په ښیخا نو مشهور دی ، اوس د
د محسودو برخه جوړ شوي دي.
زما والد صاحب دوئ پېژني ، د دوئ نیکهٔ هندو
مړ شوی و. نن سبا خوئ بوئ نه دَ دوئ او محسود
فرق نهٔ شي کېدا ے. هغوئ نمونه مېلمه پال او ښاغلی
دي ، لکه دغه نور محسود. نو دغه شان زمونږ د
پښتنو سره دغسې لوبه کېدا ے شي ، خو اکثریت اقلیت
خوري ، نو د وخت په تېرېدو سره دغه نور خلک پښتانهٔ
شوي وي.

[۳]

# زموږ خاوره

زموږ د خاورې نن سبا واضح پولې دغه دي: د مرکزي ایشیا (تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان) سره د آمو سیند او د پامیر غرونه دي. د هرات، فراه او قندهار صوبې د ایران سره په برید پرته ده. د واخان او چترال په لاره د چیني مسلمان سیکیانګ سره لګیدلي یو، د مشرق اړخ ته د پنجاب خاوره ده، جنوب کښې د بلوچو سره پوله ده. د مارګلې نه تر چارسدې، پېښور، ننګرهار کابل، کاپیسا، بامیان، بلخ پورې علاقه په بودایي دور کښې د لوئ تهذیب مرکز و او د ګندهاري تهذیب په نوم پېژندلې شوې ده، چې په ګندهارا آرټ مشهور ده. زموږ دغه خاوره د هند په دروازه کښې پرته ده. د هند د پوال او دروازې زموږ غرونه او درې دي. چې چا هم زموږ زور مات کړې ده بیا هند ته نیغ رسیدلې ده. داځکه چې زموږ د وطنه سنګته د هند قدرتي دفاعي کمربند شته

تر یوریې قومونو نه مخکښې ټولې حملې په هند باندې شمال مغرب نه شوې دي. یو اړخ ته قدرتي دفاعي همالیه دېوال دے - بل اړخ د سمندر سره دے او بل اړخ ته یې د ایران او بلوچستان ریګستاني زمکه ده، چې هیڅ اقتصادي کشش هم نه لري.. همدغه وجه وه چې د هند د نیولو یوه لار وه، چې هغه زمونږ خاوره وه.

دې خاوره باندې رنګ په رنګ تهذیبونه، قومونه، نسلونه او حکومتونه تېر شوي دي. په دې درو او غرو کښې د آریا سندرې اوربدلې شوې دي. د هُن د اسپو دکې پار، خیبر، کُرم او ګومل شاهدې دي. دلته شاهپور ایرانی نوکر شاهي پالې شوې ده او ساسانی دبدبه یې لیدلې ده. دې خاوره کښې ډېرې تهذیبي خزانې پرتې دي.

زمونږه په خاوره بلخ کښې حضرت زرتشتره زېږېدلے دے چې پارسي مذهب تر ننه پورې موجود دے، که څه هم تعداد کښې لږ وي. د دې پېغمبر د تبلیغ په وجه ایران د ترقۍ لوړې پوړۍ ته ختلے و. او بل بدهـ مت زمونږه په خاوره باندې د عدمِ تشدد دین د حضرت ګوتهم بدهـ د ظهور سره خور شو، چې د دې مذهب ډېر اثرات نن هم کاپیسا، ټېکسلا، پېښاور، چارسده، تخت بهائي

اړه (جلال آباد) او سوات کښې لیدل کېږي، اولوئ مرکز یې بامیان و، څو هډو د پېتو لو او ورکولو ځ دے. دغه مذهب یعنې د ین منونکیو زمونږ خاورې ته د علم، تهذیب او انسانیت مرکز جوړ کړو. هم دَدوئ په برکت دغه دین چین، منګولیا، مرکزي ایشیا، تیبت او د ټول مشرق بعید هېوا دونو قبول کړو، چې ترنن ورځې پورې یکښې ژوند ے دے. بیا دغه دعدم تشدد دین، دمینې او انسانیت نه ډک مذهب د خود سرو او لیوانو تشدد پسند هندي بو مبرانو د لاسه تباه شو اوچې څه لږ ډیر پاتې و، هغه مرکزي ایشیا او افغانستان کښې اسلامي سیلاب په وجه تباه شو. چونکه اسلام د بت پرستۍ خلاف مذهب و، نو ځکه د بدهـ دمذهب قیمتي بتان اوعبادت خانې مولاګانو وسوزولې. دو مره مذهبي لیونتوب وچې حد یې نۀ و. هغه وخت خو پرېږده، پرون د جلال آباد دادې اثرات مولیٰ ګانو مات زامات کړل، چې دغه زمونږه ثقافتي میراث دغو لیونو خراب تراب کړو، او د یورپ په سوداګرو یې خپل اثرات د پیسې په خاطر خرڅ کړل، نو د هغه اسلامي لښکرو نه به څۀ ګیله اوکړې چې دوئ اول سر کښې زمونږ خاورې ته راننوتې وو. مولاچېر ته تعمیري کار نۀ شي کولے، چې کوم وطن یا هېواد کښې مذهبي جنون وي هغه هېواد اوخلک

هیڅ کله ترقي نهٔ شي کولے؛ داځکه چې مذهبي جنون د منطق لاره بندوي او بغیر منطق نه ترقي نهٔ شي کېدائے.

زمونږ خاوره د معلوم تاریخ نه د جنګ او جدل میدان ګرځېدلے دے. دې خاورې قسما قسمه نومه مونږلي ده یو وخت یې نوم "آریانا" بیا «باختر»، بیا "خراسان" بیا "پښتونخوا" او نن سبا "افغانستان" او مقبوضه «افغانستان» دے (یعنی کوزه پښتونخوا).

د مقدونیه سکندر اعظم نه یې را واخله (۳۲۳-۳۳۲ ق.م) تر پرون روسي یلغار (دسمبر ۱۹۷۹ء) پورې د پردو لوبغالې، خپلې جنګي لوبې زمونږ په خاوره کړې دي، خو څوک هم په دې کامیاب شوي نهٔ دي چې د دې خاورې او سېدونکي (پښتانهٔ) ورک کړي. نن نه ساساني ایراني شته، نه سکندر اعظم یوناني - او هن، چنګیز، مغل او صفوی، پرنګی او روسی شته. دوی وار په وار زمونږ خاوره او لس د خپلې تورې او نېزې، توپې، جهاز، میزائیلو - نشان جوړ کړے دے. مګر دوی نن ورک دي - مونږه په خپل ټاټوبې باندې آباد یو.

د سکندر اعظم متعلق ډېرې قیصې مشهورې دي. د پښتنو د بهادرئ او بې اتفاقئ یوه قیصه دلته لیکم:

وایې چې څه وخت سکندر اعظم د ایران خلاف جنګ شروع کړو ، نو ایرانی یو څو نو شکست پسې شکست وخوړلو. په هغو وختونو کښې زمونږ خاوره د ایرانی سلطنت برخه وه ، چې څۀ وخت سکندر زمونږ خاورې ته راغے ، نو د سختې مقابلې سره مخامخ شو . د لته اول ځل د پاره زخمي شو . پښتنو قبائیلو نۀ هغه مخکښې هند ته پرېښودو او نه روستو یونان ته . تقریبًا دوه دونیم کاله د غه کښې روانه وه . دده مور ډېره سیاست دانه ښځه وه . دې سکندر ته قاصد راولېږلو چې څۀ چل دے ، چې پۀ ټول فارس د یې ونیولو ، دلته یو کوهټ کښې سنګېل یې . قیصه کېږي چې د ه مور ته خط ولیکلو چې داسې نمونه خلقو سره مخامخ یم چې دورځې او دشپې مو په آرام نه پرېږدي . د ورېږ غونډې دي نیول یې مشکل دي . وایې چې مور یې بیل قاصد ورولېږلو ، دسکندر اعظم نه یې پښتانه قیدیان غوښتي وو ، چې مونږه ددوئ د نفسیاتو او عادتونو د یوناني عالمانو په ذریعه مطالعه اوکړو ، چې دغه کومه نمونه مخلوق دے .

په هغه زمانه کښې یونان ډېر رسېدلے ملک و ، د عالمانو او فلاسفهؤ نه ډک و . وایې چې سکندر ورته شپږ کسه پښتانۀ قیدیان واستول . یونانیانو ورته

يوه وړه خاصه کوټه جوړه کړې وه، چې هغې کښې شپږ غاړونه يعنې تاکونه وو، چې هر تاک کښې (په غاړ کښې) به يو عالم ناست وه د دوی ټولو د ناستو پاستو، خبرو اترو او حرکتونو مطالعه يې کوله. ددې تاکونو داسې جوړوو چې دوی نه ليدل چې څوک يې څه کوي.

قيصه کېږی چې يوناني عالمانو به هره ورځ د سکندر مورته د هغې ورځې رپوټونه ورکول. يوه ورځ عالمانو جرګه وکړه چې نن شپه د دوئ اتفاق کوړو چې د دې خلق کښې څومره اتفاق دے.

قيصه کېږي چې دوئ ته يې يو پلنګ راوړو. ترجمان ورته ووئيل په تاسو کښې چې څوک مشر وي هغه به پکښې ويده شي. دوئ ورته ووئيل چې ډېره ښه ده. چې د خوب وخت راغلے دے، اول يو پښتون پلنګ ته ورختلے دے، چې زه مشريم، هغهٔ پسې بل ورپورته شوے دے د پلنګ نه يې راګوزار کړے دے چې ستا پلار مشر وو څه؟ دغه شان ددوئ به دې اتفاق را نغلو چې څوک د پلنګ حقدار دے په دے پلاريعنې جنګ جهګړه کښې يې پلنګ مات کړو، خو ددوئ مشر معلوم نهٔ شو.

صبا چې د سکندر مورته لاړل د ټولو عالمانو په اتفاق سره دغه فيصله وه چې دغه خلک ډېر خودسره دي

هر یو ځان مش اولیدل کېږي . له دوی نه دخلاصېدو یوه لاره شته هغه دغه ده چې سکندر د دوی جرګه راوغواړي د ټولو سره دې داسې سلوک وشي چې چا ته ځان ټیټ محسوس نه شي .

قیصه کېږي چې سکندر به دې عمل اوکړو، د پښتنو جرګه یې راوغوښته ، دوی سره یې دبرابری په اصول عمل وکړو وشوه ، سکندر اعظم بیا سکېنې ټولې پښتنې پېغلې سره واده هم اوکړو. همدغه شان یو نانیانو د پښتنو نه نه صرف ځان خلاص کړو ، بلکه ورسره لښکر شول ، راجه پورس یې ورته وړ بالیو .

یوه بله قیصه کېږي وایي چې نه پلنګ ندو، یونانیانو دَ پښتونخوا نه څه اندازه خاوره راوړې وه ، نو عالمانو دغه قسست کولو چې قصور پښتنو کښې دے اوکه دَ دوی په خاوره کښې . نو بهرحال دوی سره دېر خوارۀ وو ، خو بیو ه ورځ عالمانو دغه دپښتونخوانه راوړې خاوره دَ دوی په کوټه کښې و شیندله ، چې څه رنګې دوی کوټې ته داخل شوي وو یو دبل سره په جنګ شوي وو .

که پلنګ وو او که خاوره ، خو ټر نن ورځې پورې مونږ د خود سري او بې اتفاقۍ د مرض نه خلاص نه شو .

بله یوه درد ناکه قیصه د چنګیز خان متعلق مشهوره ده .

هغه داسې چې چنګيزخان د پښتنو په کليو حمله کړې وه.
مغل ډېر ظالمان وو. پښتنو د مغلو سخته مقابله وکړه، مګر
مغلي سيلاب ته ټينګ نه شول. دَ دوئ بال و بچ غرو او درو
کښې خوندي شوي وو، خو مغلي جاسوسانو معلوم کړي وو.
چنګيزخان مغلي لښکر ته حکم وکړو چې دوئ قتل کړي.
مغلي سوارو د پښتنو ښځو او ماشومانو قتل عام شروع
کړو. هيڅوک يې ژوندي پرې نښودل. چې فوج واپس
شوے و، نو د شپې چنګيزخان د عسکرو نه تپوس وکړ، چې
د چا په چا رحم راغلے دے. وائي چې يو مغل سپاهي ورته
ووېل، چې هو خان صاحب زما راغلے دے. خان ورته ووېل
چې هغه څۀ رنګې؟ مغل سپاهي ورته قيصه شروع کړه، چې
ما موږ د افغانانو ښکار کولو، نو يو ځاي کښې ښځه مړه
کړاے شوې وه، مګر ماشوم ژوندے و. د مور په تيونو
باندې يې خوله تپوله، دَ روډلو کوشش يې کولو، ما يې
تماشه کوله. بيا مې د نېزې په سر د ماشوم خولۀ د تيې
نه لرې کړه. ماشوم د نېزې سر په خوله کښې ونيوه، چې شايد
د غه پيۍ راکړي. د څه وخت د پاره ماشوم نېزه اوروډله.
بيا ما په نېزه زور وکړلو، د ماشوم سرې وچوخېدلو. په
دې مې لږ ترس راغلو.
وائي چې چنګيزخان سخت په غوسه شو او مغل سپاهي ته

ته یې وویل چې ته د پر نرم زړے یې. ته مغل ننشې کېدا ے
چې د پښتون ماشوم په دې نمونه مړګ باندې د ستا زړه ۀ
رحم کړے و. سپاهي یې هم هلته قتل کړو.

زمونږ خاورې او هېواد د زمانې د پرې سرې تو دې لیدلې
دي. که چرې خیبر، کرمې او ګومل ے خبرې کولاے شوې
نو دوی به څه څه نه ویل.

زمونږ خاورې درې مشهورو مذهبونو ته په خپله سینه
کښې ځائ ورکړے دے. چې اول آتش پرست و. دویم
بدھ پرست و، او دریمې اسلام چې تر نن پورې موجود وو. زمونږ
په خاورې سپین هن « speen Han »یونانیان، کوشانیان، ایرانیان،
عرب، ترک، مغل، صفویان، پرنګیان ورسیان او نور نسلونه
او قومونه تلي راغلي دی. د اسلام نه مخکښې د کوشانیانو د
زوال نه پس زمونږ وطن په تاریخي لحاظ په تیارهٔ کښې پاتې
شوے دے. چې څهٔ وخت اسلام راغے نو اول سر کښې د عربو
غالبه وه، مګر په ژبانې توګه د وئ مونږ عرب نهٔ کړاے شو.
لکه څرنګه د وئ مصر، شام او د افریقي د خلکو ژبه ورکه
کړه او په فوجي توګه هم دوئ د پر مېړني نه وو. مګر مذهب
زمونږ د بدھ نه اسلام شوے چې تر نن ورځې پورې پر مونږ
باندې د سامي مذهب غلبه ده. اسلام مونږ تش سرسرے
منلے دے، چې کوم ځائ کښې پښتونوالے او اسلام تضاد

راځي ، نو اسلام د پښتونوالي مقابله نشي کولے . اوخاصکر اقتصادي مسايلو کښې پښتون د سره اسلام نه مني ، په خوله اسلام - اسلام کوي ، مګر عمل کښې د اسلام بيخ او باسي .
پښتون مونځ ، روژه او غزا دَ ټولو مسلمانانو نه سبه کوي ، دا ځکه چې مونځ او روژه باندې څهٔ پيسې نه خرڅ کېږي ، مګر په کوم ځاى چې اسلام د پښتون نه د اقتصادي قربانۍ غوښتنه کړې ده ، لکه زکواة ، سرمايه او خور لور ته حق ، دلته بيا پښتون ړوند شي . غزا ځکه کوي چې غزا کښې پيسې دي ، مالِ غنيمت دے . ډېر خلک وائي چې اسلام پښتنو په جمع منلے دے او پښتانهٔ ټول مسلمانان دي . زما خيال دے چې د اسلام او پښتنو ډېر خوږه سره نښ دې دي . اسلام يو قبائيلي مذهب دے ، سيده ساده د عام سړي ورته عقل رسي . او بل پښتنو به د اسلام نه ځکښې هم شوکې کولې . کېداے شي چې د بده مذهب کښې غزاګانې نهٔ وې ، عربو قبائيلو هم لوټ مار کولو ، اسلام ورله دغه لوټ مار اسلامي کړو او د مال غنيمت نوم يې ورکړو . نو پښتنو خيال اوکړو چې دغه نو ډېر ښه مذهب دے . مونږ هسې هم لوټ مار کاوو ، چې صرف مسلمان شو نو دغه لوټ مار د غزا تر نوم لاندې جاري ساتل پکار دي . چې کامياب شي نو غازي او د مالِ غنيمت خاوند شوے اوکه مړ شوکې ، نو شهيد شوې

همدغه وجه مانځ سنکاري چې په جمع اسلام قبول کړو. او
بل په اودس ، روژې او مونځ باندې خو يې څرخ نه
کېدو ، نو دوئ خيال اوکړو چې مونږ خو ځذيه عربو
ته ورکوو، سنه به داوي چې مسلمانان شوو ، زکواة
او سر سايه خو د خدائ کار دے - که څه بې پرهيزي او شي هم
نو خدائ مهربان دے . تر نن ورځې پورې پښتون خپل
خپلوان په دې نهٔ دے مړ کړے چې د رواج وايي، غله کوي
يا زکواة نهٔ ورکوي ، يا د خور لور حق خوري . مګر اقتصادي
مسئله يې چې راشي د خپل مورنۍ ورور دمرګ نه ستړکه
نهٔ کوي . او بل په پښتنو کښې دَ جرګې سيستم و ، همدغه
سيستم به عرب قبائيلو کښې هم و . رسولِ خدا شوړیٰ
ورته اسلامي کړه . همدغسې زمونږ جرګه ومنلے شوه ،
خو پښتون اسلام صرف هلته مني چې اقتصادي تاوان
ورته نه وي يا د پښتونوالي سره به ټکر کښې نه راځي. چې
څهٔ وخت رياست دير به ۱۹۶۹ء کښې پاکستان کښې ورګډ
ګړاي شو د سياسي ګوند ونو اجازت ورکړے شو ، نو تاريخ
کښې دغه اول ځل و چې ديروالو دُ ووټ حق واخيستو،
نو خلکو کښې ډير شوق و، نوے شئ و ، نو ډير خلک به
جماعت اسلامي کښې شامل شول. زمونږ دپښتنو مشر جناب
خان عبدالولي خان به ويل چې ما ديو بوډا سړي نه تپوس

په لاس جنګ وکړو، د جنرال رابرټ فوځ دومره وارخطاء شو چې دوئ نه صرف ماتې وخوړله، بلکې افغاني مجاهدینو نه په منلوه شول، روستو جنرال محمد جان وردګ ور پسې و، جنرال رابرټ ځینې په منلوه د ( SHEYPOOR ، چهاونۍ ته ننا وتو، او پناه یې واخیسته ددې واقع نه د تیلی ګراف په ذریعه هندي حکومت خبر کړاے شو، چې کابل کښې دغه حال دے نو واشراې فوراً د قندهار نه جنرال ( stewart ) ته او د- جلال اباد نه نورو فوجونو ته حکم ورکړاے شو، چې دجنرال رابرټ کمک ته فوراً ورسي، پرنګې فوج په شیرپور چهاونۍ کښې قلعه بند و، او افغاني مجاهدینو قلعه بند کړي او محاصره کړي وې او ښ دې وه چې ددوئ هغه حشر شوے وایئ چې کم جنوري ۱۸۴۲ د جنرال، الفنسټن د فوج شوي وو، مګر دوئ د قتل عام نه بچ کړاے شول، د قندهار نه جنرال( stewart )او دجلال اباد نه برطانوي فوج راغئ، دوئ یې بچ کړل، تول افغانستان ورته سور اور شوے و، نو دوئ کوشش کولو چې څوک افغاني شهزاده پیدا کړي، او دوئ نن ته زره دافغانستان نه ووزي، اوله منسوبه د پرنګیانو ناکامه شوه، چې افغانستان په وړو وړو امارتو کښې تقسیم، ددوئ خیال وچې هغه خبرې لاړې، اوس پکار دي چې موښ هند ته روغ لاړ شو، نو د عبدالرحمٰن خان سره یې رابطه جوړه کړه، هغه دبخارا نه راغئ،

اوکړو چې بابا نوري پارټۍ خود بړېږي دي نو تاسې ولې جماعت اسلامي کښې شامل شوي يئ ؟
ولي خان وييل چې بابا راته ځواب را کړو چې ځکه پکښې شامل شوم چې صاحبه هم جماعت دے هم اسلام . نو زما خيال دغه دے چې پښتون ځکه مسلمان شوے دے چې هم غزا شوه ، هم مالِ غنيمت ، هم شهادت شته هم غازيتوب نقصان د سره پکښې نشته.
بيا افغانستان کښې قومونه روړو د بغدادي خليفه ګانو خلاف را پورته کېدل او مرکزي ايشيا کښې ددوی اول دولت جوړ شو . د عربو زور او اقتدار رو-رو مقامي WARLORDS خپل کړو . په دې کښې څنې ترک غلامان وو ، چې د دوی ورسره د پښتنو په زور د غزنوي دولت بنسټ کېښود . چونکه غزني د پښتنو اصلي ټاټوبې "غور" ته نژدې و ، نو ځکه د غزنوي دولت فوځې چارو کښې د پښتنو ډېر لاس و . مګر دربار باندې د ساساني د اسلام نه راښتېدلي نوکرشاهي قبضه وه . همدغه وجه وه چې فارسي په موجوده ايران کښې نه بلکې افغانستان کښې غټه شوه چې "شاهنامه" يې سنه مثال دے . افغانستان کښې د اسلام واک د عربو په ځای د ترکو، پښتنو او پارسيبانو په لاس ورغے . که څه هم عربو اول سر کښې د محمد بن قاسم فتح سندهـ په ذريعه غوښتل

چه هند ته اسلام خور کړي ، مګر دوئ په دې کښې کامیاب
نهٔ شول . صرف د هند د سمندر د غاړې خلک د عربو
سمندري سوداګرو په ذریعه د اسلام نه لږ لږ خبر شول
مګر د محمود غزنوي تر راتګه پورې اسلام د هند په معاشرتي
سیاسي او فوجي ژوند کښې رول نهٔ درلود . ولې په دې
چې د غزنی سره جخته علاقه کابل ، لوګر ، ننګرهار ګندهارا کښې
د پال خاندان حکومت و . د وئ د محمود غزنوي سره ډېر
جنګونه کړي دي . خو آخیري او فیصله کن جنګ (۱۰۰۹ع کال)
کښې د پېښاور جنګ و ، چې راجه جي پال ماتې اوخوړه او
بیا محمود غزنوي مشهورې حملې په هندوکړې . هندوان
د بې اتفاقۍ په مرض اخته وو ، نوځکه دوئ ته ټینګ نشول ،
مګر باوجود د دې حملو محمود غزنوي اسلام هند ته
راکوز نهٔ کړے شو . په وطن کښې د پښتنو فوجي بیوراکراسي
او پارسیبانه سول بیوراکراسي په مینځ کښې شک اوبې اعتباري
وه او پارسي نوکرشاهي په دې بره شوه چې غزنویان په
زور پښتانهٔ د دربار نه اوباسي ، چونکه پښتانهٔ غور کښې
ورته ناست وو ، دوئ ځنې نه ځهٔ تجربه حاصله کړې وه ، نو
د غور پښتون مشر بابا باندې د داسې سلوک ډېر سخت
رد عمل اوشو او نتیجه یې دا شوه چې شهاب الدین
محمد غوري د غزنوي دولت لوټه په لوټه پرې نسوده

او دوئ ته یې «جهان سوز لقب ورکړو. دا ځکه چې
ده د ترک غلامانو او پارسیانو د مزې او چړچې
جهان "غزني" وران کړو. بیکار خودغه و وچې ورته
«غزني سوز» یې ویلي واے. ددې تباهۍ ذمه وار
پخپله غزنوي شاهي کورنۍ او ورسره تړلې پارسیانو
نوکرشاهي وه، چې دوئ دَ پښتنو سره سپک چالان
شروع کړو. با وجود ددې چې پښتنو د محمود غزنوي
د سلطنت پرټینګولو او ستره ولوکښې بنسټي کردار
اداء کړے و. همدغه غوري پښتانهٔ وو چې دوئ هند
فتح کړو او ډهلي یې ناستون وګرځاوه، چې دیرنګي
تر راتګ پورې ډهلي د هندي مسلمانانو په لاس کښې
پاتې شو او د غوریانو، غلامانو، سیدانو، غلجیانو،
لودهیانو په لاس کښې و. مګر بیا د ۱۲۰۰م کال نه تر ۱۲۲۶م
کال پورې چنګېزي سیلاب زمونږ پر اصلي خاوره راغلو،
زمونږ اصلي ټاټوبئ (غور) مغلو تباه کړو. د پښتنو
قتل عام یې وکړو او تر ننه ورځې پورې د غور علاقه زمونږ
په لاس کښې رانغله. نن هم پکښې د چنګیز مغلي خپلوان
(هزاره) اوسېږي. غور د پښتنو د پاره داسې دے لکه
د یهودو د پاره خپل زوړ وطن فلسطین دے. چې دوئ
ورته ساماریه او وجود یه وائي.

دغوریانو نه پس بیاتر لود هیانو پورې دپښتنو سیاسي، اقتصادي اوفوجي میدان هندوستان و. زموږ په خاوره باندې ترک ـ مغل په یو شکل او یا بل شکل کښې واکدارانت پاتې شول، مگر د پښتنو زوړ د بې اتفاقۍ مرض په وجه موږ ه په ۱۵۲۶م کښې د هند واکداري هم وبایلله. دا ځکه چې دولت خان لودهي والي پنجاب لاهور او زموږ باد شاه ابراهیم لودهی د بې اتفاقۍ دا نتیجه شوه چې مغلي بابر په پاني پت کښې دَ پښتون قوت د پښتون په زور مات کړو. موږ په پاني پت کښې مات سروږ پراته وو او مغل تخت باندې کښیناستل. دبابر فوج د موجوده پښتونخوا او افغانستان په خلکو مشتمل و او هندي فوج کښې هندي پښتانۀ وو. مغل بابر دواړه وجنگول، خان یې بادشاه کړو. بابر چې دیوسفزو زوم و، ورنه بیته وه چې دۀ بادشاهي دچا نه او دچا په زور اخیستې ده. دده عمر ډېر نۀ و، مړ شو. وروسته یې زوی همایون بادشاه شو. مگر دې وخت کښې هندي پښتنو کښې د فرید خان غوندې باهمته او مغرور افغانان ژوندي وو. دَدۀ دعقل او سیاست په زور هندي پښتنو خپله غلطي محسوسه کړه. د دوئ مشرکرۍ لاندې راغونډ شول، هندي مغل یې دَهند نه وشړل او دپښتنو عزت یې بېرته ځای کړو.

او همایون راته ایران کښې مفرور کښېنیا ستو، دوخت
انتظار يې کاوهٔ. دپښتنو بدمرغي وه چې شېرشاه
بابا په ۱۵۴۵ء کښې دیوې ناګهانې چودنې په ذریعه
زموږ نه لاړو. دَ دوئ د ټګ نه پس پښتانهٔ بیا دچینجو
غوندې یو په بل اخته شول. چې دوئ خبر شول همایون
مغل بېرته ډهلئ اخیستې و.

چې کوم قوم کښې ورور ولي، اتفاق او محبت پاتې نهٔ شي
نو خدای ځ هغه ذ لیلوي. هم دغه لوبه زموږ سره وشوه
او س زموږ ازلي دښمن مغل هم کابل او هم ډهلئ هند
کښې زموږ واکدار شو. د غلامۍ او ذلالتونه ختمېدونکې
دور شروع شو. د دې عذاب سره سره زموږ هرات او
قندهار ي وړونه د صفوي ایراني دولت لاندې راغلل اوقندهار
دَ مغلو او صفویانو د غوبل میدان جوړ شو، چې کله به
دَ یو په لاس کښې و او کله د بل. زموږ ه موږ نخه خاوره
او س دوه دولتونو کښې تقسیم شوه، چې هغه یو مغل او
بل صفوي و.

# د مغلو او صفویانو خلاف
# د پښتنو مشرانو هلې ځلې

چې څه وخت ۱۵۲۶ء کښې پانی پت کښې پښتنو لودهیانو د مغلي بابر نه ماتې وخوړه، ابراهیم لودهي شهنشاه هند میدان جنګ کښې ساه ورکړه، نو دَ دې سره د پښتنو عزت اقتدار او پت هرڅه ګډ وډ شول. که څه هم شېرشاه بابا دلږ وخت دپاره دَ افغان د اقتدار ډیوه بله کړه. مګر دَ دوئ د وفات نه وروستو د مغلي او ایراني سازش په وجه هندي اقتدار زموږ د لاسه د همېشه دپاره ووت.
دویم ځل چې مغلو خپلې پښې په هند کښې سنجې کړې، نو د هر وخت پورې یې په هند اقتدار پاتې شو. نو دوئ اول کار دغه وکړو چې هندي افغاني نوابانو، صوبیدارانو، رئیسانو او شتمنو پسې یې را واخیسته. دوئ یې څوک غلامۍ ته مجبور کړل او ورسره ملګري شول. او ځینې یې په فوجي، اقتصادي او سیاسي توګه باندې برباد او تباه کړل.

هغه لوبې یې په کړلې چې د مغل دره او تېتر په یخېدو.
د هند پښتنو باندې د خدای (ج) قهر را نازل شو. در په در سر په خاورې شول. په دې غوبل کښې د مشهور پښتون مبارز حضرت بایزید انصاری (پیر روښان) کورنۍ هم متاثره شوه، چې دوی جالند هر کښې میشته وو. بایزید لا وړکوټی و چې خپل وطن کانی ګرم وزیرستان ته راغلو.
د شېرشاه متعلق مشهوره ده چې د ده څه وخت همایون د هند نه وشړلو، نو خلکو به ورته ویل چې همایون بیا در باندې حمله ونه کړي. نو ده ورته هغه وخت یوه خبره کړې وه، چې ډېره مشهوره شوې او د کانې کرښه جوړه شوې وه - بابا ورته ویلی وو: «چرګ چې کوم میدان کښې یو ځل وتښتي که چرې هغه بیا جنګ ته راوسته شي، نو هغه بانګونه خو کوي ولې جنګ نه کوي.»
(کتاب «پښتنانه د تاریخ په رڼا کښې» په ۵٤٦ مخ کښې)
د شېرشاه ناګهاني مرګ نه پس څوک داسې افغان پاتې نه شو چې دَ مغلو او ایراني سازش مقابله یې کړې وای. مونږ ته تر ټولو زیات نقصان ان پر جلال الدین اکبر رارسولی دے.
اکبر خپله بادشاهي په هغه خاکه جوړه کړه چې کومه د زیرک سیاست دان، فوجي ماهر، د اقتصاد نه خبر او لوئ فوجي او سول انجنیر شېرشاه سوري نه پاتې وه، چې روستو پرنګیانو

هم د شېر شاه بابا د سړکونو کوم جال خور کړے و د هغو سره
څنګ په څنګ د ریل اولارۍ سړ کې جوړې او پا یخې کړې .
د مالیه نظام چې شېر شاه سوري نافذ کړے و، د حیرانۍ خبره
ده چې هغه وخت کښې څومره صحیح د زمکې پیمایش او د
هغې په حاصل باندې د ننن سبا په شان زراعتي ټیکس لګولے و،
د شېر شاه بابا ډاک سیسټم د ننني پاکستان سیسټم نه ډېر
کړندے اوکړه و. د هغې وخت مسافرو د پاره د هر سړک
په غاړه د مناسبې فاصلې سره کوهۍ او د پولیسو چوکۍ
او آرام سرائے جوړول د حیرانتیا وړ خبره ده. د جهلم
قلعه روهتاس خو نن هم د شېر شاه بابا د انجنیرۍ بله
ډیوه ده . په دومره لنډ حکومت کښې دومره لوئې لوئې کارونه
کول د عقل منلو خبره نۀ ده.دکړهاکې نه تر پېښاور پورې
سړک خو ما هم لیدلے و، چې د اسلامیه کالج سره جوخت
تېرېدو، مګر بیا وروستو د بې غورۍ ښکار شو او زما خیال
دے چې د جمرود سړک د پلنے کېدو سره ورک شو، او حلته
یې کوهۍ هم وه. د ننن سبا صدران په دومره جدید ټکنالوجۍ
سره دوئې هغه کارونه نشي کولاے، چې کوم شېرشاه بابا
د خپل حکومت لنډه موده کښې کړي وو. د هندوستانیانو
او خاصکر د پښتنو بد بختي وه چې دومره قابل پادشاه
زمونږ نه ډېر زر لاړو. که چرې دے پاتې وے نو کېدلے

شوه چې هند په صنعتي او فوجي توګه دومره مضبوط شوی وه چې روستو به د یورپي قومونو د مقابلې وړ وه، داځکه چې شیرشاه بابا د علم، صنعت اوکسب قدردان و. او ده کښې انصاف و. د هندو او مسلمان د تعصب نه ازاد و. یو مثال ما اوربدلی دی چې د ده زوی یوه ورځ په هاتي سور و، دا چې د هندو سڼخه باندې د ګلابو یو ګل اچولے و. هغې هندو شیرشاه بابا ته شکایت اوکړو. شیرشاه بابا فوراً زوی ته ویلي وو چې دغه تازیانے کړے دے. درباري چاپلوسانو ډیر منتونه ورته کړي وو، مګر بابا حکم ورکړے و چې زما زور باندې به د غه هندو د هاتي د شا نه ګل ولي. دغه ته انصاف وایي. همدغه وجه وه چې روستو اکبر د دین الهی پروګرام لاندې د هندو او مسلمان د فرق ورکولو کوشش کړے و. مګر شیرشاه بابا ثابته کړې وه چې د انصاف د پاره نوے دین ضروري نۀ دے، بلکې اسلام کښې د ننه د ننه د خپل رعایا سره انصاف کېدلے شي. د هغې وخت نړۍ کښې بادشاهانو دا نمونه سوچ نه لرل، مګر شیرشاه بابا ډیر لرې کتو نکے انسان و. د هغې وخت بادشاهانو که هغه په یورپ کښې وو یا ایشیا کښې وو، د هغوی یو شغل و. یعنې عیاشي. همدغه وجه وه چې روستو پرنګیانو د بېښتونه ډیر خارخوړو. د وی ته پته وه چې د وی کښې څوک نه پیدا کېږي، چې پیدا

شي بيا د شېرشاه په څېر نا بغـه پيدا کېږي.

مغلوته پته وه چې دوئ د چا نړ حکومت اخيستې دے، هم دغه ورته پته وه چې که دوی لږ هم د پښتنو دکړو وړ نه بې خبره شول، نو ځه نتيجه به يې وي، نوځکه دوئ يو د ښمن او Rival وو. اول سر کښې هندي پښتانهٔ چې دوئ لوے لوے خلق وو، دوئ د مغلو د تشدد او چالبازۍ ښکار شول، دوئ يې وار په وار ختم کړل. بله خطره دوئ ته د پښتنو قبائيلو نړ وه، چې د ډهلي او کابل په مينځ کښې پراتهٔ وو. دا ځکه چې هندي افغانې کورنۍ د پښتونخوا نه تلې وې. هغه ترې لوے لوے بادشاهۍ جوړې کړې وې، نو مُغل د دې نه بېرېدل چې بيا د اسې ونړشي چې پښتونخوا نړ څوک راپورته شي، مونږه هند او خراسان کښې ختم کړي، نو دوئ چې هندي افغانانو نه بې غمه شول، نو غړ ببځ پښتنو پسې يې راواخيسته، چې د دې سياست بانې او چلوونکے انړ جلال الدين اکبر و. چې مغلو د پښتنو د خارلو او کنټرول کولو د پاره د اټک قلعه ورته جوړه کړه. دا ځکه چې د دې ځائ نه به دوئ ديوسفزو پښتنو خلاف وخت په وخت عمليات کول. دا ځکه چې ديوسفزو او مغلو دښمني ډېره پخوانۍ وه، که څۀ هم بابر د دوئ زوم هم و، مگر قومي مفادات بابر ته ډېر گران وو. بېسب سخړ کانې د مغلو

تکره نه شکرا جږ نیلانو دیوسفزو نه ما تي خوړلې وه چې سنه مثال يې داکبر متعمد بیربل دے ، چې هغه وکړ يې یوسف نامي کښې وراسته شول ـ مغلو ولیدل چې په فوجي ټوکه د وئ افغان قبائل نشي سمولے ، نو دوئ دپیسې لالچ اومذهب نه سیاسي فایده اوچتولو نه سترګه ونه کړه . دپښتنو قبایلو په مینځ کښې يې دَ بې اتفاقۍ تخم اوکرلو . یوسفزي اوخټک يې سره دښمنان کړل ، چې دې کښې قصور دخټکوؤ مُغل ورته تماشګیر وو ـ د مذهبي احساساتو نه يې فایده واخیسته افغاني قبایلو کښې يې مذهبي جامو کښې پیران او مولې ګان ځائ په ځائ کړل ، چې سنه مثال يې د پیربابا بونیر او مولا اخوند درویزه وو ، چې وروستو دوی په کار وراغلل . دوې دواړه د مغلو دخفیه اداره خلک وو .

دپښتنو لوے مشر پیر روښان خلاف مغلوله دوئ نه کاروا خیست او د پښتنو ملي غورځنګ يې شنډ کړو .

پیر روښان ، یعني بایزید انصاري ۱۵۲۵ء- ۱۵۷۲م مطابق ۹۳۱- ۹۸۰ هجری پوري ژوندکړے و . دَدوئ مبارزه دان پهِ جلال الدین اکبر په وخت کښې وه . داکبر دبادشاهي وخت دَ ۱۵۵۶ء نه تر ۱۶۰۵ء پورې و .

کهٔ ځهٔ هم پیر روښان چې دښمنانو به ورته پیرتاریک وایه د اول نه دَ رښتیا په غوښتلو اوپلټلو پسې ؤ . ذهني

رحجان یې تجسس ایخ ته ؤ، او خپل چاپېریال یې لوستو. هرڅه یې په منطقي پیمانه ناپ کولو. هم دَدې په وجه دَده مذهبي لاره ډېره ژوره وه او دعامو خلقو دپوهې نه ډېره لرې وه. اوځنو ملاګانو دَحسد نه ورته بد رد ویل، چې په هغوکښې ملا زنګي او اخوند درویزه ډېر مشهور دي. پیر روښان په تصوف Tasawoof کښې نوې لاره جوړه کړه، او دَدې کامل کېدو دپاره یې اتۀ(۸) پړاوه جوړ کړل. په حقیقت کښې ځوان بایزید دروایتي مسلمانانو مذهبي مشرانو نه زړه ښه نه ؤ، دا ځکه چې دوئ اسلامي لارې او عملي ژوند کښې منافقت کولو. دقاضي نه را واخله او تر پیر مولا پورې ټول دمنافقت ښکار شوي وو. رشوت، دروغ، چغل خوري، ظلم، زیاتې هر څۀ ترَدنیا یې مغز دانو دپاره تیار وو. ویل به یې یو څۀ او کول به یې بل څۀ. دغه دوه ډوله ژوند دبایزید دپاره دمنلو نه و، ځکه دَده او دَده د والد صاحب ترمینځ اختلافات راغلل. دپلار مقصد یې دغه ؤ چې باید دے روایتي د منافقت دوه ډوله ژوند اختیار کړي. مګر بایزید دبل څۀ په تلاش کښې و، چې دَده پلار تر آخره پورې خپل زوئ و نۀ پېژاند ؤ. ده مذهبي تحریک دخپل پیدایښې شهر کانې ګرم جنوبي وزیرستان نه شروع کړو او ډېر زر پښتنو قبایلو کښې دنوې پیر اوازه شوه او دۀ هم هر ایخ ته خپل

پېغامونه ولېږل، او ورته «معارفت الحق» دعوت یې ورکړو.

ددې تحریک د ښکاره کېدو سره مُغلي ګورنران او واکداران وارخطا شول. دا ځکه چې دغه پېر په داسې خلقو کښې و چې دوئ ځنې د هند بادشاهي اخستې وه. د پیر روښان مثال د عیسیٰ علیه السلام و. چې څه وخت دوئ د پیغمبرۍ دعویٰ وکړه نو رومیانو ته پکښې سیاسي چل ولیدے شو. دا ځکه چې رومیانو هم د مغلو په شان د یهودیانو نه حکومت اخستے و. نو دَ دوئ خیال وُ چې عیسیٰ علیه السلام په مذهبي جامه کښې د یهودیانو اقتدار بېرته اخلي، نو ځکه یې پهانسي کړو. هم دغه شان هوبهو خطره د مغلو سره پېدا شوه چې کهٔ دې سړي ته مو وخت ورکړو، نو افغان قبائیل به منظم کړي او زمونږ نه به واک واخلي. او د جاسوسانو په ذریعه ورته دغه درک هم لګېدلے وُ چې د پیر روښان کورنۍ هم مغلي ظلمونه په هند کښې لیدلي وو. نو دَ دوئ خیال وُ چې دغه سړے مذهبي جامه کښې د بدل په نکل کښې دے. چې د مغلو دغه خیال ډېر غلط هم نه وُ.

دَ ډېرو خلقو خیال دے چې د پیر روښان په ژوند باندې د قندهار واقعې ډېر اثر کړے وُ. هغه داسې وه چې دوئ څهٔ ملګري د تجارت د پاره قندهار ته تللي وو. چې دې دوران

کښې د والی (ګورنر) قندهار بهرام خان سره د دوی د سامان پنځه برخې مال دوی څنې اخستې و. او یوه حصه یې سوداګرو ته ورکړې وه. او د بایزید نه یې ۲/۳ حصې اخستې و او ۱/۳ حصه یې ورته پریښې وه. نو د کاروان ملګري سره جمع شول، بشمول بایزید روښان ګورنر قندهار بهرام خان ته ورغلل، چې د بې انصافۍ خلاف ورته عرض وکړي. مګر درباري خلقو دوی مجبور کړل چې والی (ګورنر) ته به ټیټېږئ او سلام به ورته کوئ. بهرام خان ورسره وعده وکړه، مګر دروغجن ثابت شو. دوئ ته خپل مال واپس نشو. نو بایزید باندې دې ډېر بد اثر وکړو، چې د دنیاوي مال دپاره د مور دار والي ته ټیټېدل او سلام کول سنبهٔ کار نهٔ و. او بل دهٔ وعده وکړه چې دے به بیا داسان په مخکښې د دنیاوی غرض دپاره ټیټ نهٔ شي. او بل ورته د مغلو رویه او سلوک معلوم شو چې مغلو د پښتنو سره کولو. همدغه وجه وه چې بایزید د منافقت نه سخت نفرت کولو او دغې وخت مذهبي او سیاسي منافقت په خلاف یې تبلیغ کولو. چې د دې په وجه د مخالفینو په لاس پلمه ورغله او پروپیګنډه یې پسې شروع کړه چې بایزید د پیرانو، نیکانو، بزرګانو او ولیانو بد لو مخالف دے او صرف ځان ورته رښتیونے ښکاري او نور ټول ورته منافق او کافر لیدل

کېږي . په دې باندې کاني گرام کښې خلق دوه ډلې شول چې یوه ډله یې مخالفه او بله ملګرې وه .

دپیرصاحب و الدصاحب عبد الله او میراني ورور یعقوب یې هم مخالف وو . مګر دَ ده یو تربور چې محمد نومېده شمالي وزیرستان داوړ کښې او سېدو . دپیر روښان په ډله و دپیرصاحب نه یې طریقه اوکړه، او پیرصاحب شمالي وزیرستان داوړو کښې خپل خلیفه مقرر کړو اوکامل خطاب یې ورکړو. چې د خلیفه محمد کامل په نوم مشهور شو. پس دپیرصاحب د لارې ځینې محسود، وزیر او اورمړ ملګري او ځنې مخالف شول. د خلیفه کامل په ذریعه دپیرصاحب تبلیغ داوړو او وزیرو ته ورسېدو . دکاني ګرم KANIGURM علما یې سخت مخالف وو. دوئ خلکو ته وئیل چې مړ یې کړئ یا یې د وطنه وشړئ او هجرت ته یې مجبور کړئ . چې دوئ کښې عثمان، مولانا ذکریا ډېر سرکښ وو. مولانا ذکریا به خلقو ته ویل چې دغه څرنګه پیر دے چې دخپل پلار او ورور یعقوب خبره نه مني ؟ دپیر صاحب ځواب دغه وو چې پلار او ورور مې راته وایي چې دنیا وي کاروکښې بوخت شه . زۀ دغه نۀ غواړم . مولانا ذکریا ورته خپل پلار او لودهي خاندان مشران ګرم کړل چې زندان ته یې واچاوئ . مګر دپیرصاحب پیروکارو بچ کړو . مګر کاني ګرم جنوبي وزیرستان کښې

زمکه پهٔ تنګه شوه او هجرت ته يې مجبور کړو. داسې سازش جوړ شوے وچې د شيخ آدم يا اسيه د څر په وخت مړه شوې وه ، خلقو په علي شېر چې د پير صاحب مريد و ، دعویٰ وکړه . علي شېر انکار وکړو چې ما نه ده مړه کړې. په دې باندې د کاني ګرم سنبار اووه (۷) قبيلې برکی جرګه شول . د شيښو فيصله دغه وه چې بايزيد به د دې سنبار نه اوځي . پو شيخ فريد يې مخالف و . مګر هغه يو ؤ . بس پير صاحب مجبور شو چې وطن نه هجرت وکړي .

بس د دوئ خپله مېرمن بي بي شمسو ، زوی شيخ عمر او لور کمال خاتون بشمول روان شول . خلقو يې پلار يعنې عبدالله ته پرېنښودله وکړل ، خو هغه نه منل . د خپلو خپلوانو پسې ژړ ګاني وې . پير صاحب څو ورځو سفر نه پس خپل تربور خليفه محمد کامل ته دوړو ته ورغے . خلک چې خبر شول ، نو ټولي ټولي د دوئ مريدان شو . د کاني ګرام مخالفينو داوړو کښې هم ورته اور بل کړے و . او حتٰې بد معاشان يې د پير صاحب مرګ ته تيار کړي وو . خدائ (ج) حتٰي اوساتو . د برکي قبيلې خلکو به افغانستان او هندوستان کښې تجارتونه کول ، هم پهٔ دې وجه د پير صاحب آوازه تر هند او کابله پورې لاړه او مولانا ارزاني يې مريد شو . د هند نه خليفه ما دود چې ترين

پښتون و، هندکښې، سرهندکښې آباد و. ورته راغئ، د پیر روښان نه یې طریقه وکړه او مرید یې شو، او د خلیفه لقب یې ورکړو او ده ته یې اجازت ورکړو چې هندکښې خلکو ته طریقې ورکاوه او ورته وایه چې د توحید لاره دې ونیسي. هندکښې د غو دوو کسانو، یعنې مولا ارزاني او خلیفه مادود دواړه ښهٔ عالمان وو. د پیرصاحب مشن یې مخ په وړاندې بوت.

په دې وخت کښې پیرصاحب ته د پېښور د سار بڼ او تیراه نه بلنه راغله چې دوئ دې راشي او مونږ ته دې سمه لاره اوښائي. پیرصاحب خپل یو داوړ خلیفه چې د هغې نوم هم بایزید ؤ، دوی ته ولیږلو، او پیغام یې ورکړو چې زر تر زره به درشم. یهٔ دې شپو او ورځو کښې د پیرصاحب قیام بنګښو کښې ؤ. هلته عالمان او شیخان راجمع وو، مناظرې وې. پیرصاحب خپله صفائي اوکړه، بیا یې ټول بنګښیان مریدان شول. او وړیسې آفریدي، اورکزي او تیرایي یې هم مریدان شول. په دې وختونو کښې د پیرصاحب استاځي بایزید داوړ د مغلو د فوجیانو د لاسه شهید شو، چې دې خبر په پیرصاحب باندې بد اثر اوکړو. پیرصاحب چې تیراه ته ورسېدو، دلته ورسره حاجي کاداي، چې د خلیلو د قبیلې نه وه ملاو شو، او مریدې شو، او

پیر صاحب ته یې دعوت ورکړو. پیر صاحب د تیراه نه پېښور ته راکوز شو او خلیلو ته ورغې او شاني په کور کښې متل شو. شانې د خلیلو مشر و. د دې کره یې خلیل مریدان شول او اسحاق مهمند زئ یې هم مرید شو. دغه د پیر پوه او عالم سړے و. پیر صاحب ورته د خلیفه مرتبه ورکړه. همدغسې مهمند زیو او داؤد زیو د پیر صاحب په حلقه کښې داخلېدل شروع کړل. چې څه وخت دې قبایلو حریصو پیرانو او مولاګانو اولیدل چې د دوئ مریدان دېره دېره د پیر روښان په حلقه کښې داخلېږي، نو دوئ وارخطا شول. د علاج منصوبې یې شروع کړې. دوی حبیب خلیل ته راغلل چې دغه مسافر سړے خو خلک د لارې نه خطا کوي، د دې علاج پکار دے. حبیب ورته جواب ورکړو چې تاسو فکر مهٔ کوئ. هسې هم حبیب د پیر صاحب نه خفه وُ. چې دوی د شانې په کور کښې میلمانهٔ وو. حبیب د شانی سره د خلیلو په مشرکړئ باندې رسه کشي وه. حبیب خلیل اول د پېښور ګورنر جانس خان ته ورغې او دوه (۱۲) زره روپۍ رشوت یې ورته ومنلو، که چرې ګورنر دغه پیر روښان مړ کړي. مګر جانس خان شریف سړے وُ، د حبیب خلیل خواهش یې ونه منلو. بیا حبیب خلیل کابل ته لاړو، د مرزا حکیم وزیر ته یې رشوت ورکړو او بایزید

خلاف یې ولمساؤ. میرزا حکیم د پوښتنې د پاره پیر صاحب کابل ته راوغوښتو. میرزا حکیم ورته د پوښتنې د پاره قاضي خان مقرر کړو. قاضي خان هغه ټولې پوښتنې ځنې وکړې چې د پیر صاحب خلاف خلکو او د ښمنانو مشهورې کړې وې. د قاضي صاحب تسلي وشوه، بلکه میرزا حکیم ته یې مشوره ورکړه چې د ده نه بیعت پکار دے. مګر میرزا حکیم وروستو هغې وزیر مشکوک کړو چې کوم حبیب خلیل په رشوت اخستے وُ. وزیر ورته وویل چې که چرې تاسو د دوئ مریدان شوئ نو بیا د افغانانو نه مالیه اخستل به ګران شي. بیا تاسو دوئ جرم کولے نه شئ. د احُکه چې بایزید پخپله هم افغان دے او پیر صاحب به خپل مرید ته د اسې اجازت ورنۀ کړي.

میرزا حکیم د خپل وزیر مشوره قبوله کړه، د پیر صاحب نه یې طریقه ونۀ کړه. مګر د پیر صاحب قدر یې وکړو او پښور ته د بېرته تګ اجازت یې ورکړو.

د کابل نه چې واپس شو، نو د پېښور ګورنر جانس خان په ځای معصوم خان مقرر شوے و. د پیر صاحب د ښمنانو ورته ګورنر لمساولو، هم په دې وجه پیر صاحب بیا محمد زیو هشتنغر ته لاړو. د دوئ یې ډېر قدر او کړو، ښه مزیدار کور او د کور د خرچې بند و بست یې ورته اوکړو.

چې څه وخت پیرصاحب د مهمندزیو دغه مینه او سرپټوب ولیدو، نو خپله لور کمال خانؤن یې د مهمند زیو د مشر پاینده خان زوی علی خان ته ورکړه. او د یوبل مشر بهادرخان لور یې خپل زوئ عمر ته وادهٔ کړه. پیرصاحب خپله یوه محمدزی مریدهٔ چې دلنې نومېده، واده کړه. بس هشنغر د روښانې تحریک مرکز شو.

پیرصاحب خپل خلیفه ګان په مختلفو طرفونو ولېږل چې خلیفه مادو یې قندهار ته ولېږه، چې دهٔ کاسي، محمدزي او شینواري قبایل مریدان کړل. بیا خلیفه صاحب بلوچستان او سندهـ ته لاړو، هلته یې د پیرصاحب پیغام خور کړو.

خلیفه دولت خان یې جلال الدین اکبر بادشاه هند ته د خپل کتاب «صراط التوحید» سره ولېږلو. اوبل خلیفه یې، چې یوسف نومېدو، د بدخشان حکمران ته ولېږلی، او خپل کتاب «فخرالطالبین» یې ورکړو. او خلیفه ارزاني یې هند ته ولېږلو، چې هلته خلکو ته د توحید دعوت ورکړي. او ځنې خلیفه ګان یې بلخ، بخارا او سمرقند ته ولېږل. هم په دې شان پیر روښان هرلوري ته خپل خپل خلک د مشن د پاره ولېږل. مګر دغه لېږل شوي ل

ګوړې ګوړې نه وو . د ښمنان یې ویده نه وو، مغل
یې ورته لمسولي و و.

# د روښانیانو او مُغلو ترمنځ لومړی جنګ

چې څهٔ وخت بایزید (پیر روښان) د پېښور نه کابل
ته تلو، نو په لاره کښې توئ Tni قبیلې د پیر روښان په
لاس بیعت اوکړو. دوی د نیا یې کار نه لاس واخست او
تو حید د پاره یې عبادت او تبلیغ شروع کړو. او چې چا
به د نیا یې کار کولو، دوئ به څښې نفرت کولو. هم په د ې
وخت کښې یوه تجارتي قافله د دوئ په علاقه تېرېده .
دوئ ته غوصه ورغله چې دغه خلک د آخرت سوچ نهٔ کوي
او صرف دنیاوي کار و کښې بوخت دي. دوئ ته سزا ورکول
پکار دي. دوئ قافله لوټ کړه. سامان یې مات رامات
کړو. د پاسه یې اسپې په وښورولې. قافلې واله دغه مهال
فرمان روا کابل میرزا حکیم ته اطلاع ورکړه چې افغاني
قبایلو مونږ لوټ کړو، چې دغه ټول د پیر روښان خلک
دي . پهٔ دې باندې میرزا حکیم یو مغلي فوج د دې قبایلو
خلاف ولېږلو . سړي یې مړهٔ او تباه کړل، ښځې او

ماشومان یې بندیوان کړل. په دې باندې پیر صاحب حکمران کابل ته لیک ولیږلو او په هغې کښې یې د ښځــو او ماشومانو د خوشې کېدو غوښتنه کړې وه، چې دوئ بې قصوره دي، چې چا قصور کړے وُ هغو ته تاسو سزا ورکړه.

په دې لیک باندې میرزا حکیم په غوصه شو فوراً یې د پېښور ګورنر ماسوم خان ته خط ولیکلو چې پیر ګرفتار کړه او که ځان نهٔ درکوي مړ یې کړه.

د ګورنر سره په دې وخت کښې پاینده خان او بهادرخان مهمندزي وو. دوی پیرصاحب پټه خبر کړو. د دې خبر سره پیر صاحب یوسفزو اړخ ته روان شو. مګر د مغلو رنز ماسوم خان فوجیان ورپسې وو. چې څهٔ وخت پیرصاحب د مغلو فوج ولیدو، نو دوئ کوشش وکړو چې غرو ته لګ شي، مګر مغلو د دوئ لاره بنده کړه او دوئ یې په ګیره کښې واخیستل. په دې وخت کښې د پیر صاحب صرف ۳۱۳ تنه ملګري وو. د مغلو د فوج رهبري ګورنر ماسوم خان کوله. چې څه وخت جنګ شروع شو نو د پیرصاحب مریدان داسې په جوش وجنګېدل چې مُغلي فوج ئې وارپار خطا کړو. د سخت جنګ نه پس مغلو د پښتنو نه ماتې اوخوړه. د پاتې فوج سره

گرد نوماسوم خان په منځا پیښور ته لاړو.

پیر، وښتان ددې ځای نوم «آغان پور» کېښود و. بیا پیر صاحب دغه وخت د پاره تیراه ته لاړو. د تیراه نه د بنیر یوسفزو ته راغلو او ۱۵۷۲ء کښې وفات شو او خاورو ته وسپارلے شو. (حالنامه)

د پیر صاحب د مخالفینو نه یو اخوند درویزه ؤ. هغه لیکي چې پیر روښان خپل مریدان جمع کړل او ننګرهار ته لاړو او «بړو» باندې یې حمله وکړه. په دې باندې محسن خان د جلال آباد نه فوج ورپسې رروان کړو، روښانیانو ماتې اوخوړه. پیر صاحب غرو ته وختو. په بد حال ؤ. خپلې یې نه وې، مړے، تږے د هشنغر اړخ ته روان شو. مړ سترے او ستومان کلپانې ته راورسېدو او وفات شو. په هشنغر کښې یې ښخ کړو، مګر اخوند درویزه دا نه دې لیکلي چې دغه خبره چا ورته کړې ده. څوک ورسره وو چې د پیر صاحب خپلې او لوږه تنده یې لیدلې وه، او بیا ئې کلپانې پورې ورسره ملګرے ؤ.

دغه یاد ساتل پکار دی چې اخوند درویزه د پیر صاحب سخت دښمن و.

د هغوی د وفات نه پس د دوئ زوی شیخ عمر د روښانیانو مشر شو.

# اخوند درويزه څوك و؟

اخون په تركي ژبه كښې مولانا وايي . اخون درويزه پخپله پښتون نه و . البته د دوی كورنۍ په يوسفزو كښې ميشته وه . د دې خيل شجرة نسب داسې بيانوي : د پلار د اړخه تاجك دی او د مور له طرفه يونانی دی . او خپل شجره نسب د سكندر اعظم يونانی پورې تړي . يعنې د پلار له طرفه تاتاري مغل او د مور له طرفه يونانی دی ، چې دغه پخپله تضاد دی خبرې دي . تاجك آرين دی او ترك مغل ځانته انساني ذات دی . چې دغه يو بل سره سمون نه خوري . او بل اسكندر اعظم ۳۳۲ ق.م كښې پښتونخواته راغلی و . او اخون درويزه ۱۹٦۸ كاله وروسته پيدا شوی دی ، داسې معلوميږي چې اخوند درويزه په دروغه د هغې وخت د وه ناموړو نسلونو نه ځان جوړ كړی دی . اوخون نه د ترك او تاجك پته هم نه لګيږي او خيل اصلي نوم هم نه ليكي . دی د ۱۵۳۳ ء نه تر ۱٦۳۸ ء كال پورې ژوندكړی دی . د تذكرة الابرار كتاب مطابق د آخون اجداد جبون بن جفتي د لغمان نه ننګرهار ته لاړو او هلته يې د مهمندو

سره واړول. روستو يې د مهمندو سره اختلافات راغلل سلاطين بلخ ته يې شكايت وكړو. بادشاه په مهمندو باندې لښكر كشي وكړه. د جبون اووه نامن وو، په دوی كښې ديو نوم سته وُ، د ده د يو زوئ نوم احمد و، د احمد د زوئ نوم درغان وُ. دغه درغان د مهمندو نه لاړو اول بره علاقه يوسفزو كښې داخل شو او بيا موضع پاپين كښې ميشت شو. په هغې وخت كښې يوسفزو چې سوات باندې خپل اقتدار ټينګولو د درغان زوی سعدی د دوئ سره وُ، چې څهٔ وخت چې شيخ ملي د علاقې ويش كولو نو سعدي ته يې سره د دبرشو كسانو نورو كورنو والو سره د قبيله ملی زئ يوسفزو سره يوځای زمكه وركړه. سعدي په دې علاقه كښې مشهور شو. ليكن څه وخت چې د يوسفزو خلاف مغلو لښكر كشئ كولې، داخون په قول لښكريانو د عدم واقفيت په وجه سعدي قتل كړو. او د دغه سعدی زوی ګدائ چې وُ د آخوند بابا يلار وُ، د نورو خلقو سره ګرفتار شول. مګر څه وخت چې د حاكم وخت دلښكريانو نه د سعدي تپوس اوكړو حاكم صاحب نه پته و لګيده چې هغه قتل شوے دے. ډېر ډېر افسوس يې وكړو، او سَ يې څهٔ كولے شول، بغير د دې نه چې قيديان خلاص كړي. د دې نه اندازه لګي چې

چې آخون بابا کوړنۍ د مغلو سره څو مره ژوندۍ رابطه وه. (تاریخ یوسفزي پټهان)

اخون درویزه د پښتو د بې خدمت کړے دے، دا ځکه چې پیر روښان پښتون او پښتو ژبه کښې روښاني تحریک لیکنې کولې، هم دغه وجه وه چې مخالف ډلې یعنې آخون درویزه هم په پښتو باندې لیکل شروع کړل. چې په دې سره زمونږ ژبې پښتو ته فایده ورسیده. دے دېر Fanatic مولا و. هر یو مخالف یې کافر کړے دے. همدغه وجه کېده شي چې د یوسفزو د علاقې نه و شړلے شو. او پېښور کښې آباد شو. پښتنو ته خاصکر یوسفزو ته کنځل کوي. دے پېښاور کښې مړ شو او هلته ښخ شو، چې مزار یې نن هم موجود دے. دا سې معلومېږي چې آخون بابا د پښتنو په سکا لوچه باندې ښه پوهېدو د هغه د پیر و بیکندې فنې کوبل په څېر پر پیکته چې دوی به په پیر صاحب پسې قسما قسم خبرې کولې، چې یو د مثال په توګه دلته بیانوم:

دوی په پښتنو ته ویل چې دغه پیر روښان نه دے بلکه پیر تاریک دے. هغه دا سې چې پیر تاریک وایې چې خر په ګڅرو لږ دلے وي او په ویاله پورې کېږي، د بار نه یوه ګا څره چیکړو کښې ولوېږي، نو سړے هغه یوه

کا څره وینځي دټول څرې د و بینځلو ضرورت نشته. هغه مثال د ښځې او خاوند ورکوي چې دوئ هم بستري وکړي نو دټول وجود وینځلو ته ضرورت نشته، صرف دې هماغه حصه ومینځي چې کومه ګنده شوې وي.
پښتنو به غوږ ونه نیول او توبې به یې ایستلې. دد ې تپوس یې نه کړو چې دغه رښتیا دي او که دروغ او دځانه جوړه شوې قیصه.

په دې وسیله به دوئ د پیر روښان خلاف دپښتنو قبایلو په مینځ کښې د نفرت اوکرکې تخم کرلو. بلکه نن هم زمونږ دغه حال دے. چې باچاخان مو ننن او نه پیژاندو، چې مسلمان ؤ او که هندو، چې جناح ته تکے لمونځ هم نه ورتلو نن سبا اولیاء دے.

## پیرسید علي ترمذي (پیربابا بونیر) څوک ؤ؟

دوئ د آخون بابا په قول کتاب "تذکرة الابرار والاشرار" چې د حضرت سید علي تعلق د ترمذ سادات کورنۍ سره ؤ، او وطن یې قند وز - بدخشان یادکړے دے. د دوئ مور محترمه دمغلیه خاندان، امیر تیمور همایون خورنه وه او د دوئ والد صاحب سید قنبر علي

ته په مغلیه دربار کښې د قدر او عزت په سترګه کتلے شول او د امیر نظر بهادر خطاب یې ورکړے و. د عهد همایون په اولني اقتدار ي وخت کښې دوئ، یعنې حضرت پیر بابا د تعلیم د پاره د ګوره راووت، اول پاني پت ته لاړ و، بیا مختلفو ځایونو ته لاړو، بیا اجمیر شریف ته لاړو، هلته د ر سپدو سره حضرت سالار رومي حلقه مریدان کښې شامل شو. په دې دوران کښې د ګیګیاني قبیلې دوه کسان حاجی سیف الله او ملک ګدائي خان چې دوئ همایون د ځان سره د پیښاور نه هندوستان ته بوتلي وو، د پیر صاحب نه یې لاس نیوے یعنې بیعت وکړو.''

چې څهٔ وخت همایون د شیرشاه افغان نه شکست وخوړو او په منډه و، نو دې ځان ي ملکر وکښی ورسره د پیر بابا پلار نظر بهادر هم وُ. دهٔ زوی ته وویل چې پیښاور ته لاړ شه. دهٔ پیښاور کښې د ملک حاجی سیف الله خان او ملک ګدائي سره ملاقات وکړو. اول "دوابې" ته لاړ و، د لته چا پیر صاحب ته وویل چې علاقه یوسفزو کښې دوه پیران دي، چې د یو نوم پیر طیب غلزی او هغه بل پیر ولي بړیخ دے. دوئ خلکو کښې ځان ځان له ټولې جوړ وي. مغاو ځنې خواهش وکړو چې تاسو

ملته لاړ شئ ، د دغو دوو پیرانو اثرات ختم کړي .
ځکه نو دوئ د علاقه بوابه نه علاقه یوسفزیي ته لاړو
او علاقه سدهم کښې مېشت شو.
دلته دهٔ خپل میشن Mission شروع کړو او دولت
خان ملی زے یوسفزيي خور بی بی مریم ورله په واده
وکړو. او خدای ددې نه اولاد ورکړو. دوه زامن او
درې لونړه. سید عبدالله او سید قاسم - سیدهٔ رحیمه،
سیده کریمه او سیده زینبه .
د پیر بابا متعلق مشهوره ده چې څوک یې زیارت
وکړي ، خدائے د هغه د شرک او حیات یعنې مېرمن
ورکوي . چې کله وخت پیر روښان مخ په وړاندې روان
وُ ، نو مغلو ورته د پیري په جامه کښې خپل خپلوان
سید علي کښېنولو او د مولا ګیرئ په جامه کښې یې ورته
اخون درویزه . چونکه دوی د پښتنو په نفسیاتو سبه
بوه وو ، نو یو دوه ځله داکار رښتیا شوے دے.
هغه داسې چې مغل خو د هند او افغانستان واکداران
وو ، دوی حرمونو کښې بزسنتې د برې سنځې وے
کنیزې (غلامې) او وینځې به وې ، نو دوئ د پښتنو
د غولولو د پاره او د پیر بابا پوزیشن د مضبوطولو
د پاره داسې کار وندکول. د پیر صاحب مریدان به

په کلیو کړ ځنډل او خبره به یې کوله چې څوک د پیر بابا دیدن وکړي، خدای (ج) سنځه ورکوي. د مغلو جاسوسانو به پیرصاحب مخکښې خبر کړه چې پلانی سړی د پلاني کلي او قبیلې نه درځي، د سنځې سوال درته کوي. چې سړی به ورغی، نو پیرصاحب خو به د اول نه خبر و، لاس به یې پورته کړل د دعاوکړې چې ددې سړي کور خدای ودان کړې او د خدای نرمې ورته په لاره کښې سنځه غوښتې ده، چې خدای یې ورکړي. دغه دربارې وینځه به یو ځای ځای کښې جاسوسانو کښېنولې وه. دغه ساده پښتون به چې د پیرصاحب د ملاقات او دعا نه پس راتلو، نو وروستو به سنځه ورپسې روانه شوه. وینځه به جاسوسانو یوه کړې وه، پښتون ته خو به هسې هم هر بوټی اوتیږه سنځه کېدله. بیا دې سنځې به ژغ پرې وکړو چې ځانه ما خوب کښې پیر صاحب لیدلې ؤ، زما نکاح د تاسو سره شوې ده. وايي چې "پوند د خدای نځه غواړي، دوه سترګې" د پښتون به دغه وینځه سنځه شوه.

داسې کاروبنه دوه دری ځله شوې وو، بس څه وه چې ترنن ورځې پورې پښتانهٔ د پیرباما نه سنځې غوړې، چې دغه ټول د مغلو یوچل و، چې د پیرروښان قدر

يې ورکولو. دوئ يعنې پير بابا او آخون د مغلي دربار خلک وو، او د روښاني تحريک د بدنامولو ذمه يې اخيستې وه.

چې څۀ وخت د پير روښان پيغام پير بابا ته ورسيد نو ئې وويل چې په افغانانو باندې طاقتوره بلا نازله شوې ده.
چې څۀ وخت پير بابا هشنغر کښې د پير روښان سره ملاقات وکړو، نو پير روښان ورته وويل چې کمو علاقه کښې چې تاسو مقيم يئ، هلته خو پير پهلوان، پير ولي طيب موجود دے، دوئ سره د مقابلې نه بغير ماسره نور آزمايښت کار نۀ دے. چې څۀ وخت پير بابا پير روښان قانع نۀ کړے شو، نو پير بابا فرمايلي وو چې ظاهري هلاکت د بادشاهانو په ذريعه کېدے شي او د لته بادشاه نشته. خو پير بابا ورته مغل تيار کړل، دا ځکه چې د پيرئ او عالمئ جامه کښې دوئ د پير روښان مقابله اونۀ کړے شوه.

اخوند درويزه ليکي چې بايزيد ته هيڅوک په مناظره کښې نۀ شو اوړلے. او ليکي چې دوی، يعنې پير تاريک بيو شيطاني صفت عالم و. د مکر او فريب سره به يې ټول شرعي اعمال کول.

يو بل ځاے ليکي چې په ظاهره خو په شريعت يې عمل کولو مګر په باطن کښې يې په کفر عمل کولو.

دې ته ګوره چې اخوند دباطن نه هم خبرو. حقیقت دغه وُچې اخوند د مُغلي جاسوسي اداري سړے و، ځکه یې هر روا او ناروا حرکت کولو. عالمان پخپله دغه حدیث بیانوي چې چرته یو کافر کلمه وېلې وه او حضرت علي قتل کړے ؤ، نو حضرت رسول خدا د ناراضګي اظهار کړے و، او ورته یې ویلي وو، چې تاسو ته ددې د باطن حال څه معلوم ؤ. مګر دلته اخوند درویزه د مغلو جاسوس د باطن نه هم ځان خبرکړي چې پخپله دغه غیر اسلامي عمل دے او کفر دے. خو خوار درویزه څهٔ کړي وای. دغې ته مجبور و، او خپله خېټه به یې په څهٔ ساتله.

د پیر روښان خلاف د پیر بابا پیري، د مغلو پیسې او د اخوند کچره خوله یوځائ شول، یوسفزي یې په دوه ډلو تقسیم کړل. آخري او فیصله کن جنګ د روښانیانو خلاف یوسف نامه کښې وشو. چې د روښاني کیمپ کلئ باجا - میني او کونړ کښې و او د اخوند درویزه او ملک حمزه خان اکوزي لښکر کلئ جهنګړه او بوقه کښې وو.

د اخوند د لیک مطابق اول جنګ موضع سرکاوی او دویم جنګ موضع میني کښې وشو. په دې دواړو جنګونو کښې روښانیان کامیاب شول او دریم جنګ موضع باړه کښې وشو، دلته روښانیانو ماتې وخوړه.

درویزه لیکي چې د ماتې نه پس د بایزید دوه زامن شیخ عمر او خیرالدین د تربیلې سره آباسین ته ټوپ کړل، د علاقه هزارې اړخ ته پورې وتل. نصر په پوهېږو چې دوئ دواړه د دله زاکو قبیلې د لاسه قتل کړے شول. دریم زوی یې نورالدین په منډه د هشنغر علاقې ته لاړو، هلته د محمد زیانو د لاسه قتل شو. اوبل زوی یې چې لا تنکے هلک و، یعنې جلال الدین چې په جلاله مشهور و، زخمي شو او اباسین ته یې ټوپ کړل. د د ښمنانو په لاس ورغے دے به ځوارلس کلن و، ډېر ښایسته و. دوی د مغلو نه د انعام ګټلو په خاطر مړ نه کړو، ژوندے یې اکبر بادشاه ته پیش کړو. په دې وخت کښې اکبر بادشاه اټک کښې میشت و.

د حضرت بایزید روښان جوسه په مریدانو د تبارک دپاره د ځان سره کړځوله. د د ښمنانو په لاس ورغله. د اخون درویزه په فتوی دوی د پیرصاحب لاش د تابوت نه وایستو او اور ته یې واچولو.

د پیر صاحب ښځه چې د لودهي پښتنو خاندان سره یې تعلق لرلو، د اخون درویزه په هدایت له یو بل سره یې نکاح وکړه او د غه واقعه اخوند درویزه په ډېر فخر سره لیکي، او ذکر یې کوي. او دغه ټوله لوبه د اسلام په نوم وشوه.

په ۱۵۸۱ء کښې جلاله اکبر باچا ته پیش کړے شو. دے

ده پر بنایسه څوان ؤ، نو اکبر قتل نه کړو. دځان سره یې دربار کښې وساتو. مگر دموقع سره جلاله دمغلو نه فرار شو او د تیراه اپریدو ته لاړو، دخپل پلار مشن یې جاري وساتلو.

یوځل بیا پښتانه قبایل په جلال الدین راجمع شول او اکبر ورته د اټک قلا په جوړولو شروع وکړه.
روښاني تحریک په پښتنو کښې اولنۍ تحریک ؤ چې پښتانه پکښې بحیث قوم شامل وو. ددې تحریک په ذریعه پښتانه په کلونو کلونو دمغلو خلاف جنګېدل او دغلامۍ نه یې ځان ساتلی و. همدغه وجه وه او ده چې پیړنکي هم پښتانه سم نه کړلے شول. خو زمونږ بدبختي دغه ده چې ددې تحریک سپکاوے نن هم ژوندے دے او بنه کارونه یې ورک دي.

د پیر روښان دغه د آزادۍ د یوه تر ډېر وخته بله وه. روښانیانو بیا جلال الدین خپل خلیفه مقرر کړو. د ده خلافت د ۱۵۹۱ء نه تر ۱۶۰۳ء پورې ؤ. ده د مغلو خلاف خپل مهم جاري اوساتلو. مگر په ۱۶۰۳ء کال کښې د مغلو هزارو د لاسه دافغانستان په غزني کښې قتل شو. هزاره گانو ددوی سر اکبر باچا ته پیش کړو.

ددوی د شهادت نه پس روښانیانو بیا احداد خپل خلیفه مقرر کړو. که څه هم دوی روحاني شخصیت ؤ، مگر دمغلو

او روښانیانو بدي دومره زیاته شوې وه چې ده هم توره واخیسته - څو څو ځله یې مغل ګډوډ کړي وو او د کابل محاصره یې هم کړې وه. په هغه وخت کښې د کابل حکمران شاه بیګ خان ؤ، دا حداد او ددهٔ د فوجیانو په مینځ کښې سخت جنګ وشو. روښانیانو ماتې وخوړه. احداد د خټکو علاقې ته راپه خټه شو. لواغر کښې میشت شو. دلته د روښانې او لاد خپل منځي زړهٔ بدګي راغله او مغلو هغې ته لمن ووهله. ددې نتیجه دا شوه چې د جلال الدین زوی رشید خان بادشاه جهانګیر ته تسلیم شو. جهانګیر یې ډېر قدر وکړو او د ۵۰۰۰ فوځ کمنډر (قوماندان) یې مقرر کړو. روستو بیا شاه جهان ورته شمس آباد کښې لوی جاګیر ورکړو.

چې مغلو ته پته ولګېده چې په روښانیانو کښې بې اتفاقي راغله، نو د کابل ګورنر ظفر خان، خلیفه احداد د لواغر په غرو کښې محاصره کړو. د بهادرۍ جنګ یې وکړو او د ۱۶۲۲ء کال مقابله کښې شهید شو. ددهٔ نه پس د روښانیانو خلیفه عبدالقادر شو (۱۶۳۴ء - ۱۶۲۲ء).

چې څهٔ وخت د عبدالقادر پلار شهید شو، نو دده عمر دولس کاله و. د سخت غمخوارۍ نه پس د مغلو نه خلاص شو، تیراه ته راورسید. دوی ترڅهٔ وخته پورې پټ وو، دا ځکه چې مُغل د دوی په تلاش کښې وو، مګر

چې څه وخت عبدالقادر ته پته ولګېده چې مغل پېښور ته واپس شول، دا ځکه چې د باد شاه د دوو زامنو په مینځ کښې ناچاقي جوړه شوې وه، چې د یو نوم خسرو او د هغه بل پرویز وو ده په ځان باندې بیا پښتانه راټول کړل او په پېښور باندې یې حمله وکړه. او سخته محاصره یې وکړه. مګر د لته د ده او د ده ترې کرېمداد په مینځ کښې اختلافات راغلل محاصره یې اوچته کړه تیراه ته په شاتې لاړو.

په دې وخت کښې روښاني کورنۍ کښې بې اتفاقي زیاته شوې وه دوی وار په وار مغلو ته ورغلل، انعامونه او منصبونه یې قبول کړل.

خودۍ تحریک چې کومه د آزادۍ دیوه بله کړې وه هغه د پښتنو په زړونو کښې د خدائي خدمتګار تحریک پوړی په یو شکل او بل شکل بله وه.

# د مغلو خلاف د ایمل خان، دریا خان اپریدي او خوشحال خان خټک هلې ځلې

لکه چې بار بار لیکلي دي چې د پاني پت د جنګ نه روستو مغل چې چا ته ځیں وو هغه صرف افغانان وو. دوی ځني دار بدل. دا ځکه چې د دوی شیر شاه بابا او روښاني تحریک په یاد وو. او بل افغانان جغرافیائي موقعیت داسې وو چې د مغلو اصلي ټاټوبي یعنې مرکزي ایشیا او هندیه مینځ کښې پراته وو هر وخت ځني خطره وه. او بل روښانان که څه هم جنو بي وزیرستان کښې زیږ بدلي وو، مګر سیاسي میدان یې کندهار او ننګرهار پاتې شوې وه، نو د پښتنو قبایلو کښې یې سپینکي (سپرغی) پاتې وو. که څه هم مغلو پښتانه ډیر خراب کړي وو، په پیسو او منصبونو باندې یې عادت کړي وو، مګر بیا هم د مغلو او پښتنو نه په وکی سره مات وو. نو د دوی ترد پښتنه نه دیده امکانات زیات وو. د یوې معمولي واقعې نه به هم د ځنګل اور جوړ شو.

همداسې یوه واقعه «سنا نور محمد امین خوږ بیا نهی بیانوي :

خوشحال بابا د ایمل خان مومند متعلق شعر کښي وایي :

دایمل فتور آغاز شو    د مومند هم عنان شو

۹

سنا تور صاحب لیکي : د دې قیصې آغاز داسې وشو:
«کومه یوه کوجره وه، دې کوجرې مستې راوړې وې په کوټ کښې. هغه یې خرڅولې په څوکه کښې. یو سپاهي دا کوجره وسکونډله. هغه ساعت کښې ساپي ولاړوو، دا سپاهیان یې ووهل. ساپیان لاړه کلي ته. کلي په کلي به کرځېدو چلم به یې څکه، ویل به یې په تاسو مو ننگ خوړلے دے، په کوجره. هغوی ورسره یو ځاے شول، تا نه یې ووهله. د پښتنو او مُغلو ترمینځ لوے جنگ جوړ شو. په تاتره باندې څلوښت زره مُغل تار په تار شول. کړې یې بندې یا لټې شوې. ایمل خان د مُغلو سره ډیر جنگونه وکړل. په هغه جنگ کښې ایمل خان پاچاشو په ځرمن باندې یې مهر وواهه.»

لکه چې پښتانه متل کوي : «د لمدو خښتو لوړې او بهٔ دارو (کافي) وي»، همدغه حال د مغلو او د پښتنو وو چې دوی د مرک او پیشو لوبه روانه کړې وه. ایمل خان سره دریاخان اپریدے هم مل شو. نو دوی مغل وډبول. دغه داسې وخت و چې دځنه هم داسې طمع نه کېدله، دا ځکه چې پښتانهٔ مغلو ویدهٔ کړي وو. د ملکه نشه ختې تلې وه، مغل

د مغلو پۀ تال به گرځېدل ، نو داسې نا اُمیده وخت کښې د ایمل خان او دریا خان غوندې خلک پیدا کیدل دقوم پرستو دپاره لوبه ډا ډګېرنه وه ، چې دخوشحال غوندې حساس سړي باندې يې ډېر اثر وکړو.

له دې جګړو نه مخکښې مُغلی ګورنر خانی ، لوی بابا خوشحال خان بې ګناه نیولے و. څوک وائي چې بادشاه اورنګ زیب د اټک مالیه منسوخه کړې وه ، په دې باندې اکوړیان خفه وو . مګر حقیقت د غه وُو چې د غه صرف مالیه نه وه بلکې نور ډېر علتونه يې وو. صرف یو خوشحال خفه نه وو ، بلکې ډېر پښتانۀ مشران ددې مالیه په وجه خفه وو.

امیر خان خوافی اورنګ زیب ته ویلی وو چې ستاسو په فرمان حُکم عمل نۀ کېږي چې ستا سو ډېر لوی لوی خلک پکښې دي. بادشاه ورته اجازت ورکړے و ، نو ګورنر خپل دښمن خوشحال خان نظر بند کړے و ، چې دغه نور به وډاروي.

چې دې کښې د خوشحال بابا خپله کورنۍ هم ګناه کاره وه.

حقیقت دغه وُ چې خوافي ډېر پښتون دښمنه سړے و، او د خوشحال نه ورته خطره وه. ځکه چې خوشحال په دربار کښې ډېر ملګري لرل. مګر بیا هم مغلي ګورنر ویده پښتون وپېښ کړو او د وۀ يې جنوری ۱٦٦٤ء کښې پېښاور کښې ونیولو. اپریل کښې ډهلي ته بېړه وکښې ور سېلو . لنډ میاشتې دهلي

کښې و. بیائې جنوري شروع کښې (۱٦٦۵ء) رتهمبور ته ولېږلو
هلته قلعه کښې شاهي قیدي شو. دې میخ کښې د بابا ملګري
دربار کښې په دې برشول چې بابا بې قصوره د پادشاه مخ کښې
ثابت کړي او مئ ۱٦٦٦ء کښې یې د نظربندۍ نه خلاص کړو
او دري کاله نظربندۍ نه پس اګست ۱٦٦۸ء کښې پښتونخوا
ته واپس راغلو.

اوس بابا وینې شوے وُ. د مغلو نه یې زړۀ شین وۀ که
څۀ هم مغلي ګونډان یې څنې ملګري وو او د بابا درهائۍ یې
کوشش کړے و. مګر د بابا نه د اسې مات و چې د مغلو
د پاره ېې ته د خدمت جذبه کړانه وه. او بل د وایتي دښمنان
یعنې یوسفزو و اوس د اسې د پښتو او پت کاروونه کړي وو
چې د بابا د پاره مشکل وه چې د مغلو د پاره د یوسفزو خلاف
بیا توره پورته کړي. چې د لنګرکوټ مخالفت یې څر ګند مثال
دے.

د لنګرکوټ متعلق بابا وائي:

لنګرکوټ مغلو سان کړو

زۀ په ننګ بیا د افغان شوم

که یوسف وو که مندړ وو

زۀ د دواړو نګهبان شوم

څینې خلک وائي چې د خیبر په جګړه کښې خوشحال خان

د مغلو ملګرتیا او بدرګه کړې وه . کډ سرې ورته د هغې وخت حالات او خوشحال بابا سره د نواب امين خان ګورنر کابل بنېګړې په نظر کښې ونیسې ، نو بیا به د بابا بدرګه یا ورسره ښک به ور معلوم شي .

د بابا د مغلو خلاف دښمني اول سر کښې ذاتي او شخصي وه . ولې په دې چې د وئ د مغلو نسلونو نسلونو خدمت کړے و ، د داسې يد لې خیال يې نه و چې د مالیې په پلمه به بادشاه او د دۀ ګورنر داسې کار وته کوي چې خپل روايتي دوستان اکوړیان به داسې بې عزته کوي .

د راهدارۍ متعلق د بابا لمسے ښاغلي افضل خان خټک "تاريخ مرصع" کښې داسې لیکي :

« مطلب د امیرخان هُم داؤ چې کړیو لوے سړے قید کړم ، چې نور یرې وویروم چې راهداری منع کړم اوکډنه په بل رنګ به پښتانۀ داکار ونۀ مني . »

بل ځاے لیکي : « بادشاه له چې ورغے ، بادشاه ورته ووے چې رهداري دې منع کړے ده . ورته يې التماس وکړو ، چې راهداري هسې نه منع کیږي ، څو د زبردستۍ عمل ونه کړم . بادشاه ورته ووے چې نه ولے د زبردستۍ عمل نه کوې . وې وے ، په دا سبب چې د تا عمده زمیندار دے يې د تا د حکم په هغو زبردستي کولے نه شم . بادشاه ورته ووې ، ما حکم درکړے دے ، هر طور چې

د تا کار کېږي هسې کوه. په دا شان مبهم عرض يې اوکړو ځواب يې بيا موندو ده »

د دې نه صفا معلومېږي چې گورنر امير خان خوافي اورنگ زېب ته دخپل دشمن خوشحال بابا خلاف د کارروائي سپروانه و اخيسته. مگر بابا دومره ورکوټي سړے نه ؤ چې امير خان خوافي او د ده ملگرو هضم کړے وائ. دوه درې کاله خو يې بابا ته عذاب کړو، مگر د دې سره د مغلو خلاف چې کوم نقيان را پورته شو د هغې اثرات موندو وينو. بابا اوس وينښ شوے ؤ، د ذاتي مفاد اتو په ځائ يې ملي سوچ اړخ ته پام شوے ؤ او دسترگو پړدې يې خلاصې شوې وې او د مغلو په هريو کار يې سوچ کولو، نو زر ورته د دوئ چلې ناکړدے معلومې شوې. روستو مغلو کوشش کولو چې د دې نقصان تدارک وکړي، مگر اوس ناوخت ؤ. که څه هم بابا يکدم بغاوت ونه کړو مگر passive عمل يې شروع کړو. يعني د مغلو ښېرته خدمت نه تو به.

د يوسفزو متعلق سوچ او ښېتون او مغل دښمنۍ ته يې اوس په بله سترگه کتل شروع کړل. د خيبر او تاتړې جگړې متعلق بابا پخپله وائي چې :

« يوسافي جينۍ د کوښړ فوجدار حسن بيگ خان د عسکرو له خوا بې عزته شوې وه، په دې باندې يوسافي

قوم خلقو عسکر مړهٔ کړل او فوجدار حسن بیګ خان حملې هم ناکامې شوې، په دې باندې د صافیانو، اپریدو، مومندو او شینوارو د مغلو خلاف ترون جوړ شو.

په دې وخت کښې د صوبه کابل صوبیدار ګورنر سباغلی مهابت خان په ځائ سباغلے محمد امین مقرر کړے شوے و، چې مهابت خان او محمد امین خان دواړو د بابا د خلاصون کوشش کړے وو.

بابا وائي:

آفرین د میر جمله په زوی په باندې
چې نن دے د میر بخشي په استقلال
کهٔ هزار توري جمد رغشي ورپړي
دهٔ نیولے دے زمانې سرخیل په ا ل

او افضل خان لیکي: " دے د محمد امین خان په تلاش د رنتبور له کوټ نه د خدای په عنایت خلاص شهٔ "

نو ځکه بابا هم د محمد امین چې اوس د صوبه کابل ګورنر وُ، د دهٔ ښېګړې یې په زړهٔ وې، د دې مطلب قطعاً دغه نهٔ وُ چې د بابا زړه د مغلو سره ښه وُ. د لته صرف د محمد امین خان ګورنر خپل شخصیت و. چونکه د صوبه کابل ګورنر صوبیدار به اوړي کښې کابل او ژمي کښې پېښور کښې وُ، صوبیدار نواب محمد امین خان په سپرلي ۱۶۷۲ء کښې د کابل دپاره روان شو،

چې ورسره د خليل مومندو اربابان، ځيني اورکزي مشران او نانبه خوشحال خان بابا ملګري وو. د مغلو خلاف د پښتنو لښکر مشرګيري ايمل خان مومند او دريا خا اپريدي په لاس کښې وه. د دې مغلو تر خيبر اولواړګئ (لنډي کوتل) پورې ولي.

انضل خان د دې متعلق ليکي: «چې څه وخت د محمد امين کوچ پېښ شه، شنواري او مهمند چې د خيبر حد حدود د دوئ په جمع کې لښکر وکړ په خيبر کښې د غريب خانې غاښې ونيوه، نور پښتون هم کم کم ورسره وو. محمد امين خبر شه، مسلک مستجاب ارباب د پېښور او نور سرداران د پښتنو دا فريدو د اورکزو چې ورسره وو واړه يې مصلحت و پښتبدل، په سبب د محمد امين د غرور عالم واړه راضي وه چې کړ چشم زخم ده ته ورسي او له ملاحظې هم هغه وويل چې د ده د مرضي موافق وو، پس تر يې خان علين مکان تنها خلوت ته وباله، پو ښتنه يې وکړه چې څه مصلحت دے - هغه او ان کښې چې خان علين مکان قيد وه محمد امين نيکي ورسره کړې وه په دا صوبه کښې چې وه په سبب د شرم دستګرفتګي رعايت يې ورسره کولو، ځکه راضي وه د ايې ورته ووې بيت

که با هيچ نا داشت کشتي ميګر
فريبے فرستش که طاعت کنه

ستاشان د ديو سره د مقابلې نه دے، نه بويه - د وئ

سهل عالم دے ، دا ساعت یې وغلوه چې له لاری تفرقه شی
چې بیا ترخپیر تېر شي هغه چې پوهېږي هغه کړه . بیا اراده
دالهی څوک جاریستے شي . د ده په زړه دا تدبیر بد ولګېد
بیت : چو بختش نگون بود در کاف دکن
نه کرآنچه نیکانشس گفتند کن

ورته یې ووے چې خوشحال یو سړے و چې سړ دے وهلے
مار یې تو بره کښی واچوهٔ ، چې ګرم شهٔ بیا هغه سړے یې
وچیچه چې ماد تاسره نیکی کړې وه - ته ما وته د اهسې
مصلحت ښئې ۔ زه به بادشاه ته څه ځواب کوم ، چې له دې
هسې بد سګانو هراس وکړم . دے هم له خپله هراسه له
هغه خبرې واوښت - له د هښته یې ورته وویل چې هګاه
ته یئ دا راضي یې ، زهٔ دوهاندې ته را پسې - آخر یې کوچ
وکړ ،،

د دې نه معلومېږي چې بابا رښتیا ورته ویلي وو
او په صوبېدار یې زړه خوږ بده ، مګر مغلی ګورنر د بابا
د مصلحت نه بالکل بل څهٔ مطلب اخستے ؤ . نو ځکه یې بابا
ته د مار مثال ورکړے و . کهٔ چرې صوبېدار ته بابا ویلی
وے ، چې پروا مه کړه یې ورځه ، نو دغه به د بابا باوفائي
وه . مګر بابا ورته سپېرهٔ حقیقت وویلو . نو ځکه نواب محمد
امین خان ګورنر صوبه کابل داسې وهل یې وخوړل چې هر څهٔ

عزت، ناموس، پت، دولت، حیثیت هرڅه یې وبایلل.

چې څه وخت گورنر په خیبر ورمارچ شو، نو

د هغه لښکر څلویښت زرو نفرو باندې مشتمل و. اول ارباب مستجاب مومند لښکر یاتو ته ورغلی و، او د رنګاولو یې ورته ویلي وو چې لښکر رهنګ کړي، مګر ایمل خان او دریا خان دې ته تیار نه وو. آخر د مغلو د پوځ او پښتنو ترمینځ لنډی کوتل کښې (خیبرکښې) خونړے جنګ شروع شو. پښتانهٔ داسې په مېړانه وجنګېدل چې د مغلو فوج یې تار په تار کړو. د صوبیدار لوېنه، زامن، سخې حرم، زومان هرڅهٔ دلاسه ورکړل. څوک مړهٔ شول، څوک د پښتنو قیدیان شول. د مغلو بېګمانو خیبر کښې کوکې وهلې، څوک نه وو چې دوئ یې خلاص کړې واے. مغلو یوه پښتنه صافه بې عزته کړې وه د هغې په بدل کښې پښتنو په هزارها مغلې بېګمانې ونیولې. په مغلو باندې دخداے قهر نازل شو. څوک وائي چې مغلي څلویښت زره فوځ مړ شو. څینې ری ټونه وائي چې نه دُدوئ ټول تعداد څلویښت زره وُ. د دې جنګ عینې شاهد خوشحال بابا داسې خپله روزنامچه کښې لیکي "چې په غره د محرم سنه زر دري اتیا لښکر د محمد امین خان په خیبر کښې تروب شهٔ، زه او مستجاب د واړه ودسره وو. د تهترو پلارې راوړو، پېښاور لره راغلو. محمدامین دڅو سورو سره

دعلی مسجد په لارې پېښاور ته راغلو. تمامه خیلخانه حشم
یې پاتې شول. مور، خور، لور، خادمان واړه بندي شول.
عورته یې و مړه، زوی او اخښئے یې ومړل. زه سخت
بیمار وم. د تهتر و پېغوږو کښې کله پلې کله سور راتلم.
ډېر په ځان شوم. اشرف خان م محمد امین ته واستوهٔ
خوار زار حیران ناست وهٔ، اشرف خان ندې پېښتنه وکړه
ورته یې ووې چې دِ ما سلام هم پلار ته وو ایه چې سبه چې
روغ راغلې. له بیمارۍ د ې خدائے صحت درکا. که څه طاقت
لرې تر ما پورې راشه. ورنه راغلم، پړکښ باندې پروت وم
اشرف خان هم رور ترکوره رسولم. په نوښهره کښې په بسیرے کیناستم
عالم سره برهم درهم شهٔ. د مغل پښتانهٔ سره اعتبار ولاړ.
قصیده په هغه وخت داوه:

بیت	چې دانا تر نادان لاوړ نې بستر
مګر نه دے دا ژوندون څهٔ معتبر

مستجاب وتړم په خیبر تهتر وکښې ووے چې زوراور
کار پیش شهٔ یو مصلحت سره او کړو. دا ناقباحت مهم وهٔ.
دا یې وویل چې سنه بیابه سره وکړو. دا بیت په آخر ددې
قصیدې دے:

بیت	مستجاب مُهمند کړچرکه دمُغل ده
زهٔ خوشحال خټک خو بال یم ځائے مې غر

د بابا د ډائرۍ نه معلومېږي چې پښتنو به مغلو باندې کوم حال جوړ کړے و . مگر د لته هم مستجاب ارباب د مغلو د حلوا تال په طمع و . بابا سره يې هيڅ مصلحت نه کولو.

داسې معلومېږي چې بابا د مُغلو نه خفه و، خو يو خاص پلان يې تردې وخته نه لرلو . او يا په بله معنیٰ د سرکارۍ پښتنو د خپل اولس نه هيڅ داسې طمعه نه وه چې داسې کاروَنه به په مغلو کوي . دغه کار ناشاپې شوے دے . ايمل خــان او دريا خان خو فوجې برے وموند ه ، مگر د پرياگتــه يې هڅې وانه حنسته ، دا ځکه چې دوئ د جنګ نه پس به څه کوي؟ دا پلان ورسره نه و.

خوشحال بابا مخکښې ليکي : « نور که هر څو مغلو بللم نه ورتلم ، ورته مې وويل چې زِ ما اولس هم واقعه طلب دے چرې به فساد وکا. د خپل ولس په بند وبست مشغول يم . اشرف خان دوه ځله پېښاور ته ورغلے وهٔ ، محمد امين خان بنده يره مهرباني ېرِ کوله . زهٔ به نظام پور کښې ناست وم . په دا ميځ کښې فـدائي خان خزانه راوړه - دِ ما اولس راته وويل چې خزانه به وهو . ماورته وويل چې د مغل پښتانه خو اعتبار يا تو ندشۀ - زهٔ اول هم د مغلو داغونه په زړهٔ لرم چې بې تقصيره يې په قيد کړم - ولې نمک حرامي کېږي - څلويښت پنځويشت کاله څلور پنځه پښته ما د مغلو نمک خوړلے دے ،

خزانه يړ وهم . القيصه فدائي خان له اشرف خان دا تكتر سينده پورې ودغی .خزانه يې ورسره پورې كړه . پښنا ورته ته ورسېدهٔ داشرف خان تُلق يې ړ ږښ وكړ ، سرو پيا ـــ يې وركړو ، را رخصت يې كړو. چې فدايي خان پښنا ور لره ورغئ ، مستجاب يې وواتهٔ ، ملكان د مهمند و ما لره راغلهٔ بازيد خان ددهٔ ترهٔ ورسره و ، ما هم پهٔ ننګ د پښتا نهٔ زاهو زاد له سرايه راووست نظام پور لره م راووست. قصه م دا تېک دنيوو وكړه ، چې اتېک به ونيسم ، لار به د پښنا ور بنده كړم . مغل به خود هلاك شي . په دا مينځ مهمند واړه بيا مغل لره ورغلل چې اوس بوچه خان د مستجاب نزهٔ په خدمت د دولتخواهي دمغلو ملا وتړله . زهٔ حيران شوم . مهابت خان صوبه بيامونده ، د دهلي نه را روان شهٔ بيا پې مالره يې كښل راستول چې زه خو د تا په ملګرېه نازېږم ما لره په مخه راشه چې د ملک بندوبست مصلحت سره وكړو . ما خو يوه پهٔ نړهٔ كښې نيولې وه . دمُغل د نوكرۍ مزې م په زړهٔ كښې شلولې و. ورته م هرڅې راست درست وو وكښل او دا رُوباعی م ورته په فارسي كښې وكښه :

گفتم که مغل شوم بشمشیر زدن افغان را کہ بسر بریدم گردن
آخر نشدم همان افغانم حیف است بکس کوشش بی جا کردن

محمدامین خان هندوستان ته روان شهٔ ـ ملاحظه یې
دېره کوله چې ورته ویل چې خټک به دې د اټک په گودر کښې
تالان کاندي ، اما دِ ما پهٔ نېره کښې بې له نیکۍ د دهٔ سره
نور هیڅ نه وو. په دا سبب چې زهٔ دا ورنګ زېب په قید کښې
وم، احسان یې را سره کړے وهٔ. د خیبر په تلو مې نصیحت ورته
کاوهٔ ، هغه ورځ چې د پېښاور له ښهر یې کوچ وکړ، په باغ
بادشاهي کښې دېره شهٔ . زهٔ یې خلوت ته وبللم ، پوښتنه
یې را څخه وکړه . ما ورته عرض وکړو په هر شان چې شي
د پښتنو سره مخالفت مه کړه . دا زمانه په هر رنګ آشتي
ترمیان کړه چې دې جنګ په خیبر کښې ونه شي ، هغه عالم
د تا د مقابلې نهٔ دے . که ما ورته ښه نصیحت وکړو مګر دهٔ
را ته مثل وکړو چې خوشحاله یو کس وهٔ چې مار یې ساړهٔ وهلے
په توبره کښې واچوه ، چې ګرم شهٔ بیا یې هغه سره وچیچهٔ .
له تا سره ما نیکي وکړه ته ما ته داهسې بدراهي ښیې . بادشاه به
ما ته څهٔ وایي چې دے پښتنو ډېر ووېروهٔ . نور چې دا
یې وویل دِ ما ملاحظه وشوه . ورته مِ وویل چې هرګاه
نواب جنګ بهتر ګڼي اول زهٔ پسې نواب . ویې نه ما نهٔ
ولاړ شهٔ ـ په ازل ورسېدل وو ورسېدهٔ ، ګنه ما د
نیکخواهۍ تقصیر ونهٔ کړو.
عرض کښل مِ ورته اوکړهٔ چې نواب دې خاطر جمع لري په اټک

به هيڅ آسيب نۀ وي. راغے تر اټک پورې ووت ډېر انتظار يې وکړ چې يو زوئ ېتا راشي چې راسره وو يبنو، څه به ورته ووايم. د اشرف خان رضاوه کړ ما ورواستوي، ولې دِ ما ملاحظه کېده، نه مِ ورستاوۀ. سعــادت و تهِ مِ ووے - هغه ځان بيچاره کړۀ - بهرام بد فرجام وته مِ ووے محمد امين تر سـينده پورې وتلے وۀ. بهرحال ولاړشۀ،

دخوشحال بابا د ېکنې نه دا ثابته شوه چې نواب محمد امين سره دوئ ولې تلي وو. دغه صرف او صرف د نواب صاحب دښېگړې يه ځای کول وو چې د هند دښد يه دوران کښې يې دبابا سره کړې وه. مګر خوشحال بابا د مغلو خلاف و، مګر د دے کاروبو ته چمتو نه و، لکه خزانه لوټول او يا خپل پخوانے يار نواب امين تالا کول. خوشحال خان يو نوبلNobel دښمن و. د روښانی عبدالقادر محاصره د پېښاور او بيا دخيبر اولواړګی جنګ يه مېنځ کښې ډېر وخت نۀ تېر شوے. د عبدالقادر دخلافت وخت ۱۶۲۲ء نه تر ۱۶۳۴ء پورے وۀ، دا سې ښکاري چې که څه هم يه توم روښانی تحريک يا تی نه وۀ، مګر پښتنو کښې د روښاني تحريک جذبه يا مړانه وه. کېدا ے شي چې د پېښاور محاصرې خلک هم يه دې جنګ کښې وو، چې دوی به هغه وخت نوي نوي ځوانان شوی وو ولې يه دې چې دغه جنګ ۱۸-۱۹ او ۲۰ اپريل ۱۶۷۲ کښې شوے وو.

د لته بیا خوشحال بابا لیکي:

« یو محمد امین خان په واحد صورت هغو پښتنو جمعدارانو دخیبر په لارې روان کړو، پېښاور ته یې ورساوه، نور مالونه خزانې حشم خدم، فرزندان محلونه هرڅه ورسره وو، داواړه دتمام لښکر پاتو شول.»

هُم دغه لوبه په ۱۸٤۲ء کښې په پرنګیانو وشوه چې یو ډاکټر برائیډن نیم ژوبل حالت کښې ځني پاتې شوے و.

اوس د پښتنو او مغلو په مېنځ کښې اعتبار پاتې شوے نۀ، یو بل د موقع په تلاش کښې وو. دریا خان او ایمل خان خپلو کاررواېو ته دوام ورکړو، بس څه وو یو نه ختمېدونکے لام دمغلو او پښتنو تر مېنځه شروع شو. که څه هم مغلو خپل تجربه کار سړے مهابت خان بیرته دکابل دصوبې ګورنر کړو. دبابا ملګرے هم و، مګر بابا اعتبار نه پۀ کولو. دا ځکه چې یو خو بابا په رښتیا د مغلو مخالف شوے و او بل دمستجاب مومند ارباب انجام یې لیدلے و. بس اوس خوشحال بابا ذهني د ې ته تیار و او ځکه یې ځان دملي غورځنګ سره ملګرے کړےو. که څۀ هم دغه غورځنګ دۀ نۀ شروع کړے. مګر دغه دپښتنو خوش قسمتي وه چې بابا دغه وخت مغل دښمن شوے و، او زمونږه تاریخ یې روښانه کړو. که بابا دلته د اخون درویزه لول لوبولے وائے، نوکېدا سے شوه چې دا ایمل خان

او د دریاخان دغه څوانمردي په یو بل شکل کښې تاریخ ته ور سپارلے شوے واۍ. دا ځکه چې د دوی دغه واقعات پخپله نۀ دي لیکلي او نه یې لیکلا ے شول. نو دغه به تیارو کښې پاتې شوی واۍ، مګر د دوی خوش قسمتي وه چې لوی نابغه خوشحال بابا دوئ ژوندي کړل او د دوئ په بهادری فخر کوی :

ایمل خان دریا خان دواړه مړګ یې مه وي
هیڅ تقصیر دواړو ونه کړو وار په وار

د خیبر دره یې سره کړله په تو بینو
په کړپه یې هم روان کړو د ندو کار

پښتو مشهورې جګړې شوې دي چې (۱) د تاتړې جنګ (۲) د دوابې جنګ (۳) د نوښار جنګ (٤) د ګنداب او یا کړپه جنګ (۵) خاپوښ جنګ دے.

خوشحال بابا وایي :

ړومبے جنګ د لوړې شا د تهترو وُ
چې ځلوینت زره مغل شول تار په تار

د پښتنو خوش قسمتي دغه وه چې دې پاڅون کښې چې څومره جګړې شوې دي د لوی پښتون خوشحال بابا له خوا لیکلې شوې دي. د نظم او یا د نثر شکل کښې. ګني

خداے خبر چې دمغلو درباري تاریخ دانو به څه لیکل،
په دې بټولو جګړو (کښې) مشهور جنګ دعلي مسجد دخیبر درې
و، چې د پښتنو مشرګیري ایمل خان مومند او دریا خان
اپریدي کوله. د مغلو له اړخه د کابل ګورنر مظفرحسین
چې د فدائي خان یې لقب و، کوله. اورنګ زیب مجبوره
شو چې د دکن نه شمال اړخ ته راشي او حسن ابدال کښې یې
ډیرې واچولې او د پښتنو خلاف فوجي مهماتو رهنمایي
یې کوله. اورنګ زیب مظفرحسین (فدائي خان) ته حکم
ورکړو چې خیبر دره خلاصه کړه، چې علي مسجد باندې
ورته د پښتنو لښکر ؤ او دره پښتنو بنده کړې وه، ولې
په دې چې مغلو دلته ماتې خوړلې وه. (نواب امین ګورنر
کابل) دلته بیا مظفرحسین ماتې وخوړله. مغل د دره
خیبر په ځائې د بازار او څاڅوبې په لاره لاړل. د خاپوش
په جګړه کښې مغلو ذلیل ترینه ماتې دایمل خان دلاسه
وخوړله. چې د مغلو د پوځ کمانډران مکرم خان او
شمشیرخان وو. دغه جنګ جون ۱۶۷۵ء کښې شوے و.
چې څه وخت دمغلو فوج پښتنو تیت پرک کړو، نو
دریا خان جنرال شمشیر خان قتل کړو او مکرم خان
درې ځایه سخت زخمي شوے ؤ، دباجوړ په لار ه
وتښتېدو، چې څه وخت د دې Disaster تباهۍ خبر

اورنگزیب بادشاه ته حسن ابدال کښې ورسېدو، سو
ډېر وار خطا شو. همدغه شان خوشحال بابا د اپرېدو
او خټکو په کومک په نوښار حمله وکړه چې مغلو او دده
باغي زوئے بهرام لښکر ته یې ډېر تاوان ورساوه. پدې
دوران کښې د دریاخان افریدي ورور تاتارخان په مشر
ګیرئ قوم پرستو پښتنو په کوهاټ حمله وکړه. چې
دې جنګ کښې بنګښو د مغلو طرفداري وکړه، قوم
پرستو ماتې وخوړه. تاتارخان د شیر محمد بنګښ دغدارۍ
په وجه شهید شو، مګر د اخور درې یوبل جنګ کښې
اپرېدو دمغلو او خټکو مشترکه فوج ته ماتې ورکړه،
چې اشرف خان خټک، د خوشحال بابا مشر زوئ د مغلو او
خټکو د فوج مشر ګیري کوله. همدغه وجه وه چې خوشحال
بابا خپل اولاد، خاصکر بهرام خان او اشرف خان خپلو نظمونو
کښې کنځلے او غندلے دی.

د پښتو نخوا خاوره او ژمکه د مغلو د پاره نوده تیغه
جوړه شوې وه. هرځاے په مغلو حملې وې. ستمبر ۱٦۷۵ء
کښې اورنګزیب بادشاه حسن ابدل کښې یوبل نړه ماتې خبر ورسیدو
د جګدلک تانی مشر هازبرخان او دده زوئ او وه سره نټول
فوځ یې د پښتنو د لاسه مړ شوې و. د لته په مغلو باندې غلجي
پښتنو قبایلو سره ورځ توره شپه کړې وه. د جلال آبا د-

گند مک او جګلدلک کښې سختې جګړې روانې وې، چې مغلو باندې تندر پریوتے و. او بادشاه ډېر وارخطا ؤ.

خوشحال بابا غلځویو ته ډېره شاباسي وايي او خاصکر هغه میړانه چې دوئ دجګدلك تانې ته مغل ندوو پرېاښي او دوی یې وار په وار په شاتمبولي او مرۀ کړي وو.

یو بله جګړه دګوم بت وه چې شېرمحمد خان بنګښ خوشحال ته ماتې ورکړې وه، مګر زرې خپل بدل واخیستو بنګښانو ته یې ماتې ورکړه او د بنګښو ډېر کوټونه یې رنګ کړل. دغه کار په ۱٦۷٦ء کښې شوے ؤ.

د قوم پرستو پښتنو آخري فتح په مغلو او د دوئ دوستانو پښتنو باندې په دو آبه کښې په ۱٦٨٠ء کښې شوې وه. څۀ وخت چې اورنګ زیب ولیده چې دخوشحال خان او دده د ملګریو فوجي مقابله ګرانه ده، درواېتي پښتنو دکمزوریو نه فایده واخسته، یعنې دولت، رشوت او منصب یې ورسم کړل. او بل د دریاخان او ایمل خان مرګ هم دغه قومي تحریک ته ډېر زیان ورساوه. خوشحال بابا بوډا ؤ او دخپلو فوجي جنرالانو دمرګ په وجه یوازې پاتې شو. چې بل اړخ ته ورته دښمن مغل او بې خونده سرکاري یا مُغلی پښتانۀ وو. دې لوے پښتون په سنه ۱٦٨٩ء کښې حسن خیل افریدي د امباره موسئ دره کښې دجمعې په ورځ ساه ورکړه.

زوستو اولاد د بابا مړے اکوړي ته ژوړو. اسوری با لا ،
چې د اکوړي نه شپږ کیلومتره لرې یې خاوروته وسپارلو.

دغه لوے پښتون چې اوس په بڼه اتوب کښې انقلابی
شوے و، د نیمګړو ارمانونو سره زړه ماتے خاوروته لاړو.
د شمالي پښتونخوا د پښتنوهلې ځلې د یوملي حکومت جوړولو
او مغلو د ژغ نه د ځان خلاصولو قسمت یې نه ؤ. دغه بخت
او نیکمرغي دجنوبي پښتونخوا د پښتنو په قسمت کښې وو، چې دوي
نه صرف د صفوي د ژغ نه ځان خلاص کړو، بلکې د یو ملي
حکومت بنسټ یې کینبودو، چې روستو دغه حرکت د افغانستان
دجوړولو موجب شو.

اوس بڼېینبور په ځای قندهار ته راشو او دمیرویس
نیکه په ملي او ولسي غورځنګ به بحث وکړو:

# میرویس خان هوتکي او صفویان

لکه څرنګې چې معلومه ده چې شیر بابا همایون د هند
نه فراري کړو، نو ایران کښې همسایه شو، نو بیا وروسته
یې د هند تخت د ایران په کومک بیا واخستو. کیدای شي
چې د دوی تر مینځ څه لوظونه شوي وي. اول سرکښې مغلو
د قندهار نه ترکابله پورې علاقې خپله عملدارۍ کښې
شاملې کړې. په ۱۶۲۲ء کښې ټوله د قندهار- کابل او غزني

علاقې ما سواى د هرات نه د مغلو په قبضه کښې وې.
د شهنشاه جهانګير په وخت کښې د دې ګورنر شاه بيګ
دې سړي ديوسفزو، مومندو پښتنو خلاف ډېر جنګونه کړي
وو. د دې بدله کښې مغلو د دې علاقې واکدار کړو. اکبر
بادشاه د کندهار او غزني والي کړو. په ۱٦٠۵ء کښې اکبر مړ
شو، د دهٔ زوئ جهانګير شاه بيګ په خپل ځائ پرېښودو.
۱٦٠۲ء کښې د بيمارۍ په وجه مستعفي شو. او اشرف خان نومې
د کندهار ګورنر شو. (۱٦۲۲ء) خوشحال بابا وائي:

بيا دې څهٔ فتنې آغازې کړې آسمانه!
چې عباس دې را روان کړو لهٔ ايرانه

په ۱٦۲۲ء کښې شاه عباس صفوى پخپله ديو لوئ فوج سره
د کندهار د فتح کولو په غرض را روان شو. د کندهار والي (ګورنر)
اشرف خان د بادشاه جهانګير نه مدد خواست وکړو. د
ملتان ګورنر تيار وُ، مګر جهانګير منع کړو، وې ويل
چې د بادشاه مقابله به بادشاه کوي. چې دے د هند نه
راتلو شاه عباس قندهار فتح کړو. د غه شان زمونږ
غلجي او ابدالي پښتانهٔ د مغلو په ځاے د صفوى ترعملدارۍ
لاندې راغلل. د شاه عباس د کاميابۍ وجه يوه دغه هم
وه چې د پښتنو خيال وُ چې د مغلو د ذليل سلوک نه به د
ايرانيانو چلن د دوئ سره د برابرۍ په اصول وي. چې

دشاه عباس په وخت کښې يې دې پوره پوره عمل کېدو،
مګر د ايران ګورنر روستو دَ دوئ سره هغه مُغلي سلوک
شروع کړو. دوئ يوه جرګه شاه عباس ته بوتله او ورته
يې شکايت وکړو. شاه عباس ددوئ درخواست منظور
کړو. دَ دوئ خپل مشران يې حاکمان مقرر کړل چې د يو نوم
سدو (دسدوزونيکه) و. دَ هغه بل نوم محمد وُ چې دَ
بارکزي قبيلې نه يې تعلق درلوده.

دشاه عباس په زمانه کښې پښتانه په آرام وو. مګر
د دهٔ د مرګ نه پس ۱۶۳۷ء کښې دَدهٔ نمسے شاه صفوي په
تخت کيناستو. دا بادشاه ظالم، سخت ګير اوغيرمستقل
مزاجه وُ. په دې وخت کښې جهانګير هم مړشو، د دهٔ زوئ
شاه جهان (اکتوبر ۱۶۳۷ء) تر نوم لاندې د هند بادشاه شو.

شاه صفوي يو حريص پاچا وُ، دهٔ به د خپلو حاکمانو
نه ډير په ذليله طريقه دولت را ټولولو. پښتنهٔ پلمه به ي
دربار ته وغوښتل، بيا به يې ځنې دولت واخيستو او دوئ
به يې مړهٔ کړل. همدغه شان دوئ دکندهار ګورنر علي
مردان ته دربار ته د حاضرېدو خبر ولېږلو. علي مردان
ته خو پته وه چې دے څومره ذليل بادشاه دے، نو په
ځائ د دې چې ايران ته لاړشي په پټه يې د هند بادشاه
شاه جهان سره خط وکتابت شروع کړو. همدغه شان د

ایران په ځای هندته لاړو. کندهار یې مغلوته وسپارو. شاه جهان د دوی ډېر قدر وکړو. په ۱٦٤۱ء کال شاه صفي مړشو او د هغهٔ زوی شاه عباس ثاني په تخت کښینا ستو. د ماشوم والي نه یې د کندهار دبېرته فتح کولو اراده وه، او بل پښتانهٔ د مغلو نه خفه وو. نو د دې پخپله راغے د پښتنو ملک قندهار یې بېرته د مغلونه قبضه کړو. کهٔ څهٔ هم شهزاده اورنګزیب ډېر کوښښ وکړو چې قندهار قبضه کړي، مګر پښتنو او ایرانیانو د مغلو منصوبې په کلکه شنډې کړې. شاه جهان د اورنګزیب په ځای یو بل زوی دارا شکوه کندهار ته ولېږلو. د دهٔ سره لوئ فوج ؤ. دې فوج پر قندهار حمله وکړه، مګر د ایرانیانو او پښتنو لښکر ته دَ شهزاده داراشکوه فوج تینګ نهٔشو. کابل ته بېرته ستون شو.

مغلو د قندهار د نیولو اراده پرېښوده. ایرانے بادشاه د پښتنو نه ډېر خوشحال و. دوی ته یې التماونه ورکړل او سالانه خراج یې هم نیم کړو او داخلي خود مختاري یې ورکړه.

د شاه عباس ثاني په وخت کښې قندهار کښې امن و. مګر کال ۱٦٦٦ء کښې بادشاه وفات شو او شاه سلیمان د هغهٔ په ځای بادشاه شو. دغه هم شریف بادشاه ؤ. دَ پښتنو سره یې روییه ډېره ښه وه، مګر دے هم په ۱٦٩٤ء کښې وفات شو. دَ دهٔ زوی سلطان حسین د ایران پاچا شو. دغه ډېر سخت متعصب،

وهمي او آرام پسند و. دَ ده پتوَل واک دملا یانو او
خواجه ګانو سره ؤ. بادشاه دشیعه ملایانو په لمسون دپښتنو
سره زیاتے شروع کړو. ایراني افسرانو پښتنو ته سپک کتل
شروع کړل، رشوتونه اوظلمونه یې راواخستل. پهٔ دې بانډې
پښتنو یوه جرګه بادشاه ته ولیږله چې دهٔ ته دخپل نیکونوسلوک
پښتنو سره وریاد کړي. مګربادشاه ډیرکمزورے و چې دَ
درباریانو په لاس کښې ؤ. عیش اوعشرت کښې غرق ؤ. دَ
پښتنو دجرګې دقدر کولو په ځائې یې دوی ولتا سپک کړل
چې دَ دې سلوک په وجه ایله پښتانهٔ ویښ شول او ایراني
حکومت او بادشاهي دَپاره دتباهۍ ذریعه جوړ شول. دا ځکه
چې اوس بادشاه پښتانهٔ دمحبت په ځائې په دار سمول
غوښتل. چې دغه مشوره ورته خپلو مقامي افسرانو او
متعصبو شیعه ملایانو ورکړې وه چې دپښتنو ملي تحریک
داوس نه ختمول پکار دي. نو بادشاه دلوئ فوج سره
دستالین خپلوان ګورګین کندهار ته راولیږلو. دے په
اصل کښې دګرجستان یعني جارجیا یوعیسوي و، چې دې وخت
کښې جارجیا هم دایران یوه صوبه وه. دایران خلاف جارجي
قوم پرستو چې کوم بغاوت کړے و په هغو کښې ګرګین هم ؤ.
دے دایراني فوج دَلاسه قیدي شو، ځان یې دمرګه پهٔ دې
خلاص کړو چې دې ویل چې زهٔ مسلمان کیږم اودبادشاه

په فوج کښې نوکر کېږم ، چونکه دغه یو ظالم او زړه ور انسان و ، نو ځکه ایراني بادشاه د پښتنو د ځپلو د پاره ورته جرنیلي ورکړه او د پښتنو په قتل عام پسې ایرانیا نو را ولېږلو. د مسلمانېدو نوم یې شاه نوازخان ؤ . او په ۱۷۰۲ء کښې یې د قندهار واک واخیست. د پښتنو د علاقو حاکم شو. داسې ظلمونه یې را واخیستل چې په تېرو سلو کالو کښې پښتنو د مغلو او ایرانیانو نه نه وو لیدلي . د پښتنو مال او عزت باندې یې حملې شروع کړې. د ګورګین شاه نوازخان د فوجیانو د ظلم د لاسه ، واړه ـ زاړه هیڅوک په امن یاتې نه شول. دده عسکرو به په زور سره ځې بې عزته کولې ، کورونه یې ورانول ، ځاروي به یې په زور حلالول ، یعنې داسې ظلمونه یې شروع کړل چې حد یې نه ؤ.

د پښتنو دغه امید نه و چې د شاه عباس لو اولاد به مونږ سره د خپل یو ظالم په مکر مسلمان شوي عیسوي ګورنر په واسطه د غسې ناروا سلوک کوي - ګورګین خلاف یې بادشاه ته زارۍ وکړې مګر بادشاه د پښتنو یوه غوښتنه هم و نه منله. د وي بادشاه ته وړیا دکړل چې مغل درسره مونږ په ګډه ووهل . مګر بادشاه باندې د غو خبرو هیڅ اثر و نه کړو.

چونکه د قندهار په قبضه کولو باندې د مغلو او صفویانو سیالي وه ، خو پښتنو د ایرانیانو پره کړې وه . ګورګین

ویل چې پښتانهٔ ډېر مغرور دي، زه ځني باد ومبا سم.

بادشاه ته د شکایت د پاره د ریم ځل د پاره ۱۷۰٦ع کښې د پښتنو یوه پله جرګه اصفهان ته ولیږله. مګر دغه هم سیکه اوناکامه شوه. بادشاه د ګورګین خلاف هیڅ نه منل. اوس ګورګین اوډده بادشاه د پښتنو کورونو ته سنوار واچول دوئ راوېښ شول او ډېر لږ وخت کښې ګرګین او بادشاه د خپل ظلم او تکبر میوه وخوړه او هغه داسې چې:

د جنوبي پښتنو قسمت سره ؤ چې د ې وخت کښې خدائ جل جلاله ورله یو داسې سوړه دماغه او هوښیار مشر ورکړې ؤ. د دهٔ په عقل او صبرباندې د ایرانی ګورګانی د ظلم جام داسې نسکورشو چې بیا د پښتنو نه بغیر ترڅو ورځې پورې بل چا په قندهار کښې حکومت ونه کړے شو.

د ګرګین نه مخکښې میرویس بابا د لته پخپله علاقه کښې حاکم و چې ورته یې "کلانتر" ویلو. افسرئ نه علاوه په غلجیو پښتنو کښې ډېر مقبول و. دا ځکه چې بابا د پښتنو په خوئ خصلت سره خبر و. نهایت زیرک، بهادر، تجربه کار او سره قوم پرست و. د وخت سره او تودو نه سره خبر ؤ. او د خپلې قبیلې ځوانان یې د جذباتي کارونو نه منع کول او ورته ویل یې چې د داسې کارونو په ذریعه موږ ګورګین ته د نور ظلم کولو موقع برابروو. لکه څرنګې چې امیرخان

خواني د خوشحال د سیاست او تجربې نه ډارېدو، همدغه شان د ګورګین په سترګو کښې میرویس بابا ؤ. داځکه چې میرویس بابا دېر سوړ دماغه او لرې کتونکے سیاستدان ؤ او خپل خلک یې د بې فایدې بغاوت نه منع کول. چې دغه نمونه کار ونه د ګرګین خوښ نه وو.

د ګرګین سیاست دغه ؤ چې پښتانه بې منصوبې را پاڅوم او زهٔ یې بیا وډبوم. د دوئ دولت او عزت لوټ کړم، چې ځان بادشاه ته وفادار څرګند کړم. مګر پهٔ دې کښې میرویس بابا اهم ؤ. میرویس بابا د یو داسې پاڅون پهٔ تلاش کښې ؤ چې نه صرف ګرګین ختم کړي، بلکې د ایران د غلامۍ نه پښتانه د همیش دَپاره خلاص کړي. د خپل کور او واک خاوندان یې کړي. دغه نمونه منصوبې وخت، صبر او دوو اندیشي غواړي او دغه صفتونه زمونږ بابا کښې وو. چې د ګرګین چل ول په میرویس بابا برنډ شول، نو آخري حربه یې استعمال کړه. پهٔ بابا او ځینې نورو پښتنو مشرانو باندې یې تور ولګاوهٔ چې دوئ د ایران د عمالدارۍ خلاف پاڅون جوړولو. دوئ یې ونیول او دَ ایران شاهي دربار ته ولېږل. چې څهٔ

وخت میرویس نیکهٔ د دربار ته ورسید و، نو درباري کمن وري ورمعلوم شوے. دخپل سیاست او سخاوت په ذریعه یې دربارکښې ځانته ډله جوړه کړه، بیا د دوئ په ذریعه یې د بادشاه سره ملاقاتونه وشول. دګورګین منصوبې یې بادشاه ته ور په ګوته کړې او خپل ځان یې ورته یې ورته بې ګناه ثابت کړو او میرویس بابا ته ډېره زر ورمعلومه شوه چې د سلطنت بنسټ وروست دے. صرف د زور وخت د بد به باندې روان دے. نور د اسې څوک نشته چې دَ حکومت کولو صلاحیت پکې وي. او دربار خو دغرضیانو نه ډک و. او یورپي خاصکر روسي اثراتو ذرک هم ورته ولګېدو. او ایرانیان په اخلاقي طور باندې غورځېدلي وو.

بابا ته معلومه شوه چې پښتانهٔ له دوئ نه ډېر ممتاز دي، خو دبې اتفاقۍ او تربور ولۍ په مرض کښې اخته دي. تیار دي چې دغو مرضونو څېنې لرې کړم. نو د ایرانیانو نه آزادي اخیستل ګران کار نه دے. نو بابا کلکه اراده وکړه او د پښتنو آزادۍ او خپلواکۍ یې خپل مقصد وګرځولو او منځ غفلت یې لویه ګناه شمارلو. شپه او ورځ یې منصوبې جوړولې

او خپل مقصد ته درسېدلو لاره يې په پړاوونو تقسيم
کړه . پښتانهٔ ئې به سمه نه وهي ځانته بلاګاني جوړې
کړي ، مېرويس بابا په ئې به خونې او په عمل کښې ترټ
و . يعني دَ دې ډله حال صرف دهٔ ته معلوم وُ ، دخولې
برغولے يې پورې کړے وُ .

چې مېرويس بابا ته به ځوانان ورغلل او د ګرګين
د ظلمونو قيصې به يې ورته وکړې ، نو دَ بابا ځواب
به دغه وُ چې صبر وکړئ . ګورګين ټول کاروونه دَ
ستا سو دَ پاره کوي . په دې به ځوانان نه پوهېدل .
بابا به ورته ساده معلومېدو ، چې هغه مونږه تالاکوي
او بابا وايي چې دا زمونږه دپاره کوي .

دَ بابا مقصد دغه وُ چې دغه سړے دے چې په ظلمونو
وکړي او د پښتنو کونړته نسوار واچوي ، نو دوئ به
هلته خپله بې اتفاقي او ورور وژنه پرېږدي . دغه کار
ګورګين په ډېر ښه طريقه روان کړے وُ .

مېرويس بابا ته چې د پادشاه او دربار کمزورې
ور معلومې شوې ، نو تر منصوبې لاندې او ئې لاندې
يې د ګرګين خلاف کار شروع کړو . دمثال په توګه وېل
به يې چې ګرګين جورجيا کښې د لښ اختيار او توان مالک وُ
نو د شاه نه يې بغاوت وکړو او بيا چې ګرفتار شو

نو د ځان د خلاصې د پاره دَ عیسایي مذهب نه مسلمان شو . او نن صبا د دې صوبې واکمن دے او دغه سړے باندې اعتبار کول او دومره واک ورکول، زما په فکر او خیال د نیکمرغۍ لاره نه ده . او دغه سړے ځان ته ملګرے جوړوي . زه پوه نه یم چې آخر به د دې نتیجه څۀ وي .

رو رو میرویس بابا د بادشاه غوږ وته د ګرګین خلاف ډک کړل ، مګر دغه کار دۀ پخپله نۀ کاوه . د بل چا پۀ ذریعه به یې داسې نمونه خبرې د بادشاه غوږ ونو ته رسیدے . بلکه بادشاه پۀ دې پوه شو چې ګورګین میرویس ځکه لرې کړو چې د دۀ دَ آزادۍ او بغاوت په مخکښې خنډ وُ . چې بابا ته دغه ور معلومه شوه چې د دۀ سیاست کامیاب شو او بادشاه د ګورګین نه بدظنه شو ، نو بابا د باشاه نه د کندهار ته د تګ په ځائې حج ته د تلو اجازت وغوښتو .

میرویس نیکۀ حج ته لاړو ، هغه نور پښتانۀ خیل ملک ته راغلل ، پښتنو کښې یې د اتفاق دَ پاره کار شروع کړو . میرویس بابا دومره ځیرک اوهوښیار وو چې څۀ وخت مکې او مدینې ته ورسیدو ، نو د دې ځایونو عالمانو نه یې فتوٰی واخیسته چې هغې کښې د پښتنو پاڅون د شیعه ایران خلاف جائز ګڼلے ؤ . دا ځکه چې دَ بابا سره ډارؤ چې عین د پاڅون په دوران کښې ملایان خلق د اسلام پۀ نوم

ونه غولوي، چې د مسلمان حکومت خلاف بغاوت غیرشرعی دے.

د فتویٰ سوالونه داسې وو:

(۱) آیا مسلمانانو له دا جاېز دے چې هر کله یئ هغوئ باندې د خپلو مذهبي فرائضو په ادایګۍ باندې ظلم او زیاتے کیږي، چې هغوئ د خپل ځان د آزادۍ لۀ پاره د حکومت برخلاف وسله اوچته کړي؟

(۲) که چرې د یوې قبیلې مشرانو د یو کافر بادشاه په اطاعت باندې بیعت په زور اخستے شوے وي او هغه بادشاه د خپل قول او اقرار نه وجاړوځي نو دهغې قبیلې خلق د دې دَ هغه د بیعت نه آزاد شي او کۀ نه؟

د دې دواړو سوالونو ځواب د مکې او مدینې علماوو په (هو) کښې ورکړے و.

میرویس بابا دروغ نۀ ویل. حقیقت دغه ؤ چې ایراني بادشاه د متعصبو شیعه ملایانو په لمسون په پښتنو باندې ظلمونه کول او دوئ یې شیعه مذهب ته اړولو باندې مجبورول. او دغه کار یې د ګورګین په ذریعه کولو. او بل ایراني حکومت هغه لوزونه تړل مات کړي وو چې کوم د شاه عباس د زمانې نه دَ پښتنو سره کړي وو.

دحج نه پس بابا بیرته اصفهان ته راغے، د بادشاه

په خدمت کښې حاضر شو، او خاصکر د وزیر اعظم سره یې تعلقات ډېر خوانږهٔ کړل، تر دې حده چې باد شاه میرویس بابا د نظربندی نه خلاص کړو، بلکه هغه یې بېرته پخپله عهده کلانتر (ښاروال) باندې مقرر کړو او بېرته د کندهار د تګ اجازت یې ورکړو او ورته یې هدایت وکړ چې د ګورګین په ناسته پاسته خیال ساته. همدغه د بابا آرزو وه او په دې شپیو ورځو کښې روسی زار Peter the great یو آرمنی شهزاده روسي سفیر په ایران کښې مقرر کړے ؤ، او راروان ؤ، حکومت زاري روس دې سفیر ته مکمل واک ورکړے و، نو دهٔ د ځان سره بې شماره عسکر نوکران او دولت را خِستے و. ایرانی بادشاه د روسیانو نه یربده او دوئ سره غم ؤ چې پهٔ دې طریقه عیسایي روسی زار د ایران د نیولو منصوبه جوړوي. او دربار کښې ډېره وارخطایي وه، نو دې سلسله کښې بادشاه د میرویس نیکهٔ نه صلاح واخیسته. بابا ورته وویل چې وګوره د غه عیسایي سفیر د ایراني قانون هیڅ خیال نه ساتي، خلکو کښې دولت ویشي او راتلونکی وخت دپاره ځانته ملګري جوړوي. او بل اړخ ته جارجي عیسایي ګورګین چې په مکر مسلمان شوے دے، داسې معلومېږي چې یو وخت به دغه دواړه عیسایي یو لاس کېږي او په یاره به د ایران خلاف بغاوت کوي، په دې باندې بادشاه

نور هم په میرویس نیکهٔ اعتباري شو او دګورګین خلاف
یې مکمل واک ورکړو.

د د بار په وجه بابا دَ دوئ د کمزورۍ نه خبر شو
او بل د نارې روس د منصوبونه هم خبرشو. په یورپي
او ایشایی سیاسي مسایلو یې نورهم سرخلاص شو،
یعنې د هغه وخت جهاني سیاست نه خبرشو، او خپله
منصوبه یې داسې جوړه کړه چې هرڅه یې په نظر کښې
ونیول. بابا اوس تش د غلجیو مشر نهٔ و، بلکې د ټول
پښتون قام غم یې کولو او سیاسي بلاغت یې سنه پوخ شوے
و. چې څهٔ وخت واپس راغے، نو صرف نه آزاد شو، بلکه
هغه عهده بادشاه بېرته ورکړه، چې کومه یې د جلاوطنۍ
نه مخکښې وه.

ګورګین سور اورؤ چې دا څهٔ وشول چې په بېړۍ کښې
یې شاهي قیدي لېږلے و، اوس دغه دے واپس افسر
راغے. هغه هم ډېر چالاک ؤ د وخت تلاش کښې ؤ او بابا
هم اوس دَ جهاني او درباري سیاست لوبغاړے ؤ. بابا
په پښتنو کښې د ورورولۍ او اتفاق کار شروع کړو، مګر
ګورګین ته دغه چېرته منظوره وه. د بابا د سپکاوي دَ پاره
یې د بابا نه لور د خپل حرم د پاره د وینځې په طور وغوښته.
بابا دې ته برابر نه و، نو د لور په ځائې یې یوه سنګلې نوکره

دګورګين په واک کښې ورکړه ، خو ددې هيچا ته پته نهٔ وه او نوکره دومره ستړې نه وه چې هغې حال نه وايو.
دګورګين خيال وٌ چې زهٔ اوس دميرويس زوم شوم ، يو کال دواده يې تېر شوے نه وٌ چې دپښتين ترينو دټيکس ورکولو نه انکار کړے و . ګورګين دخپل جارجي فوج ډېره حصه په هغې پسې ولېږل له ـ او بيا روستو بابا ګورګين مېلمه کړو . دګورګين خيال وٌ چې زه دسحرګنۍ ميلمه يم ، مګر دميرويس بابا هغه پښتانهٔ ماشومان ،کونړۍ رنډې وريا دې وې چې دګورګين دلاسه تباه شوي وو.
بابا په ګورګين او ددهٔ په عسکرو باندې سبه شرا ب وڅکل . ټول نشه شوي وو . بابا ډېر سبه په تد بير سره اول ددوئ جامې وايستې او بيا يې په تيغ تېر کړل.
دهٔ پخپله دګورګين جامې واغوستې ، نورو پښتنو د عسکرو . دوئ د قندهار قلعه ته ورغلل . د باقې جارجي عسکرو خيال و چې ګورګين دے . بابا دخپلو عسکرو سره جارجي عسکر د دروازې دخلاصولو سره ختم کړل . قندهار يې واخيستو او پښتانهٔ يې متحد کړل . باقي جارجي فوجيان چې دپښين نه په لارې وو ، هغه پښتنو مرهٔ کړل . صرف اتلس کسان ايرانى دربار ته خلاص شوي وو او بادشاه يې خبر کړو . ايرانى بادشاه او درباريان ډېر متکبر وو

د دوئ دا خیال هم نهٔ وو چې میرویس بابا کوم کار وکړ
چې کندهار به د همېشه د پاره د دوی د عملدارۍ نه وځي.
او یا دغه پښتانهٔ به ایران لوټه په لوټه ولي.

دغه واقعه په ۱۷۰۹ء کښې پېښه شوه. بابا پښتنو ته
یو زوروَر تقریر وکړو: «که چرې تاسو کښې داسې خلق
هم وي چې د آزادۍ د بیش بها جوهر د قدر کولو جرأت
نه لري، هغه جوهر چې کوم خداوند کریم مونږ ته په خپل
لوی فضل او احسان مُفت په لاس راکړے دے، نو هغوئ
دې دا وخت ځان بېکاره کړي، زمونږ د جرګې نه دې واوځي.
مونږ به هغوی ته هیڅ قسم تکلیف یا کنډ نه رسوو. ولې هغوئ
دې په خوښۍ د یو نوي ظالم مالک په تلاش کښې د پښتنو د دې
پاک او آزاد وطن نه ووځي.»

(د پښتنو تاریخ، قاضی عطاء الله خانؒ، اول جلد)

مګر پښتانهٔ اوس د ګورګین ظلمونو ویښ کړي وو،
دوئ په یو ژغ بابا ته تر مرګه پورې د ملا تړ آواز ورکړو.
او بل د میرویس بابا قسمت په دې سبهٔ وُچې د ے خدائے ج
په داسې وخت کښې په پښتنو کښې پیدا کړے وچې ایراني
او مغلي هندي سلطنتونه په زوال وو. په ۱۷۰۷ کال کښې
اورنګ زیب مړ شوے وُ، هند کښې ګډوډي وه. د دوئ
دې پوزیشن کښې نه ووچې د ایران د آزادۍ نه پس

کندهار خپله مغلي هندي عملدارۍ کښې شامل کړي .
دوئ د ځان په غم وو. ايراني باچا ميرويس بابا ته
يو استاځئ راولېږلو او د ټولو خوږ و او ترخو نه يې خبر
کړو . ميرويس بابا دغه استاځے چې جاني خان نومېدو
بندي کړو. د دې د پاره چې دهٔ ته داوخت په لاس ورشي
چې فوج جوړ کړي او بادشاه به په طمع وي چې نن د ځے
که سبا ځواب راځي . او بل يې دغه ورته جوړ تول چې
پښتانهٔ نوره غلامي نه مني . چې سفير دومره وځنډېدهٔ
نو بادشاه يو بل سفير (استاځے) راولېږلو، چې دغه د
هرات گورنر وُ، د ميرويس بابا دوست او نوم يې محمد خان وُ.
ميرويس باباخپل دوست ته ووېل چې ته هيڅ حق نه لرې
چې ماته داسې ذليل تجويزونه وړاندې کوې . که چرې ته
زما ذاتي دوست نه واے ، نو بل عمل به مې درسره کړے وُ.
نور څه درته نه وايو ، مګر په کندهار کښې به تر هغه زما
د ميلمه په حيث ايسار روې ، ترڅو چې مونږه ايران فتح
کړه او بادشاه مو د تخته غورځولے نه وي .

اوس د پښتنو د بدل اخيستو وخت راغے . د دې سره
۱۷۱۰ء کښې ايراني باچا د ميرويس نيکهٔ خلاف فوج ولېږلو،
باباهم ورته تيار وو. چې جنګ وشو ايراني فوج ماتې وخوړله
د اتلسو مياشتو په دوران کښې څلور ځله ايراني فوج راغے

او هر ځل يې ماتې وخوړه. په دې ماتو باندې ايراني بادشاه پښتنو ته او خاصكر بابا ته ډېر په غضب او غوسه کېږي و، نو د بابا خلاف يې د جارجي ګورګين ورا ره خسروخان سره خبره وكړه او هغه د كندهار د فتح كولو او د خپل تره د بدل اخيستو په نيت را روان شو. د هلمند سره د دوئ په مېنځ کې جنګ وشو. خسروخان سره ۳۰۰۰۰ ايراني او دولتي زره جارجي فوج و. پښتانه ډېر په مېړانه وجنګېدل، مګر د بابا لښکر ماتې وخوړله. خسروخان زر د هلمند د سيند نه را پورې وتو او په کال (۱۱ - ۱۲ ۱۷ء) کښې يې کندهار محاصره کړ. که څه هم بابا ماتې خوړلې وه، مګر ميدان يې نه وو پرېښے. بابا کوښش کولو چې د خسروخان د فوجيانو د رسد لارې بندې کړي. بل اړخ ته د خسروخان عسکرو له خلقو سره هغه نادوا سلوک وکړو چې کندهاريان يې د تسليم کېدو په ځائے د عزت مرګ ته تيار شول. دوئ د تسليمېدو په ځائے مقابله کوله او باهر ميرويس بابا د عسکرو راشن وهلو. نو خسرو ډېر تنګ شو، نو مجبوراً يې محاصره وچته کړه، مګر اوس وخت له وخته تېر وو، چې څۀ وخت خسروخان د ايران اړخ ته روان شو، نو د شا نه ميرويس خان بابا د شپاړس زر (۱۶۰۰۰) پښتنو سره د بلې په څېر پسې را ورسېدو، بابا ايراني فوج جنګ ته مجبوره کړو.

خسروخان قتل شو او ایرانی فوج تار په تار شو. بابا بیا فتح ومونده، او له ټول فوج نه صرف (۱۰۰) کسان ژوندي پاتې شوي وو. او دغه جنګ په ۱۷۱۳ء کښې شوے و. په ۱۷۱۴ء کښې ایراني بادشاه دیو بل جنرال په کمانډ کښې چې محمد رستم خان نومېده، په واک کښې فوج ورکړو. دې جنرال د بابا سره څوځله جنګونه وکړل، مګر نتیجه یې دا شوه چې خپل سر یې خلاص کړو، په منډه ایران ته لاړو. د دې نه پس د بابا په لاس کښې ټول کندهار او د دهٔ شمالي او جنوبي برخې په لاس ورغلې. د ایراني یو بل یرغل په خلاف یې د پښتنو منظم کول شروع کړل. همدغه شان بابا هغه کار وکړو چې د روښانیانو، خوشحال خان خټک، ایمل خان مومند او دریاخان اپرېدي نه سرته نه و رسېدلې یعني د پښتنو د ملي حکومت بنسټ. بس بابا خدائے د یته متل کړے ؤ چې پښتانهٔ آزاد کړي. دغه لوے بابا د نومبر میاشت ۱۷۱۵ء کښې په دنیا تېر شو. د بابا نه دوه زامن پاتې شول، چې د یو نوم شیر محمود او د بل نوم میرحسین وو.

دوئ دواړه ډېر تکړه ځوانان وو، نو قومي جرګې د باباکش ورور میرعبدالله خپل مشر او باچا وټاکه. دغه ډېر بې خونده بې کاره او بې همته سړے وخوت. پټ په پټه یې د ایران خوشامند شروع کړې. د میرویس بابا کَنډې یې په او بو یوړل. چې څهٔ وخت پښتانهٔ ته لمي خبر شول، نو دوی د میرویس بابا زوئ میرمحمود

په مشرګیرۍ کښې د اپورته شول، بادشاه یې د تخته کوز او قتل یې کړو. د ده بې خونده د له تګله میراته شوه. دغه کار په ۱۷۱۶ء کښې وشو، میرمحمود د پښتنو بادشاه شو. ده د خپل پلار په شان د بهادرۍ او سخاوت خویونه لرل. تر دې وخته پورې د هرات پښتانه ابدالي د ایران د حکم لاندې وو، مګر دې شپږ ورځو کې هراتي ایراني ګورنر، دیو پښتون ز لمی سره زیاتے اوکړو چې نوم یې اسدالله و. دغه یې څو ورځې په زور ایسار کړے و، بیا په چل ځنې خلاص شو، نو خپل ابدالي مشران یې خبر کړل، هغوئ د بدل نیت وکړو. د ایراني فوج او ابدالي پښتنو ترمینځ جنګ وشو. ایراني فوجیانو شکست وخوړو او دغه ګورنر اسدالله په خپل لاس حلال کړو چې چا ورسره تیرے او زیاتے کړے و. په ابدالیانو پسې ایران یو بل فوج چې شمیر یې ۳۵ زره و، صافي قلي خان تر مشرګیرۍ لاندې را ولیږلو، دې فوج هم ماتې وخوړله، صافي قلي خان قتل شو، اسدالله فوراً د فراه محاصره وکړه، په دې باندې میرمحمود وارخطا شو، د اسدالله د قوت د ختمولو فیصله یې وکړه. د دوی په مینځ کښې جنګ وشو، ابدالیانو ماتې وخوړه او اسدالله شهید شو. د دې سره میرمحمود د ایران فتح کولو د پاره لاړو، مګر شکست یې وخوړو. کندهار ته په رسېدو سره یې د ایران د فتح کولو د پاره فوج منظم کولو باندې کار شروع کړو.

دویم ځل جنوری ۱۷۲۲ع د ایران د فتح کولو په نیت ووتو.
د ایران د دواړو اوغنتو ښارو نو علاوه د ملک دارالحکومت
اصفهان یې محاصره کړو. د ایران سلطنت وروستۍ، شاهي
درباریانو په پټه تول حال میرمحمود ته ویلو. بادشاه بخیله
ډیر توهم پرست او کاهل و. محمدخان قلي خان وزیراعظم
خیال دغه وو چې باید فوج د ښارنه ورچاپے ووځي او خندقونه
وکني. مگر بادشاه بې وقوف وو. د عربستان د صوبې گورنر
په میرمحمود باندې د فوراً برید کولو مشوره ورکړې وه، مگر
بادشاه دا نه منله. بادشاه جرگه راوغوښته، چې ملایان هم
پکښې ناست وو. دهغوئ دډلې مشر جرنیل فتح علي خان قاچار
و، دغه ډیره توهم پرست او ساده شوده قوجي وو. بادشاه
ته یې دغه خبره کړې وه چې ماته دا ستا آباد یوه بوډۍ ښځې
چې په هغې باندې ښاپیرې ناست دي، دا خبره کړې ده چې که
دېسه دوه پښې سره د درې سوو پنځویشتو مړو پلووایشتو لے
شي او په هغې باندې یوه پیغله ناوادۀ کړې جینۍ دولس سوه
ځله "لااله الا الله" ولولي، نو هرڅه چې هغه شوروا وڅښله
نو هغه سړے به دخلقو په نظر نۀ راځي. (قاضی عطاء الله دپښتنو تاریخ، اول ټوک)
بې وقوف بادشاه په دې عمل وکړو او د ډېرو مشورو نه پس
بادشاه دا حکم ورکړو چې شوروا دې په فوجیانو وڅښله شي.
آخری ۷ مارچ، ۱۷۲۲ع کال دغو پنځوس زرو عسکرو په شوروا

لرلې خولې په پښتنو پسې راووتل. ددوئ خيال وُ چې مو ستن څوک نه وينې او لوئ لوئ تو پان ورسره و. ددوئ او پښتنو په مينځ کښې جنګ جوړ شو. ايرانيانو شکست وخوړو. پنځوېښت زره قتل شول. باقي فوج خپلې خپلې صوبې ته وتښتېدل. رستم جنرال او احمدخان جنرال دواړه قتل شول. ايرانے بادشاه اوس کړوږ ؤ، آخر يې پښتنو ته دتسليمۍ سرټيټ کړ. په ۲۲ اکتوبر ۱۷۲۲ع کښې يې خپل تخت او تاج د ميرمحمود په سر کښېود.

ميرمحمود شاه حسين ته خطاب شو، چې بادشاهي د خدائے (ج) امانت دے چې چا ته يې ورکوي او چا نه يې اخلي. ته زما دپلار په ځائے يې، د ستا سره به ښۀ چلن کېږي، دُعا وشوه. صفوي شاهي ختمه شوه او دپښتنو غلجيو بادشاهي جوړه شوه، ميرمحمود د ټول ايران بادشاه شو. ملک کښې يې نظام ټينګ کړو، مګر دلږ وخت نه پس څۀ داسې چل وشو چې سودائي او شکمن مزاجه شو او ډېر په معمولي خبره به يې وژنې کولې. ډېر لوے پښتانۀ مشران يې مړۀ کړل او د ايرانيانو خو حساب نۀ و. داسې لېونے شانته شو. څوک وا يې چې مور مړ کړو چې ددې عذاب نه خلاص شي. مګر په ۱۷۲۵ع کال په خپل محل کښې مړ کړے شو.

دده نه پس پښتنو ميراشرف بادشاه کړو. ميراشرف کوشش شروع کړو چې هغه زخمونه جوړ کړي کوم چې د ميرمحمود

دوجې نه جوړ شوي وو. دخلکو سره يې نرم سلوک شروع کړو. دايرانيانو د زړه ګټلو دپاره يې ډېر اقدامات وکړل. مګر دلته بيا پښتنو کښې هغه زوړ مرض يعنې بې اتفاقي څرګنده شوه. هغه داسې چې جرنيل امان الله خان يوه بېړ تکړه فوجي و. ده شهزاده طهماسب سره پټ د مير اشرف خلاف خط کتابت شروع کړل، دا ځکه چې دوئ د مير اشرف په بادشاه کېدو خوابدي وو. دغه سازش ښکاره شو. امان الله خان مړ کړے شو، مګر د پښتنو په ليکو کښې بې اتفاقي ښکاره شوه، چې ايراني نوکرشاهي ددې نه فايده واخيسته، ملک ګډوډ و. ګاونډي ملکونو سترګې په ايران لګولې وې.

روسيان او ترکان لګياوو دايران د قبضه کولو هڅې يې کولې. ده کوشش کولو چې د ترکي سلطان سره ښه تعلقات جوړ کړي، مګر ترکانو دغه دده کمزوري شمار کړه. سلطان ترک د بغداد ګورنر احمد پاشا، د موصل صوبې ګورنر حسين پاشا ته حکم ورکړو چې مير اشرف باندې حمله وکړي، که چېرې هغه د ايران پرېښودو ته تيار نه وي. مير اشرف ورته چې رته ايران بې ډز بې ډوزه پرېښودو. د روغې ډېر کوشش يې وکړو او ترکانو ته يې خبر ورکړو، چې بايد د مسلمان وينه د مسلمان د لاسه توېيه نه شي. بايد چې موږ د عيسايي دښمن روسيې خلاف سره لاسونه يو کړو، چې دا د دواړو دپاره خطرناک دے.

مگر کم عقلو ترکانو د جنګ فیصله وکړه . میراشرف مجبور شو
د ترکانو او پښتنو تر مینځ جنګ جوړ شو. تر ډېره وخته پورې
د ماتې او بري درک نه لګېدو ، مګر په آخر کښې ترکانو ماتې وخوړه،
دولس ۱۲۰۰۰ زره عسکر یې قتل شول او پنځوس درنې توپې میدان
جنګ کښې پاتې شوې . د دې ټولو باوجود میر اشرف د ترکانو
سره نرم سلوک وکړو.

میراشرف ایران کښې د دښمنانو خلاف لګیا ؤ ، دلته کور
کندهار کښې ورته بله بلا جوړه شوه ، چې د میر محمود
ورور میرحسین هوتکی دخپل آزاد حکومت اعلان وکړو.
میر اشرف دخپل مورنې وطن نه کټ شو ، ایران کښې ګډوډې
وه ، روسیانو د ګیلان صوبه نیولې وه او مازندران او تهران
کښې ورته طهماسب ؤ. په دې شپو ورځو کښې په جنګي میدان
کښې یو بل لو بغاړے را څرګند شو چې نه صرف د پښتنو
حکومت یې په ایران کښې ختم کړو ، بلکې جنوبي او شمالي پښتونخوا
یې سره یو کړل ، مغل یې هند کښې وږول او آخر کار دغه
انتشاري توپان د افغانستان د زبن بد و موجب شو.

# طهماسب قلیخان، نادرافشار
# یا
# نادرشاه

دوی اندازاً ۱۶۸۸ع کال کښې خراسان صوبه کښې وزیږېدو. د دهٔ پلار شپون او کلهٔ ته ؤ. دهٔ هم په هلکوالي کښې گډه بانې کوله، چې ځوان شو، نو د غلو ملګرے شو او ډېر زر د دوئ سردار او مشر شو. لارې به یې وهلې او د دهٔ ځوانی تقریبًا ټوله په غلا، شوکې او داړه مارۍ کښې تېره شوه.

چونکه ایران کښې ګډوډي وه، نو ځکه دهٔ د دې نه فایده واخیسته. ډېر خلک د شوکې د پاره ورسره ملګري شو او د ګوریلا ییی جنګونو یې ډېره تجربه حاصله کړه او په خپله ډېر ظالم، بدخوئ او سرکشه انسان و. د دهٔ آوازې خورې شوې، نو طهماسب ته د داسې یو سړي ضرورت ؤ. شهزاده هغه د خپل فوج مشر کړو او د میر اشرف خلاف یې ولمساوو. د ډېرو جنګونو نه پس دهٔ پښتانهٔ د ایران نه داسې واپستل، لکه دوئ چې ایرانیان د خپل ملک نه ایستلي وو. میر اشرف د خپل وطن نه کټ ؤ او ایران ورته دښمن شوے ؤ. ماتې پسې یې ماتې خوړله. آخرکار یوازې په بدحال، وږے - تږے مړ شو. هغه

شان د پښتنو بادشاهي په ایران کښې خلاصه شوه .

طهماسب قلي خان د دې کامیابۍ نه پس طهماسب یوې ړوندې ته ترکړو او پخپله د نادر شاه تر نوم لاندې د ایران بادشاه شو. اوس د ده په فوج کښې د ایرانیانو نه علاوه یورپین هم وو، چې د توپخانې مشران یې فرانسویان وو. په ٢٦ فروری ١٧٣٦ء کال کښې تخت نشین شو. بس پښتنو پسې یې راواخیسته . د ایران د حدودو نه یې لرې کړل . اوس هرات او کندهار ورسته پاتې وو ، چې هرات کښې ابدالي پښتانهٔ وو او کندهار کښې د میرویس بابا زوئ شاه حسین بادشاه ؤ . تقریبًا ٢٦ کاله د آزادۍ په وجه د کندهار خلک او علاقې اسوده شوې وې . د وئ آزاد وو. د میرحسین زمانه چې د ١٧٢٢ء نه شروع وه د کندهاریانو د پاره د نیکمرغۍ زمانه وه . اول نادرشاه هرات فتح کړو او ابدالیان ورسره یوځای شول ، بیا یې د کندهار نیت وکړو . پښتنو تقریبًا یونیم کال د نادرشاه مقابله وکړه او د کندهار محاصره یې کړې وه ، مګر روستو نادرشاه ځینې غونډۍ ونیولې چې د هغوئ نه یې ښار ویشته . د پښتنو بهادرۍ په نادر افشار باندې ډېر اثر وکړو او د جنګ په ځائ یې د سیاست نه کار واخیست . میرحسین ورسره روغه وکړه او نادرشاه د کندهار خپل ګورنر مقرر کړو او خپل فوج کښې یې غلجي پښتانهٔ بهرتي کړل چې د ولس زره ١٢٠٠٠

ابدالیان آوځلور زره غلجیان و او ددوئ مشر يي نورمحمد خان علی زئ مقرر کړو . هم دغه شان ۱۷۳۷ع کښي کندهار خپله خود مختاري د لاسه ورکړه ، اوس ایرانۍ او افغاني فوج د نادرشاه په کمان کښي د هند د فتح دپاره روان شو. د کابل او پیښور مُغلی ګورنرانو مقابله وکړه مګر شکست يي وخوړو، دا ځکه چې مغلو اېريدو ته موجبونه نه وو ورکړي ، نو دوئی خفه وو. دوئ نادر افشار ته پیسي وغوښتي ، نادر افشار انکار وکړو او په زور په خیبر ورننوتو. يوه مکمله میاشت اپريد و ایسار کړے و، آخري عقل ورغے،اپريد و ته يي بونګه ورکړه . که غلجیان او ابدالیان نه وے ، نادري فوجونه په خیبر کښي د اپريدو د لاسه تالاشوي وو. چې څومره به د پښتو لخوا ورته مشکلات جوړيدل ، دومره به يئ دهٔ باندي پښتانه ګرانيدل . چونکه دے پخپله یو بهادر او پیاوړے سړے ؤ نوځکه يي د انمونه خلک خوښ وو. په دېرو مسئلو کښي به يي د نورمحـــمدخان علی زئي نه مشوري اخیستي ، چې دي باندي ایرانیان ورته وریته ناست وو.

د پیښور نه پس يي لاهور او جهلم هم فتح کړل ، بیا په دهلی ورغئ. د مخکښي نه مغلي درباریانو پټ په پټه د دهٔ سره خط وکتابت کړے و او د مغلو باد شاه محـمدشاه

رنګیلا وُ، چې هسې نمایشي جنګ یې وکړو. نادرشاه ۱۳ فروری ۱۷۳۹ع کال کښې دکرنال سره نږدې مغلي فوج تهمانې وړکړه او ډهلي ته ورننوتو. دمغلو پتو له شتمنې یې دځان سره ایران ته یوړه، چې دکوه نور نه تر تخت طاووس پورې وو. دسرو او سپینو خو حساب نه وُ.

نادر په واپسۍ کښې په خیبر کښې بیا اپریدو راګېر کړو، دا ځل هوښیار شوے وُ. اپریدو ته یې لس لکه روپۍ ورکړې، ځان یې خلاص کړو. دایران اړخ ته لاړو. دبلې په څېر راغلے وُ دنړلې په څېر لاړو ورک شو، خو پښتونخوا یې سره یوه کړه.

ددۀ په فوج کښې دجنوبي او شمالي پښتونخوا ډېر پښتنو سره وپېژندل، چې دغه ډول ملګرتیاوې او رابطې دافغانستان په جوړښت کښې ډېر مدد ګار ې ثابتې شوې.

نادرشاه دخپل ایراني فوج دَلاسه ۹ جون ۱۷۴۷ع کال کښې قتل شو او پښتانۀ دخپل مشر نورمحمدخان علیزي په مشرګیرۍ خپل وطن ته واپس راغلل. اوس دپښتنو قسمت یو ځل بیا ویښن شو، خدائے (ج) ورله ځوان احمدخان ورکړو، چې دوئ یې دهېواد، عزت، نوم، پت او تاریخ خاوندان کړل.

# احمد شاه بابا
## افغانستان جوړېږي
### (اکتوبر ـ ۱۷۴۷ع)

کله سړے ورته ګوري نو خوشحال خان دګوړنو خوانی د لاسه هندکښې شاهي قيدي شوے و، او حاجي ميرويس خان دَ جارجي نسل ګوړنو د لاسه اصفهان ايران کښې شاهي قيدي شوے و. خوشحال خان شاعر او ليکوال و، خپل حالات يې پخپله وليکل. مګر د قيد په دوران کښې د خپل ذاتي خفګان نه علاوه د مغلو خلاف يې څه خاص پلان نه و جوړ کړے، مګر ميرويس نيکه په عملي سړے و. خپل مقصد ته د رسېدو پوخ پلان يې جوړ کړے و. چې د قيد نه واپس قندهار ته راغے، نو قدم په قدم يې عمل وکړو، چې نتيجه يې د پښتنو آزادي شوه. مګر دغه آزادي مکمله نه وه، د نادر افشار په يرغل ګډه وډه شوه. مګر قندهاري مشرانو يو شے نه ده کړو چې هغه د دشمن زور د دوی د غلامۍ سبب نه و، بلکه د دوی په اتفاقي وه. چې څه وخت دوی د ايران نه واپس راغلل، نو دوی پېردي پوه شوي وو چې نور دچا غلامي نه منو. دوی کندهار کښې راغونډ شول او د خپل بادشاه د خوښولو جرګه يې پيل کړه. دغه قدر يې خبره

ده چې بادشاهي دچا نه ده هوښه . نو د دوئ اتفاق نه راتلو.
وايي چې دوئ نهه ځله جرګه شول ، خو په چايې اتفاق نه
راتلو. حاجي جمال خان محمدزی ډېر کوشش کولو مګر دده
مخالف ډېر وو. وايي چې هدا سې جرګې روانې وې . پېژدې
ټولو جرګو کښې احمدخان ګډون درلود او پخپله چوپ ناست وُ .

احمد خان ځوان وُ، مګر د خبرونه او ناستې پاستې نه ډېر
دروند وُ او د ده په شخصيت کې درنښت وُ. آخر کار د يوې
داسې جرګې په دوران کښې يو ملنګ راپورته شو او پښتنو ته مخاطب
شو، چې تاسو په بادشاهۍ دځه د پاره جرګې کوئ ، خدائے تاسو
له بادشاه درکړے دے . دغه احمدخان ناست دے . چې د بادشاهۍ
ټول صفتونه خدائے پکښې اچولي دي . په دې باندې لاس پورته
کړئ د خير دُعا وکړئ .

وايي چې په دې باندې حاجي جمال خان نوم وايس واخيستو.
ملنګ دده په لونګۍ کښې يو ډکے ( دغنو يا وربشو وږے ) وټومبه، چې
دغه دده تاج شو.

پښتنو مشرانو احمدخان خپل بادشاه جوړ کړو. دغه
پېښه (واقعه) اکتوبر ۱۷۴۷ ع کښې پېښه شوې وه . هدغه شان
دپښتنو تاريخ کښې مونږ په جمهوري طريقه د جرګې له خوا خپل بادشاه
جوړ کړو، او د خپل هېرا د بنياد مو په خپله خاوره کښې کېښود .
ځوک وايي چې پښتنو مشرانو ځکه احمدخان قبول کړو چې دے

دزوره وري قبيلې نه نهٔ و. سدوزي د ډېر والي په وجه د محمدزو نه زورور نه وو، نو کېدای شي چې جمال خان خېله قسمت ازمايي د راتلونکي وخت دپاره پرېښي وي، چې تاريخ ثابته کړه. د سدوزو نه حکومت محمدزو ته پرته واخيست، او نه ۱۹۷۸ع کال (۲۸، اپريل) پورې يې وکړو.

زمونږ قسمت په دې سبهٔ وُ چې لوی احمدشاه بابا خپل ناستون ډهلي او يا ايران ته يو نه وړو. بلکه قندهار يې خپل ناستون وګرځاوه او بل يې زمونږ هېواد ته د نوې زمانې مطابق نوم ورکړو «افغانستان» او مونږ ته يې واضح هېوادي پولې (سرحدونه - بونډريز Boundries) وټاکلې. دا ځکه چې اوس احمدشاه بابا ته پته وه، اوس د دې وخت دے چې ټول افغانان په يو مرکز راجمع کړم او دوئ ته يو تاريخي شناخت ورکړم. د غه شناخت زمونږ په خپله خاوره باندې د اول ځل دپاره په شعوري توګه د هېواد بنسټ کېښودل وو. که چېرې احمدشاه هم د هوتکيانو غوندې ايران کښې ناست وے، يا لودهيانو، سوريانو او غلجيانو غوندې ډهلي ته تللے وے نو مونږ به هيچېرې تر ننه پورې د يو ملي شناخت (هويت) خاوندان شوي نه وے. يا به ايران کښې ولے او يا به هندوستان کښې. په دې ټولو خبرو باندې احمد شاه بابا په شعوري ډول پوهېدٔ نو ځکه يې پښتنو کښې د خپلې خاورې، کلتور او ميراث سره د مينې پيدا

کولوکوشش کړے دے. د ده شعرونه ټول د دې شهادت ورکوي .

بابا داسې بادشاه نهٔ چې ټولواک وُ، دهٔ ته د پښتنو کمزورے او بهادرے معلومې وې . دَ دوئ د خوېونو او عادتونو نه سنهٔ واقف وُ، دا ځکه چې دے پخپله دَ دوئ نه و. نو دهٔ خپله بادشاهي په زورنه، بلکې د پښتنو قبايلي مشرانو په صلاح او مشوره پيل کړه.

وايي چې ده يو وزارتي کونسل جوړ کړے و، چې پکښې (۹) چيده چيده سرداران غړي وو. او د جنګ او امن وخت کښې به دوی بادشاه ته صلاحګانې ورکولے او د پښتنو داخلي خود مختارے سره يې هيڅ چېړه نهٔ کوله، بلکې د هرې قبيلې مشر د مرکز په خوا د دوئ حاکم و. يعنې دوئ يې په داسې مېړنګ نظام کښې را ټول کړل چې د څهٔ ساه نه پکښې تر بېته ده او دېر چل ول سره يې دوی ته يو مليت احساس ورکړو چې کهٔ تاسو پهٔ اتفاق وئ، نوستاسو بادشاهي به وي. او هرې قبيلې دا محسوس کوله چې دَ دوی خپله بادشاهي ده. دغه ټول ځکه ممکن وو چې احمدشاه بابا داسې ډاکټر وُ چې د خپل قوم مرض هم ورمعلوم وُ، علاج او دارو يې هم ورمعلوم وو.

چې څه وخت دوئ اکتوبر ۱۷٤۷ع کښې د احمدشاه بابا په مشرکيرے راضی شول او د افغانستان بنسټ کېښودل شو، نو د دې مطلب دغه نهٔ وُ چې هر څهٔ کوږې کوږې وو. د پښتنو په واک کښې

تش کندهار او ورسره جوختې علاقې وې . هرات د ایران په لاس کښې و. غزنې ، کابل ، جلال آباد ، بلخ ، میمنه اوپېښور دغه ټولې علاقې دېردو په لاس کښې وې .

احمدشاه چې د تاج پوشۍ د مراسمو نه فارغ شو ، نو اول یې دا اراده وکړه چې کۀ چرې زۀ د افغانانو بادشاه وم ، نو هغه ټولې علاقې باید افغانستان کښې شاملې شي چې چرته پښتانۀ اوسي . نو د ې سلسله کښې یې د کابل ، غزنې او پېښاور ګورنر ناصرخان ته خط ولېږلو چې دغه علاقې د پښتنو دي ، نو ماته یې په خوښې سره پرېږده . دغه ناصرخان د مُغلو په وخت کښې هم دلته ګورنر و . چې څۀ وخت د نادر افشار سره یې جنګ وکړو ، بیا یې ماتې وخوړه ، د کابل نه پېښاور ته وتښتېدو ، هلته یې د نادرشاه نه معافي وغوښته . نادر هغه معاف کړو ، بیا یې په دې علاقو کښې نادرشاهي ګورنر په حیث وګومارۀ . نو دے بیا د اسې ګورنر شوے و . مګر ناصرخان انکار وکړو او د احمدشاه سره یې د جنګ اعلان وکړو . په هغه وخت کښې د کابل بالاحصار کښې دولس[۲] زره قزلباش عسکر وو ( یعنې دسرو تورېو والا ) چې دوی ترک وو او د شاه اسماعیل په وخت کښې شیعه مذهب شوي وو . دغه قزلباش ناصرخان نائب الحکومه د جنګ دپاره تیار کړل . احمدشاه د غزنې اړخ ته روان شو . چونکه دغو علاقو کښې پښتانۀ وو ، نو دوئ د ناصرخان

پره ونه کړه . دَ احمدشاه سره یو ځائ شول ، غزنے بغیر د مقابلې د احمدشاه په قبضه کښې راغے . د کابل سره ئن دې قزلباشو او ناصرخان معمولي مقابله وکړه ، بیا د پښتنو د فوج نه پېښور ته وتښتېدو . احمدشاه بابا کابل قبضه کړو او بیا ناصر خان پسې پېښور ته راغلو . د لته د احمدشاه بابا آوازې او د څمکنو میا صاحب په برکت پښتانۀ ټول د احمدشاه راتګ ته په انتظار وو . ناصرخان په ځان پوه شو ، د پېښور نه د هند غاړې ته وتښتېدو . احمدشاه بابا پېښور هم افغانستان کښې راګډ کړو . دغه ټوله کارروائي په ډېر لږ وخت کښې وشوه . یعنی اکتوبر ۱۷٤۷ء کښې تا جپوشي وشوه او دسمبر ۱۷٤۷ء کښې يې پېښاور راواټک ونیول . دومره لنډ وخت کښې له کندهار نه تر اټک پورې علاقې نیول د دې خبرې علامت دے چې پښتنو د احمدشاه بابا تش ستړے مشی کړي دي . دلته نه اپریدی ، نه غلجي ، نه خټک او نه یوسفزی راپورته شوي دي . یعنې د پښتنو ملي بیداري راغلې وه ، کښې اپریدو صرف خیبر کښې نادر افشار پوه میاشت ایسار کړے وُ . چې څۀ وخت احمدشاه پېښور ته راغے ، دلته يې د پښتنو د قبیلو د مشرانو سره ملاقاتونه وکړل او ور سره يې د هند د نیولو مشورې وکړې او دوئ ته يې دا جوته کړه چې دا د کندهاریانو حکومت نۀ دے بلکه د ټولو په شریک دے . دلته د ډېر پښتانۀ د بابا په فوج کښې بهرتي شول . بابا د پښتنو د مشرانو صلاح کاره جرګه وکړه . دوئ فیصله

وکړه چې په پنجاب ورتګ پکار دے. کاش چې خوشحال بابا ژوندے وے او ليدلي يې وے چې دکومو زلمو دهٔ ارمان کړے وُ هغه نن دپښتون بادشاه ترکمان راغونډ شوي وو، او پهٔ پنجاب يې ورداتګل.

بابا د سمبر کښې دپيښاور نه روان شو، داټک نه پورې وتو په دې وخت کښې دپنجاب ګورنر حيات الله خان وُ. احمدشاه بابا ۸ جنورۍ شاهدرې ته ورسېدو او په ۱۰ جنورۍ د راوي سيند نه پورې وتو او شالامار باغ کښې ډېره شو. په ۱۱ جنوري ۱۷۴۸ء کښې مغلي فوجيانو او افغاني عسکرو تر منځ جنګ وشو. حيات الله خان ماتې وخوړه، ډهلي ته لاړو. د مغلو ټول مال اسباب د افغانانو په لاس ورغئے. او بابا دلته جمعه خان قصوري خپل ګورنر ودراوهٔ. بيا بابا په ډهلي ور روان شو. دلته مغلو دوه لکه فوج جمع کړے وُ، چې په جديد يورپي اسلحه باندې مسلح وو. تر ډهلي پورې دپښتنو داسې رعب وچې مغلي فوجيانو چوکۍ خالي کړې وې، ټول مرکز ډهلي ته تښتېدلي وو. ډهلي کښې د مغلي لښکر کمان د وزيراعظم قمرالدين خان په لاس کښې وُ. ۲۵ فروري ۱۷۴۸ء کال کښې جنګ شروع شو. دپښتنو د توپې ديوې ګولۍ په ذريعه وزيراعظم قمرالدين خان ولګېدو، دمرګ نه مخکښې يې خپل زوے د فوج کماندر مقرر کړو. پښتانهٔ احمدشاه بابا ډېر په هُنر و جنګول او مغلي فوج تنرديګړو

چې شنښتېدلې وې، مګر د دوی قسمت سپه وُ. د پښتنو پرېپو بانديي اوږدو ولګېدو، ډېر پښتانۀ پکښې شهيدان شول. د دَوې کتلې جنګ په ماتې بدل شو، خو مغل يې دومره وهلي ټکولي وو چې دومره جرائت ونکړې شو چې په پښتنو پسې لاړ شي.

احمدشاه بابا بېرته کندهار ته راغی، په دې وخت کښې ډېر فرانسوي، پرتګالي، پرنګيان او نور يورپي زرخريد عسکر د مغلو په فوج کښې وو. نو کېدای شي چې دغه ډېر پوره او ر اچول هم د دغو شيطانت وي. دا ځکه چې احمدشاه او پښتانۀ د دوی د پاره په هند کښې فوجي سيلان وو. اوس بابا د هند په ځای د هرات خوا ته مخه کړه.

هرات چې د ابدالي قبيلې مرکز و، اپريل ۱۷۴۹ع پورې بيا ايراني حکومت سره وُ، اوس احمدشاه بابا دغه علاقه هم په افغانستان کښې شامله. مګر پرې دې وخت کښې يو د خفګان کار وشو، هغه دا سې چې، لکه زمونږه زوړ مرض دے چې څوک سرے راکښې پيدا شي، نو مونږه ورسره حسد شروع کړو او د ختمولو او بې عزته کولو کوشش پې کړو. همدغسې يو نامور پښتون دغه غلطي وکړه. يعنې نورمحمدخان علیزي چې د نادر د مرګ نه پس يې پښتانۀ قندهار ته راوستي وو. نو کېدای شي چې ده به دا خيال وچې پښتانۀ به دے بادشاه کړي. چې دا سې

و نشول ، نو حسد يې را وا خيست . دځو نورو سردارانو
په شمول دوئ دا احمدشاه بابا دمرګ سکيم جوړ کړو .
خود خداے (ج) فضل ؤ نو عملي کېد و نه مخکښې دغـه
( conspiracy ) يعنې سازش جوت شو . دوئ د
جرګې له خوا سزا شول او مړهٔ شول . دغه دپښتون بادشاه
دلاسه دپښتون جرنيل او لنې مرګ ؤ .
احمد شاه بابا خپل فوج ته فوراً په هرات دحملې کولو
حکم ورکړو . دمعمولي مقابلې نه پس هرات يې هم قبضه کړو ،
او دافغاني خاورې برخه شوه . او ورپسې يې بدخشان ، بلخ ،
تاشقرغان ، ميمنه ، خلم ، اندخوئ ، شبرغان او باميا ن
علاقې هم فتح کړې او افغاني عملدارئ کښې يې شاملې کړې .
په ايران کښې پېخپله ګډوډې وه . احمد شاه بابا مشهد هم
قبضه کړو ، مګر هغه يې په افغاني خاوره کښې شامل نه کړو .
بلکې د نادر افشار خپل خانه (يعنې شاه رخ مرزا ) ته يې حکومت
حواله کړو او دوئ سره يې ډېره مهرباني وکړه .
بيا کال ۱۷۵۰ع کښې په نشاپور وغيرې ، دغه ښارونه يې هم
فتح کړو ، په ايران کښې يې ډېر برے وموند ، مګر لوئ
احمدشاه بابا په شعوري توګه په ايران قبضه نه کولـه .
او دخپل طبيعت خلاف يې هلته په قدرت ساتل نه غوښتل .
او دے ځل د افغاني خاورې جدا حيثيت ساتل يې غته مرام ؤ .

چونکه د پښتنو خاوره یعنې افغانستان د هندي او پارسي سلطنتونو په منځ کښې وه، نو ځکه احمدشاه بابا ګاونډ کښې مضبوط حکومت نه برداشت کولو. ولې پدې چې زمونږ خاوره همیشه د هند او پارس نه تباه او غلامه شوې وه، نو بابا په ایران او هند کې داسې حکومتونه غونښتل چې دده ملګري وي او په فوجي توګه دومره زورور نه وي چې افغاني خاورې ته څه خطره پېښیږي، همدغه وجه وه چې بابا ایران او هند ونه نیول، خو افغاني خاورې سره یې ګډ نه کړل.

دلته د احمدشاه بابا کارنامې په تفصیل سره بیانول کتابونه غواړي، مګر سرسري کار پکار دی، هسې خو خو ډېرې برې یې وړي دي. مګر چې په تاریخي لحاظ او د پښتنو له پاره تاریخي افتخار دے هغه د پاني پت دریم جنګ دے.

مونږ ته ددې وخت تاریخ ښائي، چې مسلمانان په زوال وو، روسي زارې فوجیانو د عثمانیه ترکې نه او ایران نه د میرویس بابا په وخت کښې ډېرې علاقې قبضې کړې وې، او مرکزي ایشیا کښې د زاري روس او مانچو چیني سلطنت په منځ کښې مقابله وه.

مانچو چینیانو مرکزي ایشیا کښې قازق او بروت

قبائیل قبضه کړل تر اسحاکځ کول پورې دوئ شول. دکوکنلو خانان ددوی با جگذار شول. ۱۷٦۰ کبنی پیکنګ پیرن برګځ ته تجویز وړاندی کړو، چې مرکزي ایشا اسلامي خانان سره تقسیم کړو، روس انکار وکړ نو چیني جنرال "CH-IN-LUNG" خپل نیکه په پښتې کول چې نوم یې، جنرال "HANG-HSi" وُ، په ۱۷٦۲ کبنې د تاشقندا او سمرقند د نیولو فیصله وکړه. د ریاستونو-بیګان وډار یدل، احمد شاه بابا نه یې مدد وغوښتو او ورسره یې د کوکنلو او قازکځ بادشاهانو د مدد سوال اوکړو، بابا په منله ورغی د چیني جنرال خوب یې دخاورو سره خاورې کړو.

او دوچوبي یعنې دایران او مرکزي ایشادغاړې دزاري روس نه خطره وه، او د مرکزي ایشاخانان کمزوري وو. بلکې دچین هم زړه کیدو چې مرکزی ایشا قبضه کړي، هداسې یوجنګ کښې احمد شاه بابا یوچیني جنرال ته شکست ورکړ، اومرکزی ایشا خانان کوکنلو، قازک، سمرقند تاشقند یې دچینیانو نه وژغورل. او هندکښې حالات داسې وو چې مغلي پادشاهي نشه په نوم وه.

ټولو سمندري غاړو باندې یورپي سوداګراوسمندري غله داکوګان راجمع شوي وو، اوفرانسویان اوپرتګیان ورځ

په ورځ مضبوطیدل د مورداری د مرغانو غونډې یې دمغلو په
په سلطنت سترګې لګولې وې، او بنګال کښې ایسټ انډیا کمپنۍ
بالکل د بدمعاشۍ لوټې کولې او جنوب دهندکښې مرهټه
پورته شوي وو. داورنګزیب د وخت نه یې ګوریلا ئې
جنګونه کول. چې ترڅلې لاندې ورته پرتګلیانو، هالنډیانو، پرګیانو
او فرانسویانو ورسره مدد کولو او اسلحې یې ورته ورکولې.
پدې کښې زیات قصور د اورنګزیب په خپله ؤ، چې دے ډیر
متعصب بادشاه ؤ او د جاهلو درباریانو په خوله یې ځینې داسې
ناروا کارونه وکړل، چې ځان یې صرف د مسلمانانو بادشاه جوړ
کړو، بلکې نه د هندوستانیانو پدې باندې دهندوانو اکثریت آبادي
بد خوا شوه- او د مسلمانانو د ژغ نه یې دځان خلاصولو
کوښښ یې شروع کړ. چې دغه ته یورپي قومونو لږ هم
وهلے چې د دوئ خیال ؤ، چې هندوستانیان به اتفاق کړي
او کمزوري به کړي، بیا به دوئ ټول هند باندې خیټه واچوي
د هندي مغلي عسکرو وینه دهند دآب وهوا په وجه سسته
شوې وه، په دوئ کښې هغه عسکري قوت په خلاصیدو ؤ.
بل داسې څوک نه ؤ، نادرشاه راغلے ؤ دغلهٔ کار یې وکړ
هندوستان یې لوټ کړو، واپس لاړو، د مغلو کمزوري نور
هم جوته شوه، د دوئ دربار دسازش اضرانو نه ډک
ؤ، چې ډیر یې یورپي سوداګرو کمنۍ «Campany» په قیمت پکښې اخیستي وو.

لښکره دا چې ډېره ګډوډي وه، پنجاب کښې سیکانو مغلو دښمنان کړي وو. مرکزي هند کښې جټان وو. خو په دوئ کښې یو قوت هم ددې قابل نه وُ، چې په هند باندې حکومت وکړي او یا یې نظام سم کړي،او یو مضبوط مرکزي حکومت جوړ کړي، په داسې وخت کښې دافغانستان زړه پدل،او دپښتنو اتفاق او د زړه ورکۍ احمدشاه ظهور د یورپیانو اوهندوانو او خاصکر دپرنګیانو له پاره ډېر خطرناک وو، دا ځکه چې دغه تازه وطن،تازه فوج اوځوان احمدشاه، دغه ټولې خبرې دهند په مرۍ اوجودکښې بېره د ساه اچولو موجب کیداې شي . او بل په هند کښې پخپله دپښتنو یو لوئ تعداد نوابان او رئسان، موجود وو، چې دوئ دواک خاوندان وو، نو دوئ سره دا وېره وه چې که مرهټه، سیکهـ یاجټ اویا یورپیان هند قبضه کړي، نو اول ددوئ خیر نه شته، دا ځکه چې دوئ مسلمانان وو،اویل افغانان وو، چې دوئ به دمقابلې نه بغیر سرتیټ کړے نه وُ. په داسې حال کښې خدای (ج) احمدشاه را څرګند کړو.

او شاولي والله غوندې خلقو لوئ بابا ته لیکنې وکړې، چې دهند مسلمانان دکفر دظلم نه خلاص کړه، دغه غل اوړنګزیب کړلي وو، نو دلوئ احمدشاه بابا په غاړه ډېرې ذمه وارۍ وې په دې وخت کې داسلام او افغان اولس یو امید وُ، چې هغه احمدشاه وُ، مګر داسلامي جذبې با وجود بابا ډېر حقیقت پسند

و . هغه مذهبي جذبه کښې هیڅیرې خپل اصلي مقصد هیر کړی نه و، یعنې افغانی خاوره ځان ته ساتل، نه هند کښې ګډوول او نه ایران کښې.

اوس د بابا په ذمه زښت ډېر کار ونه وو، لکه څرنګه بیان شوي دي چې مرکزي ایشا کښې د مانچوچیني سلطنت او زاړي روسي سلطنت مقابله او سیالي وه، د ایران مرکزیت ختم شوی و، ګډوډي وه، د ایران د غاړې د روس د ړانګ امکانات هم وو، د مرکزي ایشا د غاړې د روس او چین نه خطره وه. که څیرې بابا ۱۷۶۲ کښې چیناني جنرال چین لونګ نه وی ډېولے، نو د مرکزي ایشا ترکیستاني دریاستونو تیرولو نیت یې کړے و، مګر چنیان پښتنو داسې وډبول، چې بیا یې د ترکستان اړخ ته متیازې هم ونه کړې.

پنجاب کښې سکهانو بدامني جوړه کړې وه، چې ډېر تکیانو ور سره لاس و، چې احمدشاه بابا د ډهلي د نیولو نه مشغول وساتي، جټان او مرهټه د وسره مست شول چې نه صرف ډهلی یې ونیوه، بلکې شهزاده تیمور او مشهور پښتون جنرال جهان خان دوی په دې مجبور شول، چې لاهور خالي کړي، ان تر اټکه راغلل، نژدې وو چې پښاور ته راغلي واے. مګر اوس بابا په جلال کښې راغی، د مرهټانو، جټانو، او سکهانو د ټکولو یې پوخ نیت کړی و.

دوئ په مرکزي هند او شمالي هند کښې په مسلمانانو باندې ظلمونه شروع کړل، د مغلو باچا د دوئ يرغمل و. او هندي پښتانه لکه روهيله او نجيب الله خان غونډې خلك په خطره کښې وو. نو دوئ احمدشاه بابا ته په هندباندې د حملې ليکنې وکړې، په دې شپو ورځو کښې بابا بلوچستان کښې و. ناصرخان بلوچ بغاوت کړے و، مگر بابا د ده د تيرو خدمتونو په وجه معاف کړو، نصيرخان احمدشاه بابا ته خپله ترله په نکاح ورکړه، چې دغه معمله ختمه شوه نو اوس بابا ټوله توجه د هند معلاتو ته ورکړه، باباچې کورنې حالات سم کړل، په ۱۷۵۹ ژمي کښې دلوئ فوج سره دکندهار نه د دره بولان په لاره د هند د فتح کولو په غرض روان شو، او د بلوچستان نه پښتنو، پښتنو کښې پېښور ته راغئ، او ټولې پښتنې قبيلې ور سره يو ځاى کېدلې.

دمرونو مشر بيکوخان هم ورسره و، د پېښور نه نيغ وزيرآباد ته لاړو، مرهټه چې خبر شوي وو نو دوئ د پنجاب نه دهلي ته واپس شوي وو، دلته بابا ديو بل پښتون جنرال سالارنورالدين سره يو ځاى شو، د پنجاب په هر يو ښار کښې يې بيرته حکومت بحال کړو، دشمالي پنجاب د سهارنپور په خوا د جمنا سيند نه پورې وتلو دلته د بابا سره هندې د روهيله پښتنو د مشرانو نومونه رحمت خان، دوندی خان، شاه دوله خان، فيض الله خان

فتح خان او ملا سردار خان بخش پښتانه مشران ملاؤ شول
چې نجیب الله خان حاکم سانپور او روهیلي پښتانه چې زیات
تعداد پکښې د یوسفزو وو، په دې ځای کښې دا ویل پکار
دي، چې په ۱۷۵۳ کښې وزیر غازي الدین خپل مغل شاهنشاه
دهلي احمد شاه د تخت نه کوز کړو. او دهغه ورارہ عالمګیر
ثاني یې په تخت کښېنولو، په کال ۱۷۶۰ کښې غازي عالمګیر ثاني
قتل کړو، او د مرهټو په ملګرتیا کښې یې د هند واک تر لاسه
کړ، چې په حقیقت کښې د مرهټو د لاس بوټانې وُ، د دې
ګډوډۍ په وجه صوبې د مرکز نه آزادې شوې، چې چیرته
څوک حاکم وُ د خودمختارۍ اعلان یې وکړ، او په دې وجه
ډیر پښتانه حاکمان خود مختار شول، ډهلی بالکل
یې واګه شو، مرهټه دومره زوور ور شول چې هند کښې یې
هرلوري ته یې تاراج روان کړے وُ. دوئ ډیر متعصب او کټاس
هندوان وو، د مسلمانانو ژوند یې دوزخي کړے وُ، د زور
کلئ غلامئ بدل یې ځینې واخیستو، او هند کښې داسې څوک
نه وو چې د دوئ غوږ ونه یې تاو کړے وائ، بس یو احمد
شاه بابا ته سترګې وې، همدغه وجه وه چې څه وخت احمد
شاه بابا سهانپور ته راغلو، نو هندي پښتانه یې کچې خوشحاله
شول، او په منډه د ملاقات د پاره راغلل، احمد شاه بابا ته داسې
خلک پکار وو چې د هند د کوټ ګوټ نه خبر وو، او ور سره

دولت هم وُ ، دسهانپور سره نږدې دمرهټه فوج دد ته پټيل او جنکوجي ترکان لاندې ميشت وو ، مګر چې څو مره به د افغانانو فوج را نږدې کېده ، نو دوئ به په شاتلل ، تر دې چې دهلي خواوشا ته ورسيدل ، دلته اولنۍ جنګ دپښتنو او مرهټيانو ترمنځ وشو ، هندوانو ماتې وخوړه او جنرال ده ته جي پټيل قتل شو ، احمدشاه بابا دهلې واخيستو . غازي الدين د دهلي نه وتښتيد وُ . سورجمل جټ سره دکمپيرچو نړ ي کښې همساياشو بابا څو ورځې په دهلي کښې وُ . دلته يې لږ فوج پرېښود ، او ده دګنګا اوجمنا ترمنځ د توپلې علاقې چې دوابه ورته وايي فتح کړې ، او انوپ ښار پورې لاړو چې ددهلي نه ۷۳ ميله لرې وُ . دلته باباخپل فوج راجمع کړ ، او دهندموسم برسات د تيرولو دپاره خيمه زنه شو ، هم دلته ورسره شجاعت الدوله چې د نواب وزير په نوم مشهوره وُ يوځا ئ شو .

د پاني پت دلوې او فيصله کنې جګړې نه مخکښې نورې هم ډېرې جګړې د افغانانو او مرهټيانو ترمنځ کېدلې .
دلته د سکندرآباد جګړې دليکلو ور دي ، پدې وخت کښې د نجيب الدوله د سيمې نه لس لاکه روپے د احمدشاه بابا دپاره روانې وې ، هم پدې وخت کښې مرهټي سرداران ملهار او هولکان سکندرآباد ته را ورسيدل ، نو ۲۸ فروري ۱۷۶۰ باندې سکندر آباد لوټ کړ ، نو احمدشاه بابا سره ويره پيدا شوه ، چې دغه

خزانه د مرهټیانو په لاس ورنه شي، نو بابا فوراً شاه‌پسندخان قلندرخان، اوجهان خان ته امر وکړ چې د (۱۵۰۰) فوج سره زر سکندرآباد ته ولاړ شي، او پر مرهټیانو برید وکړي، له دې نه مخکښې چې دوئ دګنګا علاقې و لوټلې او د روهیله علاقې چې بېچ باتې شوې، د شاه دحکم سره سم افغاني مشرانو دجمنا د سیند نه پورې وتل او د ملهار په مخکښې فوج باندې ناڅاپه را توئ شول، او د دوئ اصلي هیله کوار بتر نه اته میله لرې وو، چې افغانانو را پسار کړل، دوئ خو په هندي مقلوعات وو، او ګور پلائې جنګ یې ورسره کولو نو مرهټیان به همیشه کامیاب وو، مګر دوئ د افغانانو سره هم دغه چل کولو، مګر پښتانه خو مور زنده ګور پلائي وو، ټیله مرهټیان د دوئ په جال کښې ښخ شول. روهیله او افغاني فوج دوئ داسې وارخطا کړل چې د رک ځینې ورک شو، دوئ درې څلور ساعته مقابله وکړه، مګر ماتې یې وخوړله، او په تیښته شول، پښتنو یې تر څلوېښتو میلو پورې تعاقب وکړو. زښت ډېر یې مړه کړل، چې دغه درې جنرالان چې ډېر مشهور وو، وژلے شول: اندرام شتاجی خار دی او دده زوئ فتیرجی خار دی، د ومره وارخطا وي پرې را غلې وه چې ډېر بغیر ذین کړي آسونو باندې سواره وو، و تښتیدل، پدې باندې د دوئ سپه سالار دومره وارخطا شو چې اتیا میله منډه یې په ۲٤ ګهنټو کښې وهلې وه او داګرې۔

غاړې ته تښتيدلے ؤ، دغه تندر پر دوئ په ٤مارچ ١٧٦٠ پريوتے ؤ، چې ددې اندازه ديو مرهټي سردار د ليک نه څرګنديږي. چې له جانسي نه پيشوا بالاجی راؤ ته دمارچ په ديارلسمه نيټه دراجاکشار وراو لخوا ليکلي شوي وو.

ده ورته ليکلي وؤ «لنډه دا چې ابدالي «احمدشاه دراني» او روهيله ټول سره يوشوي دي، دوئ يوه ډيره ستره قوه او توپخانې او ډير سامان لري، نو دا ممکنه نهٔ ده چې لهٔ دوئ سره غوڅه جګړه وشي، زمونږ وس اولاس نه دوئ ته رسيدلے نه شي. مود غولونکو تاکتيکونو په ترڅ کښې ددکن له لورې د نوي فوج د رارسيدو لهٔ پاره ستړګې په لار يو، کهٔ دغسې يو فوج او طاقت راورسيږي، نو مونږ به ټول سره د دښمن ته يو ځائ ماتې ورکړو، نجيب خان اومهرا آباد بريلي علاقې او نور قبايل سره يو شوي، او د ابدالي سره يو ځاے شوي دي، داسې ويل کيږي چې له کابل نه نور تازه فوج دراني ته راروان دی، که چيرې ستاسې د خاندان کوم څوک دې خوا راځي نو مهرباني وکړئ دهغهٔ سره يو څه يورپي ټوپک او وسائل راولېږئ.

جنت مادوسنګ، او شجاع الدوله ټول د دښمن نه ويره کوي داتاجی شندې داسې ښښتې ته اړ شوي . وو، چې دا فغانانو له خوا ووژل شول . له دې امله ابدالي او روهيله ډير مغرور

دي، دويم داچې زموږ خپل فوج هم د دوئ په مقابل کښې مقاومت کولے نه شي، ملهاراؤ هڅه کوي، چې په خپلو چلونو سره په دوئ بريد وکړي، خو روهيله او ابداليانو دهندي مغلو په خير نه دي، دوئ په بريد او جګړه کښې سخت زړور او جنګيالي دي"

دغه وه ديو مرهټي سردار ژړا.

د احمدشاه دغه اول اوړے و، چې هندکښې يې تيرولو د دوئ وزير عظم شاولي خان ويل: چې موږ دوه دښمنان لرو، چې يو مرهټيان دي، او بله دهندکري ده. که خدائ ته منظوره وه افغانان به د دغو دواړو په کاميابۍ سره مقابله کوي، دلته احمدشاه په قراره ناست نه و، دمرهټيانو خلاف يې ځان ته ملګري جوړول د اودهـ دنواب سره يې دنجيب الله روهيله په ذريعه خبرې کولې، او د بادشاه سره دملاقات دپاره يې راضي کړو، خو هغه په دې کښې دوه زړۍ و، چې د احمدشاه سره يوځاے شي او که د مرهټيانو سره د ده کمزوري دغه وه، چې نواب داحمدشاه ملاقات ته راضي کړي، نواب شيعه و، او احمدشاه سُنی و، دښمنانو نواب په دې هم دارولو، خو ده د احمدشاه سره دنجيب الله روهيله په اعتبار کتنه وکړه، احمدشاه ورته د زوئ خطاب ورکړو، او د وزير عظمي چُغه يې ورکړه، نواب ورو سته خندل چې د وزيرعظمي چُغه لرم خو وزيرعظمي نه شته، احمدشاه

د جټانو او مرهټیانو ترمینځ اختلافاتو ته لمن وهله، اوغازي۔
الدین سره یې هم خبرې روانې وې، مطلب دغه دے، چې
د پاني پت جنګ نه مخکښې دوئ خان ته ملګري جوړول، مرهټیان
هم ویده نهٔ وو، دوئ هم د هرچا سره د ربښتیا او دروغو
معاهدې کولې، احمدشاه راجپوتو راجاګانو سره هم لوظ۔
نامې وکړې، احمدشاه دوئ سره خبرې پیل کړې چې د جنګ
نه بغیر یو فیصله ته ورسو، مګر مرهټیانو خبرې ختمې کړې
داځکه چې د سا داشیو مشرکړه لاندې لوئ فوج راغلے له ده،
سره (و بشواس راؤ) د پیشوا بالاجي راؤ اوولس کلن زوئ تش
په نوم د لوئ کماندر په حیث ورسره ؤ، دوئ دهلي ونیوو، او۔
لوټ یې کړو، د شاه جهان بادشاه د وخت دیوان خاص د سپینو زرو
جوړ چت یې مات کړو، او روپۍ یې ځینې جوړې کړې، د هلي نږس
مرهټیانو په توره علاقوکښې لوټ مار جوړ کړو، دوئ سره د غلې
غم ؤ، ولې په دې چې دومره لوئ لښکر مړول د توکو خبره نه وه، نو دوئ
هرطرف ته غلې پسې وتل، دوئ لنج پوره باندې حمله وکړه، دغه ځائ
د احمدشاه بابا اعتمادي عبدالصمد خان محمدزئ هشنغرې اومیا قطب شاه
په لاس کښې ؤ، او دلته دغلې کو دامونه وو، مرهټیانو په ډیرلوئ شیر سره په
دوئ حمله وکړه، دوئ په نره وجنګیدل، عبدالصمد خان محمدزئ هشنغرې،
شهید شو اومیا قطب شاه بندي شو، دا هغه عبدالصمد خان وچې څه وخت۔
احمدشاه بابا کابل ونیو، نو نا صرخان مغلي کورنۍ پېښور ته راتښتیدلے ؤ،
دلته یې لښکري ټولولې، او عبدالصمد خان هشنغرې پښتانو

د احمد شاه بابا له پاره راجمع کړل، ناصرخان په ده حمله وکړه، دے نړې وختي ځني تللی و او خیبر کښی د احمد شاه بابا ته ورغلے و. د احمدشاه بابا ډېر اعتمادي سړے و. نو مرهټیانو د احمدشاه بابا زړه ته گوتې وروړې. مرهټیانو دقطب شاه میا د راتاجی شنډاس د. مرګ! په بدل کښې پهانسي کړو، او د عبدالصمد خان محمدزي هشنغري او میا قطب شاه سرونه یې پریکړل او په نیزې کښې یې و ټومبل او بازار کښې یې دفتح په طور وګرزاول. چې څه وخت احمدشاه خبر شو، نو ډېر غمجن شو. سپه سالار جهان خان وزیر عظم شاولي خان، او روهیله نجیب الله خان او نور پښتانه مشران یې خپلې خیمې ته راغونډ کړل، او ورته یې وویل: « زه نوره دافغانانو داسې بې عزتي نشم قبلولے »

اودعبدالصمد خان محمدزي دشهادت خوندبه مرهټیان وڅکي، او س د مرهټیانو او پښتنو د روغې جوړې خبرې لاړې. ددوئ فیصله په پاني پت کښې کېږي چې بنګال کښې ایسټ انډیا کمپنۍ ورته ډېر په بې چینۍ سره انتظار کولو داځکه چې رابرټ کلائیو ایسټ انډیا کمپنۍ ۱۷۵۷ کښې پلاسي میدان کښې سراج الدوله ته دمیرجعفر په غدارۍ سره ماتې ورکړې وه. دغه دپاني پت دریم جنګ و، چې قدرتي خبره ده چې دریواړو کښې د پښتنو لاس و. دغې درې جنګونو د هند د قسمت فیصله کړېده.

دوه، پښتنو ګټلي او يو بايللی دي.

اول جنګ پاني پت د پرتهوی راج او د ده ملګريو او پښتون شهاب الدين محمد غوري ترمنځ شوی و چې غوري صاحب وګټلو.

دويم جنګ ۱۵۲۶ د ابراهيم لودهي او د بابر مغل تر منځ شوی و، چې پښتنو د خپلی بې اتفاقی له امله وبايله.

دا ځکه چې والي لاهور دولت خان لودهي او ابراهيم خان لودهي سره وران وو، نو بابر – دولت خان د کابل نه را دعوت کړ او دبابر فوج کښې زيات د غه د پښتون خوا پښتانه وو. نو ۱۵۲۶ کښې مغل بابر د پاني پت په ميدان کښې ابراهيم لودهي شهيد کړو، د افغانانو عزت، دولت او حکومت هر څه لاړل.

اوس بيا دريم پاني پت جنګ دی، چې د هند د قسمت فيصله به کوي، په دې کښې بيا يو اړخ ته پښتانه دي او بل اړخ مرهټيان د هند هندوان دي، راځئ چې وګورو چې څوک يې ګټي.

# دپاني پت دریم جنګ

## جنوري ۱۷۶۱ع

کله چې ساداشیو ډهلي ونیو په دې وخت کې احمدشاه دراني په انوپ ښار کښې ډېره و. د شجاع الدوله په ذریعه د مرهټیانو سره خبرې روانې وې، خو د مرهټیانو مشر د خپلو بریالیتوبونو په وجه دومره ډېر غره وو، د سره یو روغې ته تیار نه وو، داکتوبر د میاشتې په پیل کښې د ډهلي سره نږدې شاهدرې ته ورخوځېدو، او د جمنا د سیلاب په وجه پورې نه شو.

شاه د (کنجپورې ) په لوټیدو او د خپلو خوراکي موادو په چور کېدو او د پښتنو د مشرانو سرونو نمائش بادشاه بې حوصلې کړو، نور صبرېې نه کړو، د عبدالصمدخان او میا قطب شاه شهادت سخت غصه او غمجن کړے وُ، نو ده افغاني مشرانو ته داسې وویل:

« ترهغه چې زهٔ ژوندے یم دافغانانو دغسې سپکاوے زغملی نهٔ شم .، تاریخ احمدشاه» لیکونکے داکنز ګنداسنګھ.

د مرهټیانو دغونو و د تاوولو کلکه اراده یې وکړه. دلته

بابا دوه ورځې روڼه وبنوله او نقلونه یې وکړه، چې خدای برے ورکړي په ۲۰ اکتوبر دشمال اړخ ته روان شو. او ځنګښې یې خلك لیږلي وو، چې ترڅو داسې ګودر پیدا کړي چې دوئ په سین پورې وځي، دوئ دباغ پت سره ګودر پیدا کړو. احمدشاه دخپل فوج سره سین ته ورګډ شو، او ۲۶ اکتوبر ۱۷۶۰ کښې ټول دسین نه پورې وتل دلته د مرهټیانو ګشتي فوج افغانانو ټیټ پرک کړو، اوساداشیو دمذهبي غسل کولو (اشنان) له پاره ګنج پورته د ګودرو کښته اړخ ته لاړو، دلته ده یو زر ګشتي فوج مقرر کړو، مګر شاپسند خان افغان په دوئ باندې ناڅاپه بریك وکړ. دوئ ځوك مړه او ځوك وتښتیدل، او ۲۷ اکتوبر یې بلـه پیښه کښې افغانانو د سرائی سمبالکا د مرهټیانو سره مقابله راغلـه، دلته هم افغانان پر زورور شول، شاه درانی درې ورځې ګانار کښې تم شو. او ۳۱ اکتوبر سمبالکا تر راورسید بلـه خوا ساده شیو په تاراوړي کښې چې کله دشاه دراني دجمنا دسین د پورې وتو نه خبر شو، نوسمدستي دشاه مقابلې له پاره راوګرځیدو، او ۲۹ اکتوبر ۱۷۶۰ کښې پاني پت ته راغلو، شاه دراني یکم نومبر باندې پاني پت ته راغلو، د مرهټیانو نه یې پنځـه میله لرې مورچه شو، بالاخره احمدشاه دراني او ساده شیو بهاؤ دپاني پت په تاریخي میدان کښې سره مخامخ شول، دپاني پت سره

جوخت دکښتره کښې د پانداورس او کاورل واس ترمنځ د-
مها بهارت جګړه شوې وه. دلته د شهاب الدین محمد غوري
دتوري شرنګار تیرشوے ؤ . هم دلته دپښتون بادشاه
ابراهیم لودهي ۱۵۲٦ کښې د مغل بابر د لاسه ویښې توے شوې
وې، احمد شاه دراني یو ډېر تکړه جرنیل ؤ، نو ده داسې
کار وکړ ، چې اول سرکښې یې ځان ډېر سمبال وساته ، او
عسکرو ته حکم ؤ چې خوشې به نه ګرځي ، د خپل
کیمپ نه به لرې نه درومي ، دغه ټول چل احمد شاه دراني
ددې له پاره کړے ؤ ، چې د مرهټیانو چل معلوم کړي
چې دوئ ددې نه څه اندازه اخلي ، مرهټیانو خیال
وکړو، چې افغانان ځکه ورچاپې نه ګرځي چې دوئ له
موږ نه ډاریږي ، نو دوئ دغه پرهیز دافغانانو کمزوري
وګڼله، او د دوئ خیال وچې بادشاه موږه د کنج پرلوټو لو
او دافغانانو د مرګ په وجه و ډارولو، نو دوئ په
دې کښې شول چې بادشاه به بیرته افغانستان ته تښتي ،
نو دوئ ډېر زړور شول او.بې احتیاطه به ګرځیدل
مګر مرهټیان دلته ډېر خفه شول، چې د دوئ جاسو-
سانو اطلاع وکړه چې افغانان په پټه خپل ځانو نزداونږدې
جګړې د پاره تیار وي ، د تښتیدو او یا په شا کیدو نیت نې
نشته .

اوس د دواړو لخوا ورې ورې جګړې پيل شوې، چې دغه اکثره دګشتي دستو ترمنځ کېدلې، او دغسې به دوئ ديو بل فوجي چل ځده ګاوه. او دغو دوه مياشتو دوام وکړ، ۱۹ نومبر ۱۷٦۰ تاريخ باندې د ابراهيم خان کاردی وروړ فتح علي خان چې دوئ مرهټيانو په طرف وو دشاه په کيپ باندې دشب خون دپاره راووت، او حمله يې وکړه دے پدې بريالے شو چې څو توپې د افغانانو نه وشېنتوي درې ورځو پس د سند هيا پوځونو وزير اعظم شاولي خان باندې بريد وکړو، نو که څيرې افغانان بيدارنه وی نو ډېر تاوان به ور سيدلے وُ. څلورمه شپه په خير تېره شوه - ۷ دسمبر ۱۷٦۰ کښې مرهټيانو دخپلو توپو په ذريعه د روهيله پښتنو فوجي کيمپ باندې بمبارې او ګوله بارې وکړه روهيله پښتنو د ګوله بارې ځواب ورنه کړو، خپل وار يې شپې ته پرېښود، د شپې دنجيب الله خان ورور سلطان خان ديو زر عسکرو سوارو او پنځه زره پيا ده عسکرو سره پسې رووت د مرهټيانو په کيمپ يې حمله اوکړه، د توپکو په ذرو په ذريعه مرهټي پهر دار فوج ګډوډ شو او تېښتې ته مجبور شو، او توپې ځني پاتې شوې، خو په عين وخت کښې ابراهيم خان کاردی عسکرو په روهيله حمله وکړه چې ورسره بالوانت راو مهندل هم ملګری وو.

روهیله رو رو خپل کیمپ ته را په ښتیکیدلاو جنګېدل هم پدې لویه جګړه کښې مرهټیانو د روهیله وُ نه ډېر مړي وکړل ، مګر د مرهټیانو توپونه یې کیمپ ته راوړل ، پدې جګړه کښې د مرهټیانو کانډر بالوانت راو مهندل وو ژړل شو ، ده دساده شیو بهایو ډېر باوري افسر وُ د ده مرګ د مرهټیانو د پاره لوئ زیان او شکست وُ .

اوس احمدشا دراني د مرهټیانو د تنګولو او غصه کولو د پاره یو بل تکتیک غوره کړو ، ده به هره شپه پنځه زره ، جنګیالي چې دوئ به په ترکي آسونو باندې سواره وو ، د مرهټیانو خوراکي موادو د لوټولو د پاره لیږل ، چې ددوئ مشري به تجربه کار افغاني جنرالانو کوله ، لکه شاه پسند خان او ، جهان خان ، دوئ به د مرهټیانو قافلې لوټلې ، او هغه کسان به یې تول بندي کول ، چې په پټه به دوئ د شپې په ځنګلو نو کښې لرګي او وابنه کول ، د دهلي لور ته سویلي سړک او ل ځل د پاره افغانانو په مرهټیانو بند کړ ، پدې وخت کښې دلبر خان روهیله یې ته د کنج پوره دغلې ګوداموته و بیول ، اوس مرهټیان نور هم وار خطا شول ، اوس د دوئ امید صرف د پنیالی سردار ه الا سنګهر وُ ، سنګهر دوئ ته پدې بحراني وخت کښې شمال لویدیځ له اړخ نه خوراکي مواد رسول او په خپله پاني پت بنار ګوټي کښې دومره غلې چیرته وې ، دښار

خلك هسې هم د مرهټې او دراني د خبر سره تښتيدلي وو، او-
غلي يې دځانوسره وړې وې، داځکه چې د دوی ښار
فوجي د رمن جوړ شوي وُ۔

۷دسمبر کښې افغانانو ته اطلاع وشوه چې د
مرهټيانو ماليه ټولونکي مشر گوو هند بالال دنجيب الله املاک-
لوټ کړي دي، راروان دي، احمدشاه دراني سره غم
شو، چې دغه خبر سره د ده روهيله اتحاديان گړوړ نهٔ
شي او د بې ارامۍ سبب نهٔ شي، نو شاه زر دکريم داداو
او حاجي عطاخان په مشرۍ کښې دگو بيند بالال خلاف د
پنځه زرو سپاهيانو سره وليږل، دباغ پت سره نږدې
دوی پهٔ جمنا سين پورې وتل، او د ډهلي پهٔ حدودکښې
پهٔ شاهدرې باندې ناځاپه ور ننکته شول، او دسپاړسم
دسمبر پهٔ نيته يې مازيگر د مرهټيانو چوکۍ او پوستو نه د
منځه يوړل، بل سحر دوی عازی اباد پوځې ځای قبضه
کړو او بيا يې په جلال اباد کښې پهٔ گووهند بالدل باندې ناځاپه
حمله وکړه، چې دوه درې ورځې مخکښې دهٔ دغه ځای
لوټ کړي وُ، دوی د ختهٔ مقابلې نه بغير وتښتيدل او گوبند
بالدل قتل شو۔، او د دهٔ سر پرې يکړاي شو، او د شاه حضور
ته وړاندې شو، دافغانانو په لاس کښې اوس د روهيله علاقه
مکمله راغله، او د مرهټيانو نه يې پاکه کړه، د دې نه پس بادشاه

صبر شي او دخوراکي موادو دکمبوت خطره دهیشه د پاره
ورکه شوه ، مگر افغانانو به هره شپه په دوی باندي حملي
کولې ، ددوی هرقسم مدد دررسید و لارې بندې کړې
وې ، او سمه ناکه بندې یې ورپسې کړې وه ، په دې
باندې مرهټیان وارخطا وو ، خو د شاه فوج کښې هم
روهیله مشران بې صبره وو ، دوی دجنګ خبرې کولې
احمدبابا دوی ته وویل: « زه ستاسو هرقسم مشورې
ته دقدر په سترګه ګورم . مګر دجنګ خبره تاسو ما ته
پرېږدئ ، جنګ کښې بې صبري لوی مرض دے ، چې -
وخت راشي زه به درته په خپله حکم وکړم ، دباباچل دغه
ؤ ، چې مرهټیان تنګ شي ، دخپل سنګرو نه راووځي ، او
دوی حمله وکړي ، او یا فوجي غلطي وکړي ، مګر روهیله
وغو بښتل چې زر فیصله وشي چې دغه عموماً دپښتنو
عادت دے . چې ترنن ورځې پورې مونږه ورکځ نه کړو ،
ځینې خلك نوکې کوي ، چې مونږه فتح بال او هاکي کښې بنه
لوبغاړي یو چې فیصله یې لنډه ده ، مګر دکرکټ وخت
اوږد دے نو ځکه مونږ د پاره د بې صبرۍ موجب شي .

# د مرهټې مشر له خوا د روغې جوړې پېشکش

مرهټې لښکر بابا ډېر تنګ کړے وُ، خوراکي مواد يې پرې بند کړي وو، د سولو لړکې خلاص شوې وو. ځنګلو نه کښې ورته پښتانه غلي وو، د ښار و وانښه په خلاصيدو وو، او هره شپه به پښتنو پر دوئ بانديې بريد وته کول، نو دوئ ډېر تنګ شول دکن او پونا (Poona) نالـرې وو. نو دوئ شجاع الدوله ته خواست وکړو، چې دے شاه روغې ته راضي کړي، د دوئ نوار خطا وو، د بادشاهي او دافغانانو وهل يې هير شول، اوس د ځان په غم وُو هم دغه چل ور سره بابا کولو، چې دوئ تنګ شي، بې صبره شي، او غلطي وکړي، په افغانانو بريد وکړي، دغه هغه فوجي چل وُ، چې بابا د دوئ سره کولو، نو ځکه يې قصه د ومره اوږده کړې وه، ده په سپين کاغذ بانديې خپله کټه ګوته ولګوله او شجاع الدوله ته يې مکمل واک ور کړے وُ، مګر اوس نجيب الله روهله د بابا په چل پوه شوے وُ، نو ده شاه ته وويل: چې دغه د کفارو چل دے، بايد مونږ جنګ او جهاد وکړو، فيصله به ميدان کوي، په دې بانديې شاه د صلحې خبرې پرېښودې، د جګړې فيصله وشوه چې مرهټې سپه سالار ساده شيو

خبر شو چې شاه روغه نه کوي، نو دجنګ نیت یې وکړو
دجنګ نه بغیر بله لاره پاتې نه وه، داځکه چې دوئ دلوږې
مړه کېدل، نو مرهټې سردارانو ورته وویل: چې هسې هم مرو
نو ولې د درانیانو سره جنګ ونه کړو، عسکر ډېر تنګ وو.
دوئ ویل: چې موږ څه خوړلي نه دي وږي یو ایوسیر
غنم نه پیداکیږي . ښه به دغه وي چې دښمن سره جنګ وکړو
چې قسمت ته څه منظوره وي هغه به کیږي، پدې باندې
ساده شیوراؤ په افغانانو باندې دحملې دپاره فوج ته دتیارۍ
حکم ورکړو، چې بله ورځ به حمله کوي، ده په یو -
اخیري خط کښې شجاع الدوله ته داسې لیکلي وو:
«اوس نو دروستۍ شیبه راغلې ده، که دې څه په
وس کښې وي نو زر یې ترسره کړه او یا ماته منفي ځواب
راکړه، له دې وروسته به نور نو دلیک یا خبرو دمبادلې
له پاره کوم فرصت پاتې نه وي» «کتاب احمدشاه لیکونکی گنداسنگهـ»
ددې لیک سره سم شجاع الدوله بادشاه ته حاضر شو،
بادشاه ویده شو، دخوب په جامو کښې وو، او خپل مشهور
او نامتو آس چې بابا به ورته «چوکی» ویلو پر سور شو
خپل فوج یې دجنګ له پاره تیار کړو، او دفوجیانو سره
یې خبرې وکړې، او دوئ ته یې دا دګیرنه ورکړه .
مرهټیان اکثره دقطار دجنګ قابل نه وو، دوئ خوګوریلایي

چل باندې ښه پوهیدل دخپل هیوادمهاجرنشترا نه لرې وو، او د رنې وسلې ورسره وې، اوماشومان او ښځې هم نو دوئ نهٔ شول کولای چې حمله وکړي، بیا په ځټې شي نو ساده شیوراؤ د یوې داسې جوارې په.. . کیناست چې دافغانانو نه کتل یې گران وو، خو دې لومه کښې یې ځان پخپله ښخ کړے و.

د مینځ فوج کماندان پهٔ خپله کوله، دکینې خوا مشرکري دابراهیم کارد ے په لاس کښې و او د ښي لاس کان ملهارائو، هولکار، جانکوجي شندی په غاړه واخیسته دبلې خوا احمدشاه په ډېر محنت سره جنگي پلان جوړ کړے ؤ، د سرجادونات سرکار دقول مطابق ؤ، ده دیو ذاتي جنرال پهٔ حثیت دخپل ملي فوج نیمایي برخه زاتلس زره ، په مینځ کښې د خپل وزیر ترکمان لاندې واچوله په داسې حال کښې چې دوه نورې دلې سپاهیان چې هره یوه پنځه زره کسه کېدله، او زیاتره په پارسي غوړه آسانو سواره پوځیان وو، خپل ډېر وړاندې، کیڼ او ښي اړخ ته ولیږل، پدې ډول دشاه هندي متحدین دپیاوړو درانې فوجونو پهٔ منځ کښې راغلل، اودځنډو پهٔ خواکښې ددوئ دکم غفلت، چل ول، او ییښتې ځځخه مخنیوے کېدلے شو، لهٔ بلې خوا دځنډو ۂ دښي اوکینې خوا

قطاره ونه «یعني لیکه دراني پوځیان دد ې له پاره هم غوړه شوي وو، چې هغوی کولے شول، د مرهټیانو له خوا په اړخونو (بنې اوکیڼه) یانډ ې برید هم ناممکن شي، او په دې ډول به شاه د هندي متحدینو په منځ کښې د مرهټیانو له برید څخه خوندي وي، او د هغوی زړور توب ته به زیانونه رسیږي، «کتاب احمدشاه، لیکونکے ډاکټرګنډا اسنګه ترجمان منګل»

نجیب الدوله او شجاع الدوله د شاه پسند خان د کماند لاندې کیڼې خوا ته ولیږل شو، او حافظ رحمت خان او دوندې خان ښي اړخ ته، شاه خپله جنګي قطار یعني لیکه اووه میله اوږده کړله، داسې دائره یې جوړه کړه لکه نوې میاشت چې راوخیژي، غابنې یې د مرهټیانو لیکو ته ورلنډ شول، نو دوی د بر په آسانه په مرهټیانو باندې بریدکولے شو.

## د درانیانو فوجي جوړښت

کیڼ اړخ : شاه پسند خان، نجیب الدوله او شجاع الدوله په مینځ کښې شاولي خان وزیر عظم.

ښي اړخ : حافظ رحمت خان او دوندی خان،

## د مرهټیانو نقشه

کیڼ اړخ : ابراهیم خان کاردی، —

داماجي ګيکوار وتيتال شويو.

مينځ کښې : ساده شيوبهاؤ.

شني اړخ : انتاجي منګشوار، ساتوجي جاداو وړو کپتانانو ډله. جسوانت راو پاوار، شمشر بهادر جانکو جي، شندی، ملهار راو هولکار.

د جګړې پيل د مرهټيانو د توپې دړزو سره پيل شو لومړی برید ابراهیم کاردي وکړو، پداسې حال کښې په يوه لاس کښې يې جنډه وه، او په بل لاس کښې يې ټوپک ؤ. ده د دوه ډلو پوځيانو ته حکم ورکړو، چې د هغو افغانانو مخه ونيسي چې برخوردار خان يې رهنمايي کوله او په غبرګه يې د ښي اړخ نه په روهيله حمله وکړه چې شاه هم دلته ؤ، سخته جګړه شروع شوه، ابراهيم خان كاردي د مرهټيانو د پاره جنګيدو، اول سرکښې خوداسې حال جوړ شو چې خيال کيده، چې روهيله به ډېر ژر ماتې وخوري خو کاردي په مخامخ جګړه کښې ډېر ژر وار خطا شو پدې وخت کښې احمدشاه بابا د روهيله د کمک له پاره نوے تازه فوج راوليږه، او ده حکومونه ورکوله، په داسې چل يې وجنګول، چې د کاردي فوجيانو ماتې وخوړله په دې وخت کښې دابراهيم خان کاردي کمک له پاره د- اماجي ګيکوار را غئ، خو د افغانانو حملي او برید ونه دومره

تيز او سخت و، مرهټيان روهيله افغانانو ته ټينګ نه شول،
او ښتې ته اړ شول، هم په دې ډول د مرهټيانو کيڼ اړخ
ماتې سره مخامخ شو، ويشوراس راو، او ساده شيو په
منځ باندې حمله وکړه چې مشري يې وزير اعظم شاه ولي
خان کوله، د دواړو خواوو ترمنځ ډزې شروع شوې دافغانانو
سپکې توپې ګوله باري شروع کړه، په مقابل کښې يې د مرهټيانو
درنو توپو بمباري شروع کړه، افغاني توپې ډيرې پياوړې
وې، داځکه چې دوی ديو ځای نه بل ځای ته ډير په
اسانه وړے شوې. مګر د مرهټيانو توپې ډيرې درنې
وې، وړل راوړل يې ګران وو، پدې درنو غوبل کښې -
مرهټي فوځيان په شاولي خان ورننوتل شول، او دافغانانو
قطارونه ته ورننوتل، افغانان يې وارخطا کړل، د منډې
خيال يې وو، خوشاولي خان ورته چيغې وهلې چې يارانو
چيرته منډې وهئ، وطن مو ډير لرې دے، بيا افغانانو
ځانونه سمبال کړل، جنګ بيا په زور شور سره شروع شو
پښتنو دګيډړ غونډې منډه کړې وه، مګر د زمرو په
شان په واپس راغلل، شجاع نه شو کولے چې د حاجي
عطائي خان مدد وکړي، داځکه کهٔ ځاے يې پريښے وه،
نو د کيڼې خوا د جانکوجي، شندې، ملهار راؤ هولکار نه خطره
وه، مګر بيا هم مرهټيانو د دې ګډوډۍ نه فائده نه شوه اخيستلے

چې افغانان یې په مخه کړے وای، داځکه چې دشاه افسرانو دا په ښه شوي افغانان بیا زر راغونډ کړل او شاه خپل با ډېر کار د هم دشاولي خان دمددلپاره ولیږه، اوس افغانان بیرته په غیرت راغلي وو، مرهټیان یې په شا وتمبول، مګر دساده شیو زړوره فوجیانو سخت جنګ ته دوام ورکړو، په دې جنګ کښې د پېشواه زوئ دخپلو ساتونکو عسکرو سره په افغانانو ورټوپ کړو، مګر اوس دافغانانو وارخطائي ورکه وه، دده حملې څه خاص اثر ونه کړ، داځکه چې احمدشاه بابا پیرزره دافغانانو نه پاس فوج راولیږلو، افغاني فوجیانو داحمدشاه په لارښوونه دمرهټي فوجیانو خلاف خپل چلول شروع کړو، او دوئ یې درې اړخونه را ایسار کړل، یوه ډله دافغاني پوځیانو له ښي اړخ څخه راپورته شول، په دښمن یې په ټوپکو ډزو سره بله ډله دکیڼې خوا راغله په مرهټي عسکرو یې حمله وکړه، او زر ښي طرف ته لاړه، او دریمه ډله له مینځ څخه نه راپورته شوه، مخامخ یې پرې ډزې وکړې، او بیا په ښه شول، دا سې چل ول په وجه یې مرهټي عسکر وارخطا کړل، دوئ ته دسمبالیدو وخت پیدا نه شو، همدغه نمونه چل ول به افغانانو بیا بیا کولو، ددې باوجود مرهټیانو په شاولي خان باندې درې ځله سخته حمله راوړه

خو دده ملګرو مورچې ټینګې کړې وې او ځانونه یې
ټینګ کړل، په پاو باندې دوئ بجې دافغانانو دګولۍ په سبب
ویشوان راو ولګیدو مړ شو، دده مرګ دساد شیو له پاره
لویه صدمه وه، ده ډېر سخت په قهر اوغصه اوغم کښې
مرهټیان راجمع کړل، او پر افغانانو باندې یې سخت برید
وکړو، په همدې دوران کښې دے په نیزه زخمي شو سمدستي
پسې په ګولۍ هم ولګیدو، او داس نه راو غورځیدو، ادے
پنځو دراني عسکرو ټوټې مړ شو. دوئ دده جوهرات
اوسر شاه ته یوووړل، ساده شیو بیا دخپل شهرت په اوج
دخپل قوم له پاره دسلطنتي خوبونو په لیدو سره دځان نه
لاسونه وو ینځل.

دشاه دګین اړخ او د مرهټیانو د ښي اړخ فوځیانو
تر منځ عملاً جنګ ونشو چونکه ملهار راؤ هولکار او
جانکو جي شندي د پښتنو د توري څنوند لیدلے و، نو
دوئ تر اخره پورې دخپلو مرچلو نه راو نه وتل، چې
نجیب الله خان ددوئ دې بزدلۍ نه فایده واخیسته، په پټه
ددوئ توجي لیکو ته ورغے او پر دوئ یې برید وکړ، د
دې سره د ښي لاس او منځ اړخ لاړ خلاصه شوه،
شاه سید خان او نجیب الله خان په دوئ غبرګ برید وکړو،
ددې سره ملهار راؤ لومړے وتښتیدو، دده سره یو ځائے

د جانکوچي زيات شمير لښکر لاړو، جانکوچي په خپله زخمي شو د زياتو تلفاتو سره يې ماتې وخوړه.

په دې ډول مرهټيانو ماتې وخوړه، دوئ څوک مړه او څوک په متلاه وو، چې پښتنو په دې ګډو ډو کښې را ايسارول او وژل يې، بد حال وُ، د پاني پت د ريم جنګ پښتنو وګټلو، د هند د قيمت فيصله وشوه پر کلکته کښې لار ډ کلدئيو خوشحاله وُ، دا ځکه چې مرهټيان او پښتانه دواړه د هند او ايشيا خلك وو، او د پرنګيانو له پاره دواړه خطرناك وو، مرهټيانو داسې وهل وخوړل، چې تر ډيره وخته پورې يې د خولې خونه سم نهٔ شو.

## د دښمن تلفات:

په دې جنګ کښې دومره ډير مرهټيان مړه وو چې، د احمد شاه فوج د دوئ د مړيو نه درى ديرش «۳۳» غنتې مانځه او ډهرئه جوړې کړې وې، او دوئ(۲۸۰۰۰) زره مړي، شمار کړل. دغه مړي پهٔ ميدان او خندوقو نو کښې پراتهٔ وو. هغه پهٔ زرګونو مړي چې د يتيښتې په وخت د افغانانو لخوا مړه شول، د هغو ځنهٔ حساب نهٔ وُ، د شپې ديخنۍ پهٔ وجه پټ شوي زخميان هم مړه شول. (۲۲۰۰۰) زره ښځې او ماشومان اوسول بهوراکرپيسى يرغمال، يعنې جنګي قيديان شول، د برهمنو ښکلى ښځې يا پيغلې په لس لس روپۍ

افغانانو خرڅې کړې، نقدې روپۍ جواهرات حساب نه وو، د څناورو لکه اوښان، آسان او نورو خوحساب نه و.

په کال ۱۷۶۱ د جنوري په ۱۵- شاه له بري نه يوه ورځ وروسته چې يوه شانداره شاهي چپنه (قبا) يې پرغاړه او دالماس په ګڼون ځليدونکي جواهرات يې پرغاړه وو د ياني پت ښار ته ننوت، او د شيخ بوعلي قلندر زيارت يې وکړ، د لته څوورځې پاتې شو، بيا ډهلي ته روان شو، د ډهلي نه شپاړس ميله لرې د مغل بادشاه کونډې ښځې زينت محل او د هغې د لمسي ميرزاجوان بخت لخوا شاه ته تود هرکلي وشو. ددې سره د مرهټيو د لاسه ناست ګورنز شکرپنډت د ډهلي نه پټ وتښتيد، هداز نګه په شمال هند کښې د مرهټيو زور باندې سخت ګوزار وشو د مغلوسلطنت د شاه په پښنو کښې پر مخ پروت و، مګر ده د بابر په شان په تخت او هند باندې قبضه ونکړه، ډيرخلک په دې عمل شاه ته ښه نه وايي، مګر د داسې نه کولو وجې د باباسره ډيرې وې، چې يوڅو يې د بېلګې په ډول دلته ذکرکوو:

۱- بابا نه غوښتل چې خپله خاوره پرېږدي، دا څکه چې ده د خپلې خاورې سره بې کچه مينه لرله چې دا د ده دشعرونه ثابتيږي لکه چې وايي:

د ډهلي تخت هيرومه چې رايادکړم  زمادښکلي پښتونخوا دغرو سرونه

۲- بله وجه يې دغه وه چې د هند سراول ډيروخت

نیو، دا ځکه چې په جنوب کښې مرهټیان پراته وو، د بنګال د غاړې ایسټ انډیا کمپنۍ ۱۷۵۷ کښې پلاسۍ جنګ ګټلی وو، نو دوی هم په اسانه د هند نه لاس نه اخیستو.

۳- د بابا اصلي خاوره پښتونخوا وه او هند د هلي په منځ کښې د دښمن قوت و، یعنې سیکهان، د دوی نه هر وخت خطره وه چې دوی به د اصلي خاورې او د هلي تر منځ رابطه کټ کړي.

٤- بله وجه دا وه چې تزار روس او چینایانو لګیا وو مرکزي ایشیا یې نیوله، او ۱۷۶۲ کښې بابا چینایي جنرال ووهلو او تاشقند، سمرقند، خیوا، بخارا یې د چینایانو نه بچ کړو.

۵- په ایران کښې رو رو قاچاریانو قدرت نیو لو، نو د ایران له اړخه هم اصلي خاورې ته خطره جوړیده.

٦- پښتانه که څه هم د بابا د مشرکړې لاندې تر یوې حده پورې په اتفاق وو، مګر د دې ضمانت نه و چې دوی به همدغسې پاتې شي.

۷- او اصلي او بنیادي وجه دا وه چې بابا د پښتنو د قبیلو نه یو قوم جوړول غوښتل، او په دوی کښې یې یو ملي احساس پیدا کاوه، او دغه احساس بغیر د بادشاهۍ نه ممکن نه وو، او داسې بادشاهي چې مرکز یې په خپله خاوره کښې وي، یعنې ایران یا هند کښې، بلکښې هم د پښتنو بادشاهي

پاتې وې، مګر دوئ هلته ورکه شول، نو ځکه بابا په دې پسې نه تلو، چې خومره لویه بادشاهي ده، د ه غوښتل چې افغانئ، خاوره ته د نوې زمانې مطابق یو قانون حیثت ورکړي، او پښتو ته خپلې پولې جوړې او څرګندې وتاکلی شي. او د دوئ د بادشاهۍ ځکه خپله ځمکه او پاینخت یې په خپل کوره کښې وې دا ځکه چې بابا په دې پوهیدو باندې شعوري پوهیدو.

کهٔ چیرې بابا هند کښې پاتې شوے وائي نو نن به نه هند وے نه افغانستان، دا ځکه چې دغه افغانستان نوم پخپله د دې ثبوت دے چې بابا دخپل کوره نوم کېښود، د ده نه وړاندې داسې نوم نهٔ ؤ. صوبه کابل پیښور، صوبه غزنی صوبه هرات، قندهار نومونه وو. مګر بابا دغې ځمکې ته نوم او پیژندګلوي اوپولې ورکړې، چې ترنن ورځې پورې یې مونږ لرو، او په مونږ کښې تر یو حده پورې ملي اوهیوادي احساس پاتې شو، او مونږه دیو مرکز خاوندان شوو، او افغانستان د دوه لویو سامراجي قوتونو په منځ کښې ژوندے پاتې شو، کهٔ څهٔ هم هغه افغانستان نهٔ دے چې کوم بابا پریښی ؤ. مګر پښتون قوم بیخي میرات نهٔ شو، لکه د هند لوړ قومونه. مونږه ترنن ورځې پورې یو "IDENTIFICATION" لرو، کهٔ څهٔ هم د مرهټیانو او افغانانو د جنګ نهٔ پرنګیانو فایده واخیسته، مګر دغه قصوره داورنګزیب ؤ، چې هندوان یې راګرم کړل او بیا قصوره

د مرهټي برهمنانو، چې دوی کټاس هندوان او متعصب خلق وو، او آخیر یې ځانونه د پاني پت په میدان کښې وشرمول. (بابا)

بابا د دې بري او فتح باوجود د پیشواه سره رابطه وساتله دده د نوی او تربور یعنی ویشواه راؤ او ساد شیوراؤ، چې دوی د مرهټي فوج رهبري کوله، په مرګ یې د پیشواه سره زړې ښکاره کړه، بابا پیشواته ولیکل چې د دې جنګ په ذریعه چې کومه بدبختي مرهټیو ته ورپه غاړه شوه زه له تاسو سره په دې غم کښې شریک یم، اما قصور صرف د ساده شیوراؤ و، چې دوی هیڅ روغې جوړې ته چمتو نه وو، مونږ صرف خپله دفاع کړې ده، مونږ امید لرو چې په راتلونکي وخت کښې به د دا سې تباهي نه مونږ ه ځانونه ژغورو، زمونږ او ستاسې په منځ کښې چې کومې شخړې پیښې شوي دغه ځه د نیکمرغی خبرې نه وې، زه امیدوار یم، چې داسې بدبختي به نورې نه پیښیږي، د بابا دلیك متن «پشوا بالاجی» داسې دلیل نشته چې ولې باید زمونږ او ستاسې تر منځ بدنیتي موجود وي. دا ربښتیا ده چې تاسې خپل زوی او وروره په دغه بدمرغه جګړه کښې له لاسه ورکړه، خو دا کار کاملاً د بهاؤصاحب په لمسون وشو، او مونږه له خپل ځان څخه د دفاع پرته کومه چاره نه درلوده، سره د دې هم مونږ په دغو تلفاتو سره سخت خواشیني

شوو، مونږ دې ته تيار يو، چې د ډهلي د شاهي ادارې مسئله ستاسو په واک کښې پرېږدو په دې شرط چې تاسو پنجاب د ستلج تر رود پورې مونږ ته خوشې کړي او د امپراتورپه توګه دشاه عالم ملاتړ وکړي. تاسې به ضرور هغه خواشينې پېښې هېرې کړې چې پېښې شوې، او له مونږ سره به يوه دوامداره دوستي ټينګوئ، داسې دوستي چې مونږه په ډېره ليوالتيا د هغې غوښتونکي يو.» «کتاب احمدشاه»

وزيرعظم شاولي‌خان داسې نور خطونه او دسوغاتو سره د يعقوب علي خان په لاس ګواليار پښتواه ته ورسول، د بل اړخ نه کلراج د فروري په ۱۰ نېټه د پښتواه سره ملاقات وکړ، او د احمدشاه پيغام يې ورکړ، پښتواه هم دغسې د روغې جوړې ارزو ښکاره کړه، خو پښتواه دلته سخت بيمار شو، خو بيا هم د صلحې او روغې جوړې تفصيل له پاره او شرائطو له پاره خپل سړي ډهلي ته ولېږل، هر څه تيار شوي وو صرف رسمي د دستخطونه پاتې وو، چې په دې وخت کښې د پښتواه بيماري سخته شوه، هم دغه ۲۰ مارچ ۱۷۶۱ کښې پښتواه د دکن اړخ ته وخوځېده، د دې بيمارۍ باوجود پښتواه خپل وکيل هغې ته وليکل چې: «زه د شاه ابدالي او دده دوزير ليکونو ځوابونه استوم، چې ماته راغلي دي، او د دوئ دوکيل کلرج له خوا راسپارل شوي دي، زه انورشاه خان او

حسین محمد خان شاه ته د سولې د خبرو له پاره لیږم ، ما ملهاراؤ هولکاته هم د دغسې موضوع د پرېکړې صلاحیت ورکړے دے ، تاسو به اوس له هولکار سره مستقیماً تماس ونیسئ . او ددهٔ تصمیم ته به غاړه کیږدئ ، له تاسو څخه غواړم چې د دوه تنو سلاکارانو انور شاه او حسین محمد شاه سره به پوره سلا مشوره وکړي او د مذاکرو له پرختګ څخه به ماپوه پر له پسې توګه خبروساتي ».

همدغه شان شاه په ۲۹ جنوري ۱۷٦۱ شاعالم ثاني یې دډهلي په تخت کښیناوهٔ ، او د نیکمرغی دعایې ورته وکړه ، مګر د شاعالم ثاني مور (زینت محل) بادشاه ته خواست وکړو ، چې شاه ابدالي دے ، د هند ټولو واکمنو شهزادګانو ته فرمانونه ولیږي ، چې شاه عالم ثاني دوئ ومني ، زینت محل د شاه مور دلاره کلا یو متعلق ورته وویل ؛ چې شاه دې هغې ته هم کلک و لیکي چې شاه عالم ثاني د ریښتني او حقدار شهنشاه په توګه پیژني احمدشاه واک نجیب الله روهیله او شجاع ته ورکړو ، چې دوئ به د شاه عالم سره کمک کوي ، او بابا د مغلي بادشاه نږیزته خپل وطن ته د راتلو اجازت واخیست ، دغه شان بابا (۲۰) مارچ ۱۷٦۱ کښې د پښتونخوا لوري ته حرکت وکړو ، او پیښوله د خپلو اهلکارو له خوا خبر شو ، مئ ۱۷٦۱ ملهاراؤ - هولکار پیشواه ته داسې ولیکل : « سره د دې هم شاه له روانیدو

دمخه د هنگني په حضور کښې شجاع الدوله اوددهٔ روهیله متحدینو ته په کلکه توگه لار ښوونه وکړه چې د ه له پېشواه سره دومداره او پخه سوله کړې ده او تاسې ټول بايد د پېشواه صلاحيت او واک ته غاړه کېښ دي ، له دغه واک څخه په خپله دوی د ډېر گټه اخيستلے شي »

دغه راز شاه يعقوب علي خان ته امر وکړ چې پوناکی دپېشواه حضور ته د معاهدې د لاسليك له پاره لاړ شي.

« احمد شاه ليكونکے ډاکتر گنداسنگهٔ ترجمان منگل » باباخپل کور ته راغلو د خپل وطن په چاروکښې بوخت شو د غسې دپاني پت دريمه جگړه سرته ورسيده .

# دنوي کندهار د تاداو ايښودل

احمد شاه بابا يو قوم پرست او وطن پرست پښتون و، نو ده نه غوښتل چې هغې ښار کښې ژوند وکړي، کوم چې نادر شاه (۱۷۳۸) کښې جوړ کړے و، دغه دغلامۍ نښانه وه، او د پښتون قوم دغيرت او پت له پاره يو داغ و، نو بابا فيصله وکړه چې د پښتنو خپل کندهار پکار دے چې د دوئ د شاه لخوا يې بنيادا ايښودلے وي، او بل دزوړ کندهار دنادر شاه دالوئ نښان و، نو بابا چير ته يو آزاد افغانستان کښې دير دي دلاسه اباد ښار کښې ژوند کولو، نو بابا د نوي کندهار په جوړولو باندې پيل وکړو، نو ده د کندا وله کلي سره نژدې د ښار په ختيځ کښې يو ويالهٔ د دشتې خوا ته وکندله، په دې خاطر چې د دې ويالې په لوئيدلو غاړه نوے ښار ودان کړي، دغه ځکه دالکوزيو وه، ده دلته خپله مور هم ښخه کړه، او يوه روضه يې پرې جوړه کړه چې دغه کلے د روضې په نوم مشهور شو، دلته دوئ ديوې فوجي چاونۍ جوړولو فيصله هم وکړه، مگر دغه ځکه د بارکزو وه، دوئ انکار وکړ، بابا په زور کار نه کاوه، ديو بل ځاے په

تلاش کېنې شو، چې په دې کېنې پو پلټرې ورته راغلل، احمدشاه
ته یې وویل چې زه مونږ ځکه حاضر ده، چې بادشاه ځه پکښې
جوړول غواړي مانع نه شته، نو بابا دلته دنوې کنډهار بنسټ
کېښود چې کوم نن سبا یې مونږه وینو، دغه د بابا دلاس جوړه
ښار دے ـ پس له بنسټ ایښودلو نه احمدشاه بابا د ټولو قبیلو
خلک راوبلل او دلته دکورونو دودانولو له پاره یې ورته ـ
وویل، او ده ښارګرد چاپېره دیوال یې ترې تاؤ کړ، خو دومره
لرې یې تاؤ کړو چې د راتلونکي وخت له پاره د ښار پراخیدو ته
یې پېره علاقه ورته پرېښو ده، د ښار دېوالونه او برجو نه
جوړول یې هندي میمارانو ته ورکړل، اول سرکېنې هندي انجینر ـ
د شپږو میاستو له پاره ورکړ شو، کارو ځنډیدو، یو بل ماندیس
کار واخیست، مګر دغه ماندیس بیا راپیدا شو، باچا ورځنې پوښ
وکړ چې چیرته تښتېدلے وې ؟
ده ځواب ورکړ چې زه تښتیدلے نه وم دسوچ بچار
له پاره تللے وم، داځکه چې دغه خوشاهي ښار جوړیږي چې
دې باندې ډېر سوچ بچار په کار دے، پس ما سوچ او نقشه
جوړه کړه، اوس وخت را غلے دے، چې کار شروع کړو،
دغه شان شپږ میاشتې نه پس ښار باندې زورشور
سره کار شروع شو، بابا یې هر وخت معائنه کوله، او چې
څومره به ښار جوړیدو په دې به بابا خوشحالیدو، په ټاکلي

و خت کښې برجونه اوګنبدې جوړې شوې، کله چې دفاعي دیوال او دهغې مورچې او دولس برجونه مکمل شول، نو بابا شیخانو، سیدانو او د هیواد نورو متبرکو کسانو ته خیراتونه او سوغاتونه ورکړل، او ددوئ نه یې ددعا هیله وکړه، هدغه شان دبابا دزړهٔ ارمان پوره شو.

دغه ښار دارغنداب او ترنک سیندونو په منځ کښې په سمه ځمکه پروت دے، شمال لویدیځ خواته یې یو ټیټ - غونډې غر دے، چې تقریباً زر فټه جګوالے به یې وي دښار خندق فټ ته ځلوییښت فټه سور او لس فټه ژور وو، ددیوال سور یې په پیل کښې یوبیشت فټه او سر کښې څوارلس فټه وو، او ددیوال جګوالے یې نهه ګزه یعني ۲۷ فټه وو، ځلور اصلي دروازې لري. د بردراني او کابل دروازه، شکارپور دروازه، د هرات او توپ خانې دروازه او د عیدګاه دروازه، د غه ټولې د مور چلونو په ذریعه ژغورلې شوې.

# په پنجاب کښې د سکهانو فسادونه
# او
# د دوئ شاته د فرنګیانو لاسونه

احمد شاه بابا ټول عمر په دې کښې تیر کړ چې کله به ایران کښې ؤ، کله هند او کله مرکزي ایشیا کښې. خو بابا ته چې زیاته سر درد ي جوړ وه هغه د پنجاب سکهان وو، که څه هم دغه ازمي اورنګزیب کړلي وو، مګر د احمدشاه بابا په وخت کښې او بیا وروسته نه موبزه دافغانانو له پاره سکهان د لوئ شر او بدبختۍ سبب شول، چې دوئ سره د یورپیانو لاس ؤ، چې ورسره فرانسویان او انګلیسان یې فوج کښې وو، او د بنګال نه به دلیسټ East انډیا کمپنۍ د جاسوسانو په ذریعه د لوئ بابا په خلاف لمسیدل، او لارې او ګودرې به ورته ښودلے شوې، دا ځکه چې په ۱۷۶۱ کښې د پاني پت په میدان کښې د بابا کامیابۍ ټوله ایشیا و ر کاوله او یورپي سوداګرو باندې او خاصکر پرنګیانو باندې تبه راغله، دا ځکه چې دوئ سره خطره جوړه شوه چې د را تیان هندکښې راته تهم نشی نو دغه په نوې وینه او جذبه وي نو د دوئ نه هند اخیستل بنګران شي، نو ځکه دوئ غو ښتل چې هند

کښې ګډوډي وې، اوخاصکر پنجاب کښې، دا ځکه چې، پرنګيان خبر وو چې د افغانستان افغانانو د هند دافغانانو په ملګرتيا مرهټيانو و ډيول په پا ني پت کښې. او کله هندي افغانان افغاني شاه د دوئ خلاف ولمساوي، نو دوی به د بنګال نه لري کړي، نو پکار دي چې د شاه له پاره کور دننه او خاصکر پنجاب کښې بدامنی جوړه کړي. نو د ده ټول عمر به د سکهانو سره په پرزولو باندې تير شي او موبر ته به موقع په لاس راشي چې ځانونه روږو مضبوط کړو او بله فائده به دغه وي چې د پنجاب د سکهانو په وجه به د هندي افغانانو او افغاني افغانانو ترمنځ به دا يريګ رابطه قطع شي، نو ځکه دوئ سکهان لمسول، او دوئ ته به يې جديد هتوبکې ورکولې. دمثال په توګه د لاهور په جګړه کښې چې نورمحمد خان په خپله جګړه کښې وئ داسې ليکي:

« ځومره غټ تاسف دے چې له ليرې ځخه دکافرانو په واسطه غازيان شهيدان کيږي. کاشکې مخامخ جګړه واے نو د نيا به يو ځه لوبه ليدلې وای (کتاب احمدشاه دا کتر ګنډا سنګه منګل)

بابا به هرمتي کښې پنجاب ته راتلو اوسيکهان يې ټکول چې اوړي کښې به بير ته لاړ، دوئ به دغرونه راکوز شول او پنجاب کښې به يې دسره غوبل جوړ کړو پدې سلسله کښې بابا ۱۷٦٦ کښې هند ته داتم ځل له پاره راکوز شو، اوس تش سکهان

نهٔ وو،بلکې د بنګال میرقاسم هم د بابا سره د پرنګیانو خلاف رابطه نیولې وه، او ده غوښتل چې د احمدشاه ابدالي په زور د مرشیدآباد په تخت بیرته کښېني چې پرنګیانو کوز کړے وُ.
احمدشاه ابدالي پنجاب کښې د سکهانو خلاف فوجي مهم ته دوام ورکړو، او ځینې سیکهانو دسورج مل جټ د مدد له پاره د روهیله نجیب الله خان خلاف تللي وُو، هسې هم سکهانو مخامخ جنګ نهٔ شو کولے. مګر چې دوئی نوي یورپي توپکې ترلاسه کړل نو دوئی د پر زړورو شول، خو دوئی همیشه د احمدشاه بابا نه هروخت ماتې خوړله، په دې دوران کښې احمدشاه ابدالي پهٔ سکهانو پسې جلتدر دواب ته لاړو، دلته دده احترام ته غټ غټ جاګردار راغلل، مګر دغه زمیندارخلک پهٔ پټه د سکهانو ملګري وو، او پهٔ بنکاره یې دشاه سنګرې ویلې، دشاه دلته پهٔ راتګ باندې پرنګیات وارخطا شول، شاه د مارچ ۱۷۶۷ کښې د سیندستلج نه پورېوتو او د سویل خوا ته د ډهلي په لور روان شو، بله خوا سکهانو د لاهور، راوي، او ستلج دریابونو ترمنځ علاقه باندې قبضه وکړه، اسماعیل اباد ته درسید و سره سم روهیله نجیب الله خان دشاه حضور ته حاضر شو، پهٔ (۹) مارچ باندې شاه خپل حضور ته ومانه، شاه هندي مشرانو ته په قهر وُ، مګر نجیب الله خان روهیله سره یې چلن ډېر د ورور ولی وُ، هم-

دلته دشاه کیمپ ته د میرقاسم استازی دشا حضور ته حاضر شو، د دې په اوریدو سره پرنګیان نور هم بې آرامه شول، دوئ وویریدل د دې له پاره بنه دلیل هم وُ، او هغه دا چې کله چې یې شجاع الدوله وزیرعظم او شهنشاه شاعالم ثاني د احمدشاه دکیمپ سره پیوسته شي، نو هغه رابطې چې دوئ دوا ړو سره نیولې وې خرابې به شي، نو ځکه پرنګیانو وزیر شجاع الدوله او شهنشاه شاه عالم ته وویل: چې دشاه ابدالي په حضور کښې مه حاضرېږئ او دته کومې پیسې ونه لیږئ، او که شاه ابدالي د دهلي خواته راځي، نو تاسې یې مخالفت وکړئ، هم دغه رنګ پرنګیانو د جټانو، مرهټیانو او نورو هندي مشرانو ته وویل: چې دشاه ابدالي په مقابل کښې محاذ جوړکړئ چې زمونږ کمپنۍ به درسره مدد کوي، مګر بل اړخ ته دپاني پت جنګ په وجه د بابا رعب په هندي مشرانو باندې دومره لویدلے وُ چې دوئ دې کښې حق حیران وو چې دکمپنۍ په هدایت لاړ شو او که دشاه افغاني احترام ته حاضر شو، «To BE or Not To BE ToBE or not To BE.» کښې ګیر وو، دپاني پت دجنګ نه مخکښې دکمپنۍ سیاست دغه و، چې انتظار وکړئ او ورته ګورئ، مګر ۱۷٦۱ نه وروسته دوئ ډېر چټک شول، کله چې هم کله چې میرجعفرعلي کمپنۍ له تخته کوز کړ، او دده زوم

میرقاسم یې د بنګال، بهار، اوړیسه نواب کړو، نو دغه خبر سبا علي هندي واستارت افغان علیحضرت احمدشاه ته ورکړے وُ، شاه دخپلې خولې ته او میر- قاسم ته ویلي اوهیله یې څرګنده کړې وه، چې دوئ دواړه به د هندي مغلي شهنشاه شاه‌عالم ثاني - اطاعت وکړي، دوئ داسې ښکاره کړه چې دوئ به دغه حکم ومني چې څه وخت احمدشاه بابا پاني پت جګړه وګټله، نو شاه عالم ثاني د هند دبادشاه په توګه مقرر شو، نو احمدشاه د هند د ټولو شهزادګانو او واکمنانو ته فرمانونه لیږلي وو، چې دوئ یې په رسمیت وپیژني، خو احمدشاه بابا ته هندي‌واستارت یکم مارچ ۱۷۶۱ کښې داسې لیکلي وو:

«دعلی حضرت دغه خدمتګار (یعنې دوئ پخپله) چې د ثابت جنګ (کرنل کلف) په ځای ناست دے، د شاه عالم اوامرو او غوښتنو ته اطاعت لري او د نوموړي (شاه‌عالم) سره چې پټني چو نۍ ته راوستل شوے دے هغه تیار دے چې ته ډهلي پډرګم وکړي»

مګر دغه ټول د پرنګیانو چل ول وُ، دوئ نه غوښتل چې شاه ابدالي غوسه کړي نو دوئ به ډېره پسته د ډیپلوماتئ ژبه استعمالوله ته دې چې وزیرعظم

شاولي خان ایسټ اینډیاکمپنۍ ته ولیکل، چې دشاه عالم ثاني په نوم دې سکه ووهي اوخطبه دې دده په نوم واوروي، دوی د ډېر د څنګه نه کار واخیست مګر شاولي خان پرې پوه شو، نو سخت لیک یې ورته ولیکه، پر دې باندې پرنګیان وویرېدل، نو دوی دغه کار وکړ، مګر زړه کښې یې نورې منصوبې وې. حالات هغه وخت نور هم خراب شول، چې د بکسر جګړه (۱۷٦٤) کښې د ماتې نه پس ایسټ انډیا کمپنۍ ته شجاع الدوله تسلیم شو، او مغلي شهنشاه د پرنګیانو کیمپ ته سوالګر په ځیر لاړو، او دوی یعنې پرنګیانو ته شاه هند ددې علاقو دیوانې ورکړې، ددې سره کمپنۍ مضبوطه شوه، اوس نو د هند د بادشاهۍ خوبونه نور هم جوړه شول، اوس دوی د هند په سیاست کښې دغوړو رول د لوبولو قسط وکړ، نو دوی داکوښښ پیل کړ چې زر تر زره ډهلي قبضه کړي، داځکه چې د ډهلي امیدواران ډېر وو، چې هغه مرهټیان، روهیله، سکهان اوابدالیان وو، مګر دوی ته اول سر کښې خطره دافغانانو د شاه نه وه، تر ۱۷٦۲ پورې سکهانو دومره بدامني جوړه کړې وه، چې دشاه اسره دومره وخت نه وه چې د ایسټ انډیا کمپنۍ غوبرونه تاوکړي، نو دوی ددې باوجود دشاه نه

ډېر ډارېدلي وو، دوئ ته د میرقاسم لخوا دشاه هند ته دراېللوا طلاع شوې وه، مګر شاه عالم ثاني ددوئ ترخنجر لاندې وو او دغه داحمدشاه لخوا د هند منلےشوے بادشاه وُ، په جوته دوئ (پرنګیان) شاه هند ته وفاداري کوله، خو په حقیقت کښې هغه ددوئ بندي الهآباد کښې ساتلی وُ، او عمل کښې د شاه هند حیثیت دوئ نه منلو، نو هندي شاه اعتبارې سړے د ډهلي کښې منیرالدوله وُ، ده احمدشاه بابا ته د شاه د خلاصولو او بیر ته د ډهلي د راوړستلو متعلق ولیکل: چې علیحضرت ددوئ سره کمک وکړي، او ډهلي کښې دشاه هند مور زینب بیګم او شهزاده جوان بخت دشاه ابدالي راتګ ته یې سترګې نیولې وي. ددوئ پر احمدشاه بابا باندې باور وُ، چې شاه عالم ثاني به د پرنګیانو نه راخلاص کړي، جنوري ۱۷۶۷ کښې د احمدشاه بابا آوازه په هندکښې ګډه وه چې حضور راروان دے، نو پرنګیانو په ظاهره مغلي بادشاه ته ویل، چې دا هرڅه چې کیږي د تیموري خاندان د ښېګړې له پاره کیږي، مګر په حقیقت کښې دوئ لګیاوو، د احمدشاه بابا خلاف یې محاذ جوړولو، نو سمدستي د مرهټیانو او پرنګیانو تر منځ رابطه جوړه شوه، دوئ په چړټ کښې ولویدل، نو پرنګیانو د مرهټیانو مشر راغونات راؤ ته صلاح

ورکړه چې دوئ دې د ټپور د جټ حکمران جوهرسنګه د (سورج مل نوئ) سره روغه وکړي، او دهند نورمشران او شهزادګان یې راغونډلو کړل چې د درانیانو خلاف سره متحد شي او یو محاذ جوړ کړي نو دوئ ورته یقین ورکړو چې که شاه ابدالي د شاه جهان آباد نه راوړاندې کېدو، نو یې ټکیان به دده یعني احمدشاه خلاف خپل ټول قوت په کار اچوي، او ماتې به ورکړي، او بل چل پرنګیانو دغه وکړ، چې راغونات راؤ ته د جټانو سره دروغې جوړې نه ورو سته دویل، چې هغه د ابدالي ملګري راجپوتو باندې حمله وکړه یعنې (جودپور، او جیپور) مګر داسې معلومېږي چې احمدشاه بابا ددې ملعونې ټولې منصوبې نه خبر شوے و، چې نواب او دهر، مرهټیان، او پرنګیان ټول، متحد شوي دي، او شاه ابدالي خلاف یې جال خو-رولو کښې لګیا دي او دده متحدین راجپوتي راجا-ګانو خلاف د راغونات راؤ د پرنګیانو د لسون په ذریعه ټک باندې احمدشاه بابا د پنجاب نه راغونات ته یو سخت لیک ورولیږلو، او هغه یې له جګړې څخه په هغه صورت کښې ویرولو چې دے به د پاني پت د فتح له دستور او معاهدو په خلاف عمل وکړي، ددې

لیک د لیږ ولو سره مرهټي سرداران وارخطا شول نو دا ځکه نه وو ټل او د راجپوتي راجاګانو خلاف یې خپل مهم ترک کړ، او داندوږ لوري ته لاړل، مغلو دلته دوه مخې رول لوبوه دوی احمدشاه بابا او پرنګیان جنګول، او په خپله یې د دهلي واکمني په سترګو کښې وه، نو داسې نمونه یو لیک یې د شاه هند وکیل منیرالدوله، پرنګي ورشتې ته ولیکلو « دغه لیک داحمدشاه بابا متعلق و.

ده یعنې منیرالدوله داحمدشاه بابا متعلق ایسټ انډیا کمپنۍ ته د بابا د سیاست او حالات متعلق لیکي:

« داوخت په هندوستان کښې دقدرت خاوند، نولو وکیلانو عرائض شاه ته رسولي دي، که څه هم (منیرالدوله) یقین لري، دشاه له پاره به دا ګرانه وي، چې سږکال دسیکهانو د مخالفت په سبب دهلي یا نورو ځایونو ته ځان ورسوي، سره له دې هم که دهندوستان قدرتونو له ده سره مرسته وکړي، انګریزان به څه لاره ونیسي»

د دې لیک نه صفا معلومیږي، چې مغلو پرنګیانو ته جاسوسي کوله، بلې غاړې ته شهزاده جوان بخت او زینت محل دبابا سره رابطې وې یعنې دوی داویلي

دوولسم غاړی     خورل غوبنتل.

بناغلی وارلست د ۱۷۶۷ کښی ورته ولیکل: چی د مغلی بادشاه له پاره پایاته دغه د صلاح وړ خبره نه وي چی شاه درانی ته ولیکی یا تاسو (منیرالدوله)، ابدالي حضور کښي حاضر شئ، د داسې کارونو به ډیرې بدبختۍ جوړې شي او دهٔ ورته زیاته کړه چی زهٔ فکر نهٔ کوم چی جواهرسنګه جټ، نجیب الله خان روهیله، او نور روهیله مشران ابدالي شاه ته لاړ شي او خپلې علاقې دې هغوئ ته وسپاري، کهٔ چیرې، روهیله او جټان متحد شي، او سکهانو سره د شاه ابدالي خلاف کمک وکړي، نو داسې امکانات شته چی ابدالي شاه ماتې وخوري او سپک شي، دهٔ منیرالدوله ته داډګیرنه ورکړه چی دوئ یعنې پرنګیان دې ته تیار دي چی د هرقسم حالاتو مقابله وکړي او مونږ پنځهٔ برګیډه فوج د راجپوړ سرحد ته لیږلے دے، کهٔ ضرورت شي، دوئ به نور فوج هم ولیږي، هم پرنګیانو یو بل ملګرے شجاع الدوله ته یقین دهانی ورکړه چی تاسې هیڅ فکر مهٔ کوئ د پرنګیانو فوج دومره زورور دے، کهٔ چیرې د ابدالي شاه سره روهیله او جټان هم ملګري شي نو مونږه به تولوته

ماتې ورکړو، خو لکه چې څرنګه نواب صاحب ته معلومه ده چې پرنګي فوج ېلي دي او دابداليانو فوج دسورو دے، نو تاسو به دآسونو بندوبست وکړئ، او د سورو فوج جوړول به ستاسو په غاړه وي، يو بل ځاے منير الدوله پرنګيانو د بليک ميل کولو داسې کوشش کړے دے. ده ورته (وارلسټ) ته وليکل چې شاه عالم دا بدالي شاه سره څه خبرې کړې نه دي، مونږ ه ټوله معمله ستاسې خوښې ته پريښې ده، اوس ورته د بله سر ښکاره کوي ليکي: „ که شاه لکه چې نجيب الدوله وېلي دي، دوه يا درې کاله په هندکښې پاتې شي، او که احمد خان (بنګښ) او نور روهيله سرداران له هغه سره پيوستون ومومي نتيجه به ډېره خرابه او د هغې چاره به بيخي سخته شي.“

منيزالدوله ورته زياته کړه، چې وخت کم دے مولسرائ دې ما زر خبر کړي، چې ماته څه حکم دے، چې زه عمل پرې وکړم، او بله خبره دغه ده چې تاسې ته پې د رجوته وم چې ميرقاسم اراده لري، چې شاه ابدالي ته ورشي، او د هغه وکيل زيات وخت کيږي چې د شاه ابدالي په خدمت کښې حاضر شوے دے، د واسرائ او شاه هند تر منځ اتحاد به زمونږه دواړو خواو په ګټه وي، او زمونږ د دښمنانو منصوبې او مشورې به شنډې شي.

او منیرالدوله ۱۶ - مارچ باندې یو بل خط وُ لیږلی ته، ولیکو، چې دغه راز له شاولي خان څخه دا لیکونه راغلي دي، چې دوندي خان، ملاسردار، حافظ رحمت خان فیض الله خان او احمدخان دې د شاه کیمپ ته لاړشي میرقاسیم دغه کچه او بې عزته غوڅ تصمیم ینولې چې شاه ته ځان ورسوي له زیات وخت راهیسې د ده وکیل د لسولکوروپۍ سند و سره د شاه په پوځ کښې دے، او . . . ژمنه یې ورسره کړې ده، دے په زړه کښې د شجاع الدوله سره ډېره لویه بدبیني او دښمني لري، که شاه د ډهلي لور ته راوخیژي او (خدائ مه کړه) که روهیله ورسره پیوستون ومومي، نو د شریرو او نادانو خلکو سلا مشورې به غلبه ولري، او په نتیجه کښې به دے (شاه) د دې لور ته راوړاندې شي، نو په دې توګه، د دښمنانو دفاع کول به ګران وي او خونړۍ جګړه به ونښلي، که له یوې خوا شاه په خپله په (اله آباد) راودانګي، او په هغه بله خوا روهیله په لکهنو باراو (اوده) برید وکړي، نو د دواړو پوځونو سره د غره وهل به ګران وي. په دې سبب دا به ډېره زیاته - مصلحت منونکې خبره وي چې د دغه خطر مخنیوي په په غرض له شاه سره د دوستۍ او ملګرتیا یو تړون وشي خو که چیرې له شاه سره د سولې په مناسبو شرائطو -

موافقه ترلاسه نه شي ، نو دانګریزانو او علیحضرت (شهنشاه هند) له پاره به دا غوره وي ، چې د آله آباد او فیض آباد د په سیمه کښې ځانونه اخته نه کړي او بیرته پښتنو ته را په څټ شي »

دایسټ انډیا کمپنۍ سړیعتې واشراځ ۲۷ مارچ شهنشاه هند ته په ځواب کښې ولیکل « د شاه (ابدالي) د راتګ په باب اعلیحضرت د کومې اندیښنې اړتیا نه لري ، که چېرې هغه (شاه) دې خواته نه راځي ، نو مذاکرې ضروري نه دي ، خو که راغی نو هغه (شاه) ته هغو چې پشکش وانه خلي قناعت نه کوي ، یو داسې سړي ته سره زر ورکول چې په ناحقه پیدې هیواد برید وکړي ، اعلیحضرت او ددهٔ وفادار متحدین (پرنګیان) ته په یو شان سپکاوی ګڼل کیږي د راتلونکي په باب دې داعلیحضرت زړه بیغې له اندیښنې څخه بې غمه وي ، په پښتنه کښې پوځونو ته هدایت شوی چې لکهنو ته ورځیږي چې په دې ډول ټول هندوستان له اعلیحضرت سره دانګریزانو دوفادارۍ په ټینګتیا باندې قناعت ومومي او هندوستانیان داومني چې دوی (انګریزان) داعلیحضرت د دښمنانو د ځپلو اراده لري او دهر هغه څه په مقابل کښې تیار دي چې پېښېدونکې بریښي . »

دغه ټول خط وکتابت دایسټ انډیا کمپنۍ د مغلي

بادشاه او شجاع الدوله ترمينځ کېدو، چې مغلي بادشاه نه پوهېدو، چې د ده خبره په د چاسره وي، دوی کوښښ کړے دے، چې مغل او شيعه شجاع الدوله او ايسټ انډيا کمپنۍ د پښتنو خلاف سره يو شي، او د دې باوجود مغلي دربار د احمدشاه بابا سره هم رابطه ساتله، د پرنګيانو دا کوښښ و، چې احمدشاه بابا ته د سکهانو په ذريعه دومره بدامني جوړه کړي، چې د ده هلي يا دوی خلاف چې قدم پورته کولو قابل پاتې نه شي. او بل دوی مغل او شيعه شجاع الدوله د ځان سره ملګرے کړل، چې د غه ملګرتيا د مرضۍ نه زياته د زور په وجه وه، چې دوی يعنې پرنګيانو - پاروول او ورته به يې غوږې کولې، چې پرنګيانو به شاه ابدالي ته ماتې ورکړي، او دا يې ورته ښودله، چې تاسې خبره په دې کښې دے چې افغاني شاه په ځای د کمپنۍ ملګرتيا وکړي، او بل احمدشاه بابا د هندي مشرانو د دروغجنو قولونو نه موړو، دوی کښې دومره همت نه و، چې خپل ځانونه يې ساتلی وايې، نو بابا حوتل د دوی چوکيداري نشوه کولای، او بل د بابا د ښمنان کم نه وو، - سکهان، جټان، پرنګيان، مرهټيان او مذبذب مغل او د احمدشاه ملګري صرف هندي افغانان وو، چې دوی کښې نامتو نجيب الله خان روهيله و، او د احمد شاه بابا د پرباوري

وو. یوځل احمدشاه په غصه کښې وویل: چې په ډهلي
وردانګام، نو ددې په اوریدو سره نجیب الله روهیله
وارخطا شو، احمدشاه بابا ته ئې وویل: چې مخکښې مامرکړه
نو بیا په ډهلي ورځه، دا ځکه چې نجیب الله خان -
روهیله ته خو پرنګیانو او ددوئ د اتحادیانو لومه معلومه
وه، نو ده نه غوښتل چې احمدشاه بابا په غم کښې کیرشي
احمدشاه بابا هم پوه شه د ډهلي تګ یې پرېښود،
اوس دګرمۍ د راتګ وخت هم و، اوبل دریابونو کښې
د سېلابونو راتلو خطره هم وه، او دده په لارکښې سکهان
هم و، اوبل داچې افغاني سرداران هم ټولې فرښتې
نه وې، دوئ به کله په جوته او کله په پټه بابا ته لندې
جوړولې، د سیکهانو او پرنګیانو روابطې ځه افسانوي
خبرې نه دي، بلکې تاریخي ثبوتونه دي، دمثال په
ډول دجترال بارکرهفه لیک چې د۵-۹د آګست ۱۷۷۱ کښې
د سکهانو یو سردار جندا سنګها ته لیکلي وو، «داښکاره
ده چې ترڅو د خالصه فوج مراقبت لري، هیڅوک
په هندوستان باندې آزادانه اوله مخالفت پرته رادنګلی
نه شي».

ددې نه څرګنده معلومیږي، چې پرنګیانو دسکهانو
سره څومره ژوندۍ اوژوره رابطه لرله، نوبابا پدې

ټولو پوه وو، نو ځکه یې د هند په کړکیچنو مسئلو کښې بې ضرورته ځان نه ښکېلاوه.

او بل د بابا د پوزې بیمارۍ او د شکرې ناجوړتیا - یې ورځ په ورځ زیاتیدې، او بل بابا ته دخپل جانشین مسئله هم وه، که څه هم سلیمان شهزاده مشر و خو بابا خپل کشر زوئ شهزاده تیمور خپل جانشین وګماره ځکه چې بابا د پښتانه خلقو د هغه پوه کړل چې سلیمان د بادشاهۍ قابل نه دے، روسته سردارانو و رسره ومنله، دغه څه معمولي خبره نه وه.

هرڅرنګه د بابا صحت ورځ په ورځ کمزورے کیدو ددې نه ایسټ انډیاکمپنۍ فایده وچته کړه، هندکښې یې ځان مضبوط کړو، هندي قومونه او مذهبونه یې دیو بل خلاف استعمال کړل، ځان نه یې د مغلو په کنډوالو باندې بادشاهي جوړه کړه، که څه هم وروسته میرقاسم دې کوښښ کولو، چې د پرنګیانو خلاف اتحاد جوړ کړي. مګر دے ناکام شو، ده مرهټیانو، سیکهانو او جټانو ته خواست وکړ چې د ده مدد وکړي، مګر - دوئ کښې یو هم تیار نه وُ نو مارچ ۱۷۷۰ کښې ده دکن حیدرآباد نظام ته داسې لیکلي وو: " چې دے له احمدشاه ابدالي څخه پرته بل کوم دوست نه لري خو هغه پخپله

په افغانستان کښې په خپلو کورنيو مسئلو بوخت دے»

هغه مسلې دتيمور ولي‌عهد او د بابا بيماري وه، چې ده د ميرقاسم مدد نه شو کولی، بلکې اخري وخت کښې روهيله مشر نجيب الله خان هم ورته بلنه ورکړې وه، او ټول خرچ هندي افغانانو په ځان منلې وُ، لکه چې د ميرقاسم دليک نه جاوتيږي، د بابا اخري شپې ورځې وې د کور د سمبالولو په چرت کښې وُ، مجبور وُ، د ګران ملګري نجيب الله خان روهيله مدد يې نهٔ شو کولای.

اوس د بابا بيماري زياتيده د ۱۷۷۲ کال او ړي کښې د پوزې مرض يې دومره خطرناک شو، چې بابا په مشکله خبرې کولے شوې او خوراک ورته ګران وُ. چې علاج يې ګران شو، نو د کيسې غرونو کښې يو ځای چې په توبه مشهور و لاړو، چې د کندهار په نسبت سوړ وُ، د غه ځای د اڅکزو په علاقه کښې وُ، بابا د دې ځايه د حکومت اداره کوله، مګر بيمارۍ يې زياتيده، خبرې يې نورې نه شوې کولی، نشتې اشارې به يې کولې، چې پدې باندې د بابا ياور سکرتري ياقوت خان پوهيدو، مګر چې څه وخت ياقوت خان هم د بابا په اشاره نه پوهيدو، بيا بابا ورته ليکل پيل کړل، په دې طرز به د بابا شاهي چارې روانې وې، مګر اخري حالت دې ځای ته راغی چې بابا د خبرو، ليکلو، او اشارو نه پريوتو، او دغه لوی بابا د افغانستان

د هیواد جوړونکی او جهاني تاریخ کښې پښتون ملت پت او عزت ګټونکی بابا د جمعې په شپه ۲۲ د سمبر ۱۷۷۳ کال کښې د نړۍ نه د تل د پاره سترګې پټې کړې. (اِنَّا للّٰه وَاِنَّا الیه راجعون) یاقوت خان د بابا ډېر اعتباري سړی وُ، او پټ په پټه یې شهزاده تیمور ته خبر ورکړو، چې شهزاده په دې وخت کښې هرات کښې وُ.

یاقوت خان بابا د نارونې کټ کښې واچوه، آوازه یې خوره کړه چې سخت نا جوړه دے، بیرته کندهار ته یې یوړو، یاقوت خان به د جنازې په دوران کښې کټ ته راتلو او بابا ته به نژدې شو، چې خلقو ته د غه تصور ورکړي، چې د بابا سره پټې خبرې کوي، او خوګ یې نه پرېښنودل ورته، داځکه چې د به ویل چې د بابا د پاره تکلیف جوړه نه شي، هم د غه شان د جنازې سره تول خزانه وه مګر کندهار ته لږ مزل پاتې وُ، چې د یکښې شهزاده سلیمان خیل پلار ته راغئ، د لته خبره جوړه شوه، او د بابا د مړینې نه عام اولس کندهار کښې خبر شو، د غه تول کار یاقوب خان د دې د پاره کړے وُ چې خوګ د دې نه ناجایزه فایده وانخلي، چې د غه نمونه سرداران لږ نه وو، او د غه لوئ پښتون - خیل قوم د کندهار لوید یځه برخه کښې خاورو ته وسپارل شو، او ښکلې روضه یې پرې جوړه کړه، چې نن ورځې پورې موجوده ده ؛ دده په روضه پر یوه کتیبه داسې لیکل شوي :

۱ ‹‹ احمد شاه دراني یولوئ پاچا وُ، دده عدالت داسې ترپ وُ، چې ګوزنه او زمرې په سوله کښې یوځائ سره وسیدل، دده د بریو په غږ سره دده د دښمنانو غوږونه پرله پسې کاڼه شوي وو ›› .

‹‹ کتاب احمد شاه دراني، لیکونکے ډاکتر ګنډا سنګه، ترجمان منګل ›› .

# د احمدشاه بابا

# خوئ خصلت

بابا د خوئ نه ډېر نیک او پرهیزګار مسلمان ؤ، او ورسره ډېر پوخ پښتون هم ؤ، بابا دقوم او دین ترمنځ دتړاکتونو په څېل ډېر ژاور پوه ؤ، نه دوسره لیونی مسلمان ؤ، چې خپل قوم ځینې ورک ؤؤ، او نه دومره لیونی قوم پرست ؤ، چې دین ته یې بلاوویل، پنځه وخته لمونځ یې کولو، د نیکو، خلکو قدردان ؤ، او سنه ( EDUCATED ) ؤ، لیکوال، شاعر، ملي مشر، شهنشاه او ورسره ملنګ او قومي جرنیل هم و.،

احمدشاه بابا په ټولو پاچاهانو کښې په دې امتیاز دے، چې دهٔ یو داسې وخت کښې پښتنو ته هیواد ورکړو چې قومونه لګیاو، دیوبل په خوراک وو، که څیرې بابا په دې وخت کښې افغانستان هیواد بنسټ نهٔ وے ایښې، نو مونږه د قبائلو په بنکل کښې به موجود وے مګر دملي سوچ او مرکز او هیواد نه به محروم وایٔ، او خپلې پولې به مونه لرلې، بابا اول پښتون دے چې خپل کور کښې د ننه یې حکومت جوړ کړو، او ټول پښتانه یې په

یو مرکز دنوري په زور نه بلکې دخپلې تجربې او
او دپښتنو د خوئنه‌دخبرتیا په ذریعه را ټول کړل، اودوئ
ته یې یو ملي احساس ورکړ اوبل یې موږ ته هیواد
اوهیواد ته جوړې پولې اونوم ورکړ. چې دزماني
دقانون مطابق یو لیګل (Legala) بنکل یې اختیار کړو،
چې موږ ځینې محروم وو، موږ په هنداوپارس
باندې بادشاهي کړې ده، مګر موږه هلته دېرژر ورک
شوي یو، دخپلې مورنۍ ځمکې نه دلرې کېدو په وجه
موږ کلتوري په دوئ کښې ورویلي شوي یو،او بیا مو
بال بچ تش په نوم پاتې وو، ژبه،خوئ خصلت به
ځینې تلې و، په‌غوټولو خبرو باندې احمدشاه بابا شعوري
پوهیدو، ځکه یې نه په دهلي کښې حکومت جوړولو،
او نه اصفهان ایران کښې، دغه د بابا خواهش و، چې
پښتون قوم ته یو هیواد ورکړي ، دغه هله ممکنه
وه چې پائې تخت یې په پښتونخوا کښې وے، نوځکه
ده موږ ته پولې وټاکلې چې دغه دستاسو هیواد
دے.او دغه نورې علاقې پردئ دي، ده نه غوښتل
چې پښتانه هندي او پارسي کلتور کښې ورک شي نو ده
شعوري شاعري پخپله ژبه پښتو کښې وکړه ، ده د
پښتنو قبیلو سرچلن په ملي طرز کولو ، ده چیرې هم

ځان په دوی جګړه نه کښېلو، دا ځکه چې دوی ته پته وه، دغه لیونیان بل څوک په زور نه مني، په دوی به په مینه کار کوي، د پښتنو د خوی خصلت نه د خبرېدو دپاره مثال کافي دے، لکه چې وايي:

یوځای چیرته د بابا فوج اړولی وو، یوه ورځ شاهي نوکران د تازه سپو په ذریعه یو میلو په مخه کړے و، میلو مخکښې سپي وروسته، په دغه وخت کښې میلو د خوګیانو په تمبو ورننوتی وُ، خوګیانو د عسکرو سپي او شاهي نوکران د میلو نه منع کړل، او ورته یې وویل، چې میلو زموږ ه تمبو کښې پناه آخیستې ده، پدې باندې د خوګیانو او د شاهي نوکرانو تر منځ شور جوړ شو دے، خوګیانو نورې پسې راویستي دي چې څوک زموږ همسایه (میلو) ته تاوان ورسوي، فیصله به دغه توره کوي، او د دوی وینې به توی شي، وایي چې د دې نه احمد شاه بابا خبر شو خپله او یا چا خبر کړو، بابا فوراً راغې او د جګړې نزاکت یې فوراً و پېژاندہ، او نتایج یې ورښکاره شول، نو نر احمد شاه بابا د خوګیانو تمبو ته ورننوت، علان یې وکړ، چې میلو نشی د خوګیانو همسایه نه دے، بلکې زما هم دے، په دې ذریعه بابا د خپل فوج په منځ کښې خانه جنګي ورکه کړه.

که چیرې بابا د پښتونوالې نه خبر نه وے، نوشاهي حکم به یې کړے وُ، چې ځوګیانو عسکري وښیي، نو ځان ته به یې کارکتلے وُ، مګر بابا داسې ونه کړل، داځکه چې ده ته پته وه چې پښتانه ضد نیولې دي را شه د ملي کېتې له پاره بادشاهي حکم شاته کړه، او پښتونولي یې وکړه، داځکه چې پښتونوالي کښې هسایه (میلو) بچ شو، او بابا لښکر د خانزجنګي نه وساته، زیاتو افغاني بادشاهانو چې څومره وهل خوړل، یوه غټه وجه دغه وه چې دوئ دخپل کلتور او قامولۍ نه لرې شوي وو.

بابا ټول کارونه د پښتنو د مشرانو سره د جرګو په ذریعه کول او قبیلو باندې یې د دوئ خپل مشران مقرر کړي وو، او دومره آزادي یې ورکړې وه، چې افغانستان کښې د دوئ ساه نه بندېده، او دوئ ته یې دغه احساس ورکړے وُ، چې دغه ستاسو خپل هیواد او حکومت دے.

بابا د ایشیا او هند او ایران په سیاست او ټول باندې پوره پوره پوهېده، دومره نوړے به یې په خوله کوله چې تېریدایې شي، ده چیري د حرص نه کار نه دے اخیستے، مستقل مزاج یې درلوده، او ډېر رحمدل او، مهربان وُ، د پاني پت جنګ کښې د پیښوا سره دده دزوئ

او تربور په مرګ ورسره دغم رازیه جوت مثال دے.
چې بابا یو نوبل او نجیب دښمن وُ، هم دغه شان
د نادر شاه د اولاد سره سلوک او د مغلو سره سلوک
ښکاره مثالونه دي، او بل بابا ته معلومه وه چې پښتانه
باید مشغول وساتل شي، او که دوی بې روزګاره پاتې شي
نو یو بل ته به لوې جوړ وي، هدغه وجه وه، نو ځکه
بابا به کله په ایران، او کله په هند و رخوشې کړي وو،
چې دوی نیولي وې، ګنې دوی په کور د ننه غوبل
جوړوي.

هدغه وجه وه چې افغاني سردارانو ته د بابا
په ژوند دومره وخت میلاو نه شو چې دوی په کور
کښې سره لاندې وتي وایي، بابا دوی د اتفاق لپاره
همیشه یو خارجي دښمن ساتلے وو، او چې بابا سترګې پټې
کړې، سرداران بیا په کور کښې سره لاندې وتل، چې نتیجه
یې معلومه ده، د بابا شعوري کوښښ وُ چې په موږ
کښې قامولي راولي، او د دهٔ ټول کړه وړه د افغانیت
له پاره وو، چې د دهٔ ټګ افغان ملت ته لوی زیان وُ، لویه
بادشاهي یې موږ ته پرېښې ده، او نه د ده په اولاد کښې
او نه په موږ کښې داسې څوک پیدا شو، چې دغه د بابا
میراث مو د دښمنانو نه ساتلے وے، د دهٔ په ځای شهزاده
تیمور پاچا شو مګر د بابا خوئ خصلت نه محروم وُ.

# تیمور شاه

# او د افغاني شهزادګانو کورني جنګونه

د ده د زیږیدو ځای تاریخدان مشهد لیکي:

«چې دسمبر ۱۷۴۶ کښې پیدا شوی دی، د احمدشاه اته زامن وو چې په دوی کښې شهزاده سلیمان مشهور او تیمور ورپسې و. سلیمان د وزیر اعظم شاولي خان د لور سره واده کړی و، تیمور زیات عمر په هرات کښې او د فارسي بانو سره تیر کړی و، د اځکه چې دی د هرت ګورنر هم و، تیمور د سلیمان په مقابل کښې هوښیار او نرم دل و، نو ځکه احمدشاه بابا د سلیمان پرځای تیمور خپل جانشین مقرر کړ، چې بابا وفات شو، نو سلیمان په کندهار کښې و، ده د خپل سخر شاولي خان په کوښښ ځان بادشاه اعلان کړو، د تیمور په راتګ سره سخر او نوم ګوښې پاتې شول، خلک او دراني سردار د احمدشاه بابا د وصیت مطابق د تیمور طرف ته ودریدل شاولي خان چې په ځان پوه شو، نو د تیمور حضور ته حاضر شو، پدې د بغاوت مقدمه وچلیده، سابقه افغاني

وزیر عظم تیمور شاه اعدام کړ، چې په دې باندې
ډېر دراني سرداران خپه شول. دغه ن مونږه د بې
اتفاقۍ لومړی خښته وه، چې د شاه ولي خان د مرګ په
وجه کېښودل شوه. بله غلطي تیمور دغه وکړه چې د
کندهار په ځای یې شاهي ناستون کابل ته یووړ، چې
د قزلباشانو په کلب ورننوتو. په دې باندې کندهاري خپه
شول تیمور شاه به اته میاشتې کابل کښې او څلور میاشتې
پېښور کښې وُ، د دې سر شاه په تاجکو او قزلباشو باندې
باور شروع کړو او پښتانه رو رو د حکومت له چارو نه
بې دخله کېدل. په کابل او پېښور کښې ورته مغلي نوکر-
شاهي ناسته وه، شاه یې په شرابو او ګډاګانو واړوه
د خپل کلتور، ژبې پښتونوالۍ نه یې جدا کړو، هم د دې
ورځې نه افغانستان تش په نوم د افغانانو وُ، مګر خواږه
یې ټول نورو خلقو خوړل، چې دغه لویه نن ورځې،
پورې روانه ده. د سیکهانو، پرنګیانو ربړې څو د احمدشاه
بابا په وخت کښې موجود ې وې مګر دومره د ناسور شکل
یې اختیار کړې نه وُ، د تیمور شاه په وخت کښې څه خاص
فتوحات نه دي شوي، مګر د بابا په میراث باندې سکهان
لګیا وو، میاشت په میاشت او کال په کال یې قبضه کولو، سند
کښې تالپوري خانان لګیا وُو، ځانونه یې جدا کول، افغاني

با دشاه خبرو ته یې پوړه غوږ ونه نه نیول اوکوږ د نته ورته ترپور عبدالخالق خان راپورته شو ، که څه هم هغه کامیاب نشو ، مګر دافغاني سردارانو نیتونه معلوم شول ،

په کال ۱۷۷۹ کښې دچکنو صاحب زاده صاحب فیض الله خان او دخلیلو مشر ارسلا خان دبرو ، مومندو مشر ، دوی د تیمور شاه دقتل او داحمدشاه بابا شپږم زوی شهزاده سکندر شاه په تخت کیناستلو سازش وکړو ، په دې وخت کښې تیمور شاه پېښور بالاحصار کښې و ، فیض الله خان یو لښکر داپریدو او شینوارو نه جوړ کړے و ، او دشاه په حکم یې د پنجاب برید کولو ، مګر ده د پنجاب په ځاے خپل لښکر بالاحصار ته بوت چې زه یې شاه ته ورښایم ، چې دوی بالاحصار دروازې ته نږدې شول ، نو ل محافیضان یې مره کړل لښکر قلعه ته ور داخل شو ، غرمه وه خوشاه ویده نه و ، چې شور یې واوریده ، نو فوراً پوه شو ، دے دمحل چت ته ختلے و ، شاهي بادي ګارډ ته یې پکړے خوان ولی وه ، دلته شاهي فوج او درانیان راغلل ، جنګ وشو . فیض الله خان او د ده زوی ګرفتار شول اوقتل شول ، د میا صاحب د نیولو نه نورو سردارانو منع کړو چې دده نه لوی مصبت جوړیږي ارسلا خان مومند ځني خلاص شو پاس غرو ته لاړ ، ارسلاخان

موسمند سړی قرآن وشو، چې څه به ورته نهٔ وایي، چې څهٔ وخت راغئ، بیا کله چې راغئ شاه خپله وعده ماته کړه، ارسلا خان یې قتل کړ، د دې په وجه په خلکو بد اثر وشو، چې بادشاه قرآن هم نهٔ مني، مشهد ایران کښې بغاوتونه، شمال دا پرخه ازبک را روان وو، پنجاب کښې سکهان وو، کشمیر کښې افغاني سرداران سړي وران وو، د پېښور او کابل دربارونه د سازشونو نه ډک وو، تیمور عیاش آرام پسند سړے وو د ده وخت ټول په دې کښې تیر شو.

کال ۱۷۹۳ کښې د پېښور گرمۍ نه کابل ته روان و، چې لار کښې ناجوړه شو، او ۲۰ مئ ۱۷۹۳ کښې مړ شو، یوتاریخ دان چې فیریر نومیږي داسې لیکي چې د هغه حکومت په افغانستان کښې د عدل او انصاف له پاره مشهور دے، هغه رحمدل او تن آسانه بادشاه و، بلا وجه سختي کول د هغهٔ طبیعت نه بالکل خلاف و، مگر هغه په ځاے د پښتنو رواجونو او طرز زندگي ایراني طرز معاشرت له زیاته ترجیح ورکوله د پښتنو کوم رنگ چې احمدشاه په زمانه کښې حکومت نه حاصل و، هغهٔ دده په زمانه کښې بالکل بدل شو تر دې پورې چې د هغې نه پخپله او د هغه د سردارانو نه د پښتنو ژبه هم قریب، قریب هیره شوه، او فارسي ژبه د کابل په دربار کښې عروج حاصل کړو، هم تیمور شاه د زمانې نه حکومت نه

د پښتنو زوال شروع شو، او دفتري ژبې په ځای د پښتو نه فارسي شوه،

فیریر «۱۷۷۷ – ۱۸۴۷» يو بل ځای ليکي «په افغانستان کښې زما د سياحت په دوران کښې ماته دا سې ډېر و سردارانو سره د خبرو کولو موقع حاصله شوې ده، چې څوک د تيمور شاه په دربار کښې د لويو لويو رتبو خاوندان وُ او د هغه د عادتونو خصلتونو نه په ښه شان سره واقف وو، ددې سردارانو نه ماته معلومه شوه، چې تيمور شاه فراست او چالاکي هم دومره زيات وو چې څومره د هغه بهادري او مستقل مزاجي، او دا هم ددې صفاتونو وجه ده چې د هغه پلار هغه له په نورو زامنو ترجيح ورکړې وه.»

د تيمور شاه، دوه ويشت زامن وو؛

## شا زمان

دا خو اوس معلومه خبره ده چې تيمور شاه دوه ويشت زامن وو چې دوئ مختلفو افغاني صوبو کښې گورنران وو، بل دا چې تيمور شاه د خپل جانشين وصيت هم کړے نۀ وُ. ددې په جنازه باندې افغاني سرداران ډلې ډلې شول هر يو سردار ځان ته يو شهزاده خوښ کړے وُ، چې د افغانستان په تخت به يې کښېنوي،، هغه د چا خبره چې (سل بيماران يو انار) په دې

پتولو سردارانو کښې پائنده خان بارکزئ دحاجي جمال خان محمدزي زوئ زورور وُ نو د شاه زمان مور دده سره لار جوړه کړه ، دخپل زوئ د بادشاه کولو له پاره يې تيار کړو او دده په دربار کښې نورهم ډېر تکړه سرداران ملګري وو ، لکه احمدخان نورزی، فتح الله خان سدوزی، نورمحمد-خان ، امين ، اميراسلام خان، جوان شير ، محمدخان، او امين الله خان لوګرے ، دده په همايت د تيمور پنځم زوئ زمان ميرزا دشاه زمان تر نوم لاندې په چل ول بادشاه کړو، دده د حکومت دوره دپښتنو له پاره د لوئ ازمائښ زمانه وه ، په هند کښې پرنګليان د احمدشاه بابا د مرګ نه فائده واخيسته ديو زورور قوت په شکل ښکاره شول، پرنګليانو خپل رقيبات يورپي قومونه لکه فرانسويان ، پرتګيان او هالنډيان وار په وار د هندوستان تر دعوئ ايستلی وو، مرهټيان هم بې اتفاقه شوي وو، او کمزوري شوي وو ، جنوبي هند کښې حيدرعلي يوازې د پرنګليانو سره لاس په ګريوان وو، پرنګليانو هند کښې د دمسلمانانو صوبې او حکومتونه يو په بل پسې اخستو او پنجاب کښې هغه ن ړه پيارې يعنې سيکهان وو ، مشهد باندې قاجاريان رامات وو ، دشمال له اړخه ازبک په امو سين راپورې وتو ، پدې حالاتو کښې زمان خان بادشاه شو ، مګر د کمزورۍ باوجود مرهټيانو دحکومت خوبونه ليدل ، او پرنګليان خوراغلی دي،

پسې وو ، د دې ټولو نه زمان شاه سبه خبر ؤ . مګر ده ته
وخت پيدا نه شو ، چې په هند باندې فيصله کن حمله وکړي
دا ځکه چې د هر وخت پورې دے د محمود تر لاسه په عذاب
ؤ ، محمود هم کله په قندهار کښې د بادشاهۍ اعلان کړے
او کله په هرات کښې ، پرنګيانو زمان خان ته خپل ورو نه ،
ولمسول ، چې په کوم کښې ګير وي ، چې د هندوستان د
فتحې شوق يې پوره نه شي ، پښتانه د ده په وخت کښې د
بې اتفاقۍ په مرض پوره پوره ککړ شوي وو ، يو د بل په لاره
نه تلو ، او بله غلطي زمان شاه دغه وکړه چې د ده د پلاره
نه پاتې قبايلي مشرانو اختيارات يې نور هم کم کړل ، او داسې
خلک چې لوئ لوئ خلک کړل چې دوئ ملي بنسټ نه درلود
تش د پادشاه په خوش امدۍ او چاپلوسۍ به ژوندي وو ، د
زمان شاه خيال ؤ چې په دے چل به د خپل حکومت و اکې
ټينګې کړي ، مګر افغاني ټولنه قبايلي ده ، چې قبايلي مشران
د رسره نه وي ، نو حکومت کول مشکل دي . د ده يو بل ورور
همايون نه هم دے په عذاب ؤ ، د ډېرو جګړو نه پس هغه
ګرفتار شو ، د شاه په حکم ړوند شو ، چې اوس پښتنو
د مرګ نه علاوه يو بله ذليله مغلي طريقه خپله کړه ، يعنې
د سترګو ړندول ، چې دغه ډېره غير انسانې لاره وه . خو ،
« چې څه کرې هغه به ريبې » چې څه وخت زمان شاه

د شاه محمود خلاف په جنګ کښې و، په دې وخت کښې
افغاني ترکستان باندې د شمال نه اوزبکو حمله وکړه ،
بلخ یې قبضه کړه ، مګر زمان شاه د بخارې بادشاه ته تحفه
اولیګل ، په دې باندې ازبک واپس لاړل. اوس زمان خان
د هند فتحې لپاره روان شو ، د ۱۷۹۵ په اخیري کښې د پېښور
نه روان شو ، په اټک پورې شو ، په روهتاس کښې یې په سیکهانو
باندې حمله وکړه ، دوی ماتې وخوړله ، غرونو ته لاړل ، دلته
یوه هفته تیره نه وه چې خبر ورته راغی ، چې د ایران باچا
آغا محمد قاچار په مشهد باندې حمله کوي او را روان دے
آغا محمد قاچار ډېر بې رحمه سړے و ، ده مشهد فتح کړ ،
د نادرشاه هډوکي یې له قبر نه وایستل ، او ده لماسی شاه
مرزا ډېر بوډا و ، هغه عاجز یې قتل کړو ، زمان شاه د هند
تګ وځنډوه د قاچار د غوښونو د تاوولو له پاره د لوی لښکر
سره مشهد ته روان شو ، مګر چې پېښور ته ورسیدو نو قاچار
مشهد پرېښود او ایران ته واپس لاړو ، شاه زمان بیا د هند
په لوري مخه وکړه په ۳ جنوري ۱۷۹۷ کښې لاهور ته داخل
شو او په هندوستان باندې د حملې تیارے یې وینو ، چې
په دیکښې بیا خبر راغی چې محمود بیا په هرات کښې بغاوت
کړے دے شاه بیا د هند اراده ترک کړه ، د کندهار د دفاع
له پاره لاړو ، ده محمود بیا د هرات نه وشړلو ، لاړ ایران کښې

همسایه شو. اوس شاه زمان بیا دهند د فتح کولو له پاره روان شو. -۲۵- اکتوبر ۱۷۹۸ کښې بیا لاهور ته ورسید و، د لته د دسیکهانو سره دوامداره روغه وکړه، او اکثره سیکهان سرداران ورته راغلل، چې په دوی کښې رنجیت سنګهـ هم و، شاه زمان دے د پنجاب ګورنر مقرر کړو، پد ې وخت کښې بیا ایرانیانو په مشهد باند ې حمله وکړه داخل فتح علی شاه دهندوستان پرنګي حکومت ولمسوه، داځکه چې دکمپنۍ هندوستاني پرنګي حکومت په زړه کښې دغه ډار پیدا کړے و چې مابا ده شاه زمان خان دخپل نیکه (احمد شاه) په څیر هندوستان فتح نه کړي، نو دوی ایراني بادشاه فتح علي شاه د ې ته تیار کړ چې حمله وکړي، او دپرنګي پالیسي دغه وه چې شاه زمان د هند دحملې نه بل ځاے مشغول وساتي، نو پرنګیانو اصفهان ته یو سفارت ولیږلو، او دد ې په ذریعه دوی ایرانیان د افغانانو بد ې ته ولمسول او ډېر ې وعد ې یې ورسره وکړ ې ایرانیان په خپل مقصد کښې کامیاب نه شول، مګر دپرنګیانو مقصد پوره شو، او زمان شاه یوځل بیا دهند دحملې نه ایسار شو.

یو پرنګي لیکوال ایلفنسټون لیکي: « دراني لښکر د ې پیش قدمۍ او دهغوی په لاهور باند ې قبضې کولو په ټول هند- وستان کښې یو هلچل پیدا کړے دے، مرهټه قوم بخپله کمزورے شوے و، ځکه چې هغوی دخپلې کورنۍ بې اتفاقیو

په وجه خپل پوځـونه ټول جنوبي هند ته بوتللي وو، دنواب وزیر حکومت هم ډېر بې طاقته وو، او د هغه رعایا کښې اکثره خلك د هغه نه بغاوت کولو ته مائله و، د دې علاوه، دټولو مسلمانانو دا خواهش وو، چې زموږ دین دې بیا خورشي.

یوبل ځاے لیکي: « د شاه زمان د ډېرې خلك هم هسې بې کاره ناست نه وو، د هندوستان ډېرو حصوکښې سازشونه په دې غرض وشول، چې څرنګه به د شاه زمان په راتلونکي حمله کښې هغه سره تعاون کېږي. روهیله په ډېر شیر کښې سره دوسلې راجمع کېدل شروع شول، او هر مسلمان اعینږ تږ دکښ په دې امید کښې په انتظار شول چې کله به د اسلام علمبردار پېش قدمي کوي. دخلکو امیدونه او توقعات د څه وخت له پاره خوار شول، هرکله چې د شاه زمان دا حمله پاتې شوه، مګر د دې حملې اثر د عامو خلکو په زړونو باندې مستقبل طور پاتې شو، څوکاله پس د مرهټو د زړه نه دبل احمد شاه دراښکاره کیدو ویره لاړه، او کوم انګریزي سفارت چې ایران ته په ۱۷۹۹ کښې تللي وو، د هغې غرض هم دا و چې د شاه زمان دا مجوزه حمله دې د دریو کالو پورې وځنډولې شي.

همدارنګه یو بل برنګے سروليم جان د دې حملې متعلق لیکي: « په هندوستان کښې د حکومت برطانیه ټولو دښمنانو د معاندانه توقعاتو سره د کابل په طرف سترګې نیولې وې.

د هغوئ دا یقین ؤ چې د دې عجیب او غریب ملك دکوهستانو د رو نه به د مجاهدینو یو داسې ټولے راوزي چې هغوئ به اسلام د غاصبانو پرنګیانو د پنجې نه خلاص کړي، د هندوستان د مسلمانانو بادشاهانو وینه دجوش نه خوټکېدله په قطب کښې د اوده نه او سوهیل کښې د میسور نه دپښتنو بادشاه ته دعوت نامې تللې وې، د ډېر مال او سړو امداد وعدې یې ورسره کړې وې، وزیر علی او سلطان ټیپو ور ته لیکلي وو، چې د مسلمانانو یولوئ لښکر دهندوستان دا خپستو له پاره راکوزه کړو، تورکسان هم چې چاسره دهغه دمذهب شرکت نه وو، هغه سره دملګرتیا قول اقرار وکړو د جوناګړ راجا دا لوظ وکړ، چې هرکله شاهي پوځ د هغه په علاقه کښې قدم کېږدي، نو هغه به یو لك روپۍ روزانه هغه ته ورکوي..

دغه وو د هندوستاني بادشاهانو او مشرانو احساسات او توقعات، مګر د دې ټولو نه پرنګے خبر وو، نو دوئ ایران دافغانستان خلاف استعمالولو چل جوړ کړے ؤ، پرنګي حکومت دایراني حکومت سره یو لوظنامه وکړه چې کیپټن مالکم دکمپنۍ نمایندګي کوله، د هغې لوظنامې دیوشرط نه یوا هم شرط دغه وو، چې که چیرې بیا دراني بادشاه په هندوستان باندې دحملې کولو اراده وکړه، نو شاه ایران به ضرور دپښتنو ملك

به په یو لوئ لښکر تباه او برباد وي ،او د پښتو بادشاه سره
به هغه بالکل روغه نه کوي ، ترڅو پورې چې هغه دا قرار
نه وي کړے چې بیا به دا نګریزانو خلاف هیڅ یو نه
ګوا بښیږي ".
د پرنګي نه خوګیله نه شته ، خو افسوس د ایراني
مسلمان بادشاه له پاسه دے ، چې د غه بې وقوف د پرنګي
د مفادو ساتلو له پاره تیار وُ .
کیپټن مالکم ۱۷۹۹ کښې ایران ته تلی وُ ، او ایران کښې
یې دومره رشوتونه او روپۍ خورې کړې وې چې
ایرانیان یې په کرایه اخستي وو ، .
نو دې ګورنر جنرال لارډ ولزلی ته اکتوبر ۱۸۰۰ کښې
د اصفهان نه لیکي :
**ترجمه** :- تاسو مطمین اوسئ چې زمان شاه په هند کښې هیڅ نه شي
کولې ، . ترڅو پورې ۱۸۰۱ د برسات موسم وي ، دده سره ځنډنه
شته ، که طاقت هم ورسره وي ، چې راسې عمل وکړي ، دخدای په مهربانۍ
به دې دخوګالو د پاره د ے ګوټ کښې حصار پاتې شي او هیڅ غور او فکر
به د بل ځائ و نکړای شي .

ددې نه اندازه لګي چې پرنګي د زمان شاه خلاف
څومره لړې، لړې پورې چال خور کړې ؤ، شاه نه يې نه صرف
خپل کور د ننه غوبل جوړ کړے ؤ، بلکې ايران يې هم ورته
په کرايه اخيستی ؤ، د دې نه د پرنګيانو دور رسی منصوبو
نه پته لګي، چې دوئ د هندوستان د خوراک له پاره کومې
کومې لوبې نه کولې، همدغه وجه وه چې پرنګيانو تر ۱۹۴۷ پورې
پر پښتنو باندې خاص نظر ؤ، د باچا خان او خدائی خدمتګارو
تحريک ته په دې ائينه کښې کتل پکار دي، د پښتنو او پرنګي
جګړه ډېره زړه ده، د احمد شاه بابا نه تر باچا خان پورې
يې دوام وکړو، اوس يو ځل بيا شهزاده محمود په هرات
حمله وکړه، دلته وفادار خان چالاکي ورسره وکړه د
دوئ ملګري يې يو په بل بې اعتباره کړل، محمود وويريده،
بخارا ته وتښتيدو، شاه زمان د بخارا بادشاه ته وليکل چې
شاه محمود باغي دے تاسې ته پکار نه دي چې زما خلاف
يې ساتئ. پدې باندې محمود خبر شو، محمود د بخارا د شاه
نه د حج له پاره اجازت وغوښتو، هغه اجازت ورکړ، محمود
د حج په بهانه ايران ته راغئ، د فتح علی خان قاچار په
خدمت کښې حاضر شو، د شاه زمان خلاف يې د ايرانيانو
او پرنګيانو سره سازشونه پيل کړل. دلته د شاه زمان په دربار
کښې د سردارانو کشمکش هم ؤ، دوئ ديوبل پښې راښکلې، د

شاه زمان دربار کښې پائنده خان نور ور سردار و ، دده
مخالف یو چالاک چاپلوس او بزدل سردار وفادار خان و ، ده
غوښتل چې پائنده خان بې عزته کړي ، وفادار خان ډېر
چاپلوس او خوش امد سړی و ، په دې ذریعه یې په شاه
زمان قبضه کړې وه ، چاپلوسي او خوش امدي د شاه زمان
کمزوري وه ، د دې نه وفادار خان فایده واخیسته ، نو
شاه زمان یې دې ته ولمسولو ، چې د قبائلي سردارانو
اختیارات کم کړي ، او دربار کښې ټول سرداران د وفادار
خان د ناکردو نه تر پوزې پورې راغلي وو ، دوی بار
بار شاه زمان ته احتجاج وکړو ، مګر وفادار خان په
شاه زمان داسې دام چوف کړې و ، چې هیڅ یې نه اورېدل
نو په کال ۱۷۹۹ - کښې د پائنده خان تر مشرکرۍ لاندې
دوی د وفادار خان د قتلولو سازش وکړو ، پائنده خان
د بارکزو قبیلې یو قابل سردار و ، چې بل نوم یې سرفراز
خان و ، دده سره محمد حکیم خان الکوزی ، امیر ارسلا خان
قزلباش ( پارسي بان ) او نور شریف منشي باشي یوسف علي خان
د خواجه سراګانو مشر ، سلطان خان نورزی او رحیم خان
علي زی ، دوی ټول د یو بزرګ سړي په کور کښې راجمع
شول ، دا ځکه چې د وفادار خان جاسوسان هر ځای وو ،
نو دوی قسم وکړو ، چې وفادار خان به وژنو او شاه زمان

به له تخته کوزو، مګر یو پارسیبان سردار د خپلو لوزخلاف شاه زمان او وفادارخان د سازش نه خبر کړل، دوی فوراً ته وتول، سرداران ونیول او دربار کښې یې پیش کړل دوی ورته وویل، چې موږ ه څوځو ځله د وفادارخان خلاف تاسې ته شکایت کړے وُ، مګر تاسو غوږ و نه په کړولو، او موږ قسم کړے وُ چې وفادار به وژنو او تاسو به صرف د تخته کوزو، د دې بیان نه پس شاه زمان د قتل حکم ورکړو، د دوی سرونه یې پیش کړل، اوس د شاه زمان سره ویره پیدا شوه، چې اوس به بارکزی او محمدزي به د پاینده خان بدل اخلي، نو د ه د محمدز و د سرو سردارانو د نیولو حکم ورکړو، چې پلدبکښې ډېر ځینې وتښتیدل، بادشاه د فتح خان د پاینده خان د مشر زوی، د ګرفتارۍ ډېر کوښښ وکړ، مګر ناکام شو، فتح خان ځینې خلاص شو، نو ډېر سرداران ایران ته لاړل، د شهزاده محمود سره یوځاے شول، چې د څه وخت نه پس، فتح خان هم ورغی، د پاینده خان د مرګ په وجه ډېر- قبائلي سرداران د شاه زمان او د ده چاپلوس وزیر - وفادار خلاف هم شول، هغه ارنګه بادشاه د کشمیر ګورنر عبدالله خان الکوزی هم سزاوار کړ، په دې باندې د ده ورور سید ال خان الکوزی د خپلې قبیلې سره د محمود سره ودرید و

دیخوا فتح خان او دده ورنو دخپل پلار بدل اخیستلو تیاری
شروع کړ، دوی شهزاده محمود ته وویل چې د شاه زمان
خلاف باید مونږه پخپله پورته شو، د غیرو قومو نه امداد
نبمه ندے د خپلو خلکو په کمک مونږه شاه شړلے شو،
هدغه صلاح شهزاده محمود ومنله، د ایران نه افغانستان
ته روان شو، چې رو رو خلك ورسره یو ځاے کېدل، په
فراه کښې دوی د وفادار خان او شاه زمان خلاف یو علان
خور کړ، او افغانانو ته یې وویل: چې مونږ تاسې د دوی
د ظلم نه خلاصوو،،

هدا رنګه د محمود او فتح خان لښکر کندهار قبضه،
کړ، د شاه زمان کورنز یې وشړلو، پدې ورحُو کښې
شاه زمان په پېښور کښې وُ، په هند باندې د حملې تیارے
یې کولو، د خبر داوریدو سره سم یې د هند حمله
بل وخت ته پرېښنوده او د کابل اړخ ته روان شو او
پېښور یې خپل ورور شجاع الملك ته پرېښنوده، کابل
کښې ورته معلومه شوه، چې د درانیانو نیتونه خیرن
دي، نو ده د غلجیانو نه مدد وغوښته، اوس وفادار
خان وار خطا وُ، د جنرال احمد خان او وفادار هم سره
ورانه ده بادشاه دپرش (۳۰) زره فوج سره د محمود
مقابلې له پاره روان شو، او احمد خان یې مخکښې ولیږلو.

اوس دجنرال احمد خان وخت راغلی و، چې دوفادار خان نه بدل واخلي، چې څه وخت فوجونه سره مخامخ شول، نو جنرال احمد خان دفتح خان دې اړخ ته ورغئ. وفادار خان او شاه زمان یې پرځای پرېښودل، وفادار خان دومره وارخطا شو، چې بغیر دمقابلې نه یې شاه کابل ته واپس کړه او ورپسې دفتح خان فوج و. دوئ کابل کښې تینګ نه شول، او دشرق غاړې ته وښتېدل، دشنوارو علاقه کښې یې پناه واخیسته یعنې پټ شول. دوئ د ملا عاشق کره میلمانه شول، ملا په ظاهره دوئ خاطروکړه مګر په پټه یې فتح خان خبر کړ، چې یاران دلته دي او دوئ یې په قلعه کښې نظربند کړل، دوئ ملا عاشق ته ډېر منتونه وکړل، پښتو او پښتونوالی یې وریاد کړل، مګر ملا یوه هم ته منله، دوئ بیا په زور دځانونو خلاصولو کوشش وکړ، مګر دملا عاشق سړو ناکام کړل، په اخر کښې دوئ ځانونه خلاصئ ته وسپارل. دقید په دوران کښې شاه زمان کوږ نور دلته پټه خوندې کړې وه، چې څه وخت دده ورور شاه شجاع بادشاه شو، نو ده بیا را وویسته چې څه وخت د ملا عاشق سړې محمود ته وراغلل،

نو سمدستي يې د فتح خان ورور اسد خان يې، ورپسې ورو لېږلو، دوئ ټول يې د وفادارخان سره کابل ته بوتلل، د کابل د رسېدو نه مخکښې د شاه زمان سترګې ړندې کړای شوې، او کابل کښې بندي کړای شو، د محمود دور حکومت کښې هغه بندي وُ، وفادارخان او د دهٔ اندېوالان يې ټول قتل کړل، همدغه شان د پرنګيانو لوئ دښمن او د هندوستاني مسلمانانو او روهيله پښتنو اميد شاه زمان د همېشه لپاره د اقتدار نه لرې کړای شو، او خپله بنائي او ديد يې له لاسه ورکړه.

د پرنګيانو يو بل خطرناک (Rival) له منځه لاړو، چې دغه ور دوفادارخان چې اصلي نوم يې رحمت الله خان و د سياست نتائج، چې نه صرف دهٔ له خپل ځان نه لاسونه ومينځل، بلکې ټول افغان اولس يې د بدبختۍ کندې ته د ځان سره ورغورځولو، د تعجب خبره خو داده چې دغه اتفاقي کار وُ، او که سازش، چې ايراني شيعه حکومت او هندي شيعه د اوده نوابان ټول د پرنګي ملګري وو، دوئ د پښتنو حکومت ته ډېر زيات نقصان ورواړوه، همدغه شان د همايون سره شيعه ايران کمک وکړ، د سوري خاندان

چې پښتانه وو، هند کښې حکومت ختم کړو، همدغه شان ایراني بادشاه د زمان شاه په وخت د پرنګیانو له پاره دیو دلال ( Agent ) کردار ادا کړ، چې نتیجه یې د پرنګي دلاسه د هند نیول و، او روسیې نه صرف د افغانستان خلاف بلکې ټولو د ایران خلاف زهر ثابت شول.

## شاه محمود، شاه شجاع، سکهـــــان

شاه محمود د وزیر فتح خان په زور بادشاه شو، دے ټولو یو عیاش او شرابي سړے و، دده سره افغاني دولت کښې بادشاهي دې پیل شوه یعنې «PERMANENT DISORDER».

په دې وخت کښې روسان لګیا وو ایران یې په مخه کړے و، دوی یعنې ایرانیانو پرنګیانو ته هغه لوطنامه وریاده کړه چې پرنګیانو او ایرانیانو د شاه زمان په وخت کښې سره کړې وه، چونکه اوس زمان شاه کوز شوے او ړوند شوے و، نو د پرنګیانو ویره پاتې نه وه، اوبل دا چې افغان دولت په خانه جنګۍ کښې ډوب و، نو دوی د ایران بادشاه استازي ته هیڅ اهمیت ورنه کړ، پرنګیانو او سیکهانو د افغانانو بدبختۍ نه فائده واخیسته، سیکهان په پنجاب کښې او پرنګیانو په هند باندې خیټه واچوله.

او ترلدهیاړې پورې علاقه یې د کمپنۍ تر عملدارۍ لاندې
راوسته او روسانو د ایران صوبه جارجیا، آرمینیا
او اذاربائی جان او دعنستان علاقې زارې روس کښې -
شاملې کړې وې، پر انګیانو د ایران هیڅ کمک و نه کړه
د شاه محمود په دربار کښې هم هغه پخوانۍ مرض یعنې
د سردارانو بزکشي روانه وه، او شاه محمود خپلې مزې
کولې، د بالاحصار د ساتونکو دوه زره قزلباشان وو،
چې دوئ شیعه مذهبه وو، دوئ به شراب و څښل
او بازار ته به ووتل کورونه او دوکانونه به یې لوټول، د
د کابل ښاریان چونکه سنیان وو، نو دوئ به ورسره
وړ ن یانې کولو، د دوئ د کور حیا او شرم د قزلباشی
عسکرو له لاسه محفوظ نه ؤ، او بلې غاړې ته غلجیان
را پورته شول، دوئ هم دافغانستان بادشاهي غوښتله
د دوئ خیال ؤ چې میرویس بابا اول پښتون ؤ چې دافغانانو
د ملي حکومت بنسټ یې کیښود، نو دوئ هم حقدار دي،
دوئ درې جنګونه وکړل، مګر وزیر فتح خان د دوئ لښکرو
ته ماتې ورکړه، د شاه محمود په وخت کښې د افغان دولت
یوه صوبه هم داسې نه وه، چې بغاوت پکښې نه وي،
شاه شجاع د اپریدو او شینوارو په کمک د کابل د نیولو قسط
وکړ، مګر قبائیلو لښکر د شاهي فوج نه ماتې وخوړه

شاه شجاع په تيرا کښې غلی شو، در په در خاورې په سر
گرځېده، دولت ور سره خلاص و، خپلې شاهي ملغلرې
يې خرڅولې، او گزاره يې پرې کوله د وی په غرونو
غرونو کښې تر کويټې پورې ولاړل، کندهار ته ورننوتی
شول، چونکه خلك د شاه محمود د قزلباشي فوج نه په
تنګ وو، نو د شاه شجاع له پاره د بادشاهۍ دکتهلو ښه
موقع وه، نو ده کوټه کښې لښکر جوړ کړه په کندهار
يې بريد وکړ، خو د بد قسمتۍ نه يې ماتې وخوړه، په
دې وخت کښې کابل کښې يوه واقعه وشوه چې ديو سني
له لاسه يو شيعه قزلباش عسکر مړ شو، شاه محمود
د قزلباشو د لاس يوتاني و، نو قزلباشانو دغه سني
سړی پهانسي کړ، او دده په جنازه قزلباشو ډزې
وکړې چې ډېر ښاريان په کښې مړه شول، په دې باندې
د قزلباشانو او د کابل د ښاريانو تر منځ جنګ جوړ
شو، هسې هم خلك د شاه محمود د عياشۍ او د قزلباشي
عسکرو د بد معاشۍ نه تنګ وو، او درباري سردارانو کښې
هم ډېر داسې وو، چې د قزلباشانو مخالف وو، نو دوی
خلك ولمسول، په قزلباشانو باندې يې حمله وکړه، نو
کوهستاني او لوګري سني افغانان د کابل ښاريانو د کمکا له
پاره راغلل، په درباري سردارانو کښې مختيار الدوله شاه شجاع

خبر کړ چې ښه موقع ده ، په کابل کښې وزیر فتح خان نهٔ شته ، او د شاه محمود هم څوک خیرخواه پاتې نه دے ، د شیعه او سنیانو جګړه ده ، شاه شجاع د خدائ نه هغه موقع غوښتله ، نو کابل ته لاړو قزلباشو ماتې وخوړه ، شاه محمود په بالاحصار کښې ځان قلعه بند کړ ، په دې وخت کښې وزیر فتح خان په کندهار کښې د کابل د حادثې نه خبر شو . د نوي فوج سره د کابل اړخ ته روان شو ، د مقابلې لپاره مختیارالدوله او شاه شجاع ور مخکښې شول ، اول ځل خو د فتح خان فوج زورور شو ، مګر وروسته د ده د فوج یوه غټه برخه د شاه شجاع غاړې ته لاړه ، په دې بانديې فتح خان ماتې وخوړه او د خپل ځان په غم شو ، شاه شجاع بالاحصار ته ننوتو ، شاه محمود بره چهت کښې پنا احستې وه ، اول سر کښې د شاه شجاع خیال وُ ، چې د شاه زمان چې دده ورور وُ بدل کښې شاه ړوند کړي مګر د مختیارالدوله په سفارش یې معاف کړ ، هغه غنسې د شاه محمود پر ځائے شاه شجاع بادشاه شو ،

د شاه شجاع بادشاهي په داسې وخت کښې پیل شوه چې د دراني خندان روب دب د خانه جنګی په وجه له منځه تللے وُ ، هغه تقدس پاتې نه وُ ، د ملک اقتصا د کمزور وُ ، که څه هم شاه شجاع ښه لېسنه او شریف سړی وُ ، مګر

دوئ پدې بر نه نشول چې د سردارانو په منځ کښې اتفاق، راولي. هر سردار د بل پښې وهلې، او بهرني دښمنان لکه ایران، پرنګیان او سیکهان یې له پاسه وو.

اول سړ کښې شاه شجاع خپلو ملګرو سردارانوته ډېر امتیازات ورکړل، مګر چې پښې یې پرځګله ولګیدې، نو ده د سردارانو اختیارات بیرته په کمولوپیل وکړ، چې دغه کجلړئ شاشجاع د زوال باعث شوه. ده خپل ورور زمان شاه اول خلاص کړ. او ملا عاشق یې ګرفتار کړ، چا چې شاه زمان شاه محمود ته حواله کړی و، قتل یې کړو. شاه شجاع وزیر فتح خان سره ښه سلوک ونه کړ، چې ورو سته ورته دغه دمشکلاتو سبب شو. شاه شجاع دخپلو ورونو او وریرونو، سردارانو دلاسه په اور کښې ولاړو، چې یوځاے به یې بغاوت ختم لو هلته بل ځاے کښې به یې سر راښکاره کړے و، پرنګیانو په قرار زړه هند نیوه،

د شاه زمان د ړندیدو او اقتدار نه دغورځیدو سره د پرنګیانو ډار ورکم شو. دا ځکه چې د احمدشاه بابا اولاد په خپل کور کښې سره په خپلومنځونو کښې د ـ جنجو نو ښکېل او په بل اخته وو، مګر پدې وخت کښې یو بل مرض پیدا شو، چې هغه د نپولین خطره وه

نپولـین بوناپارټ د فـرانسوي انقلاب نه فـایده واخیسته دټول یورپ بادشاهان اوراجګان یې وټکول هرځاے یې خپل خپلوان واکداران کړل، مګر جـزیره برطانیه ورته پاتې وه، اول ده کوښښ وکړ چې د سمندر دلارې هند قبضـه کړي، مګر په مصر کښې امیرالبحر نیلسن پرنګي له خوا یې مـاتې وخوړه، نو اوس هند ته یوه لاره وه چې هغه هم دوچوبې لاره وه، نو نپولـین دروسي زار سره خـبرې شروع کړې، چې په ګډه د روس، ایران او افغانستان دلارې، پرنګیان له هند نه وباسي. اوس دهـند قبضه د مقامي شاهانو په ځـاے د بین الاقوامي ډپلومـاسي درمن وګـرځیدو، نو پرنګیانو ته اوس د-روس او نپولـین په مقابلـه کښې، داتحادیانو ضرورت ؤ، نو دوئ ته افغاني شاه وریادشو، په دې وخت کښې افغاني دولت مشر یعنې واکدار شاه شجاع ؤ، مګر ملک په خانه جنګی کښې ډوب ؤ، چې دې ټولوکښې د پرنګیانو ښه مضبوط لاس ؤ، اوس دوئ سره غم شو، چې افغانان د روسانو او فرانسویانو ملګرتیا ونکړي، نو دوئ زر یو وفـد لسم جنوری-۱۸۰۹-کښې د شاه شجاع په خدمت کښې پیښور ته و لـیږلو چې ددې وفـد - مشرکـري ښاغلي ستیورټ الـفینسټـون کوله نزدې

وخته پورې پرنګیانو هندوستان ته تر لودهیانې پورې نیولې وُ. چونکه اوس ایرانیان د پرنګیانو نه خپه وو، ولې پدې چې دوئ ورسره د روسانو خلاف مدد نه وُکړې د زمان شاه نه پس برطانیه د خپل لوظنامې نه د دوئ دعادت مطابق انکاري شوې وُ، نو ایرانیان ډیر زړه بدي وو، اوس، پرنګیانو ته بیا خطره جوړه شوه، نو دوئ ته بیا ایرانیان وریاد شول مګر داخل ایرانیان د مالکم سفارت رد کړو، هغه ناکام کلکتې ته واپس لاړو او د کمپنۍ ګورنر جنرل ته یې رپورټ ورکړو چې ایرانیان پوره پوره د فرانسویانو تر اثر لاندې دي، نو پکار دي چې د ایرانیانو خلاف کار روایي وشي چې دوئ زور دوښئ ته برابر کړو. لار د مینځو د دې سره اتفاق بشکاره ګړو، د پرنګیانو قسمت ښه وُ، په دې وخت کښې د روس او فرانس د ګډ کار روایه نه ایراني بادشاه خبر شوې وُ، نو دوئ فرانسوي او روسي دوستۍ باندې شکمن شول، او بل داچې پرنګیانو ورته وویل چې که روس او فرانس یوځل ایران ته راګډ شول نو د غز طرف زمونږ لپاره په هند کښې خطره ده، بلکې روس به ایران او فرانس به هند قبضه کړي وُ، نو سمه خبره دغه ده چې دغه دواړه قوتونه د ایرانیانو او پرنګیانو دبینان

دی باید چې موږه ورته اتفاق وکړو، نو ۱۲ مارچ ۱۸۰۰ کښې دجونز او وزیر عظم میرزا شفیع تر منځ یوه لوظنامه وشوه، ددې لوظنامې مطابق به ایراني حکومت هیڅ یو یورپي قوم او حکومت ته د ایران دلارې په هند باندې دحملې کولو لاره نه ورکوي، او که چیرې افغانستان او یا بل حکومت په هند باندې حمله وکړي، نو ایران به دهندوستان د حفاظت له پاره پوځونه لیږي او برطانیه به په ایران باندې دیورپي قومونو دحملې په صورت کښې فوجي مالي او سیاسي کمک کوي، نو دوئ بل کار دغه وکړو چې متکاف یې درنجیت سنګې دربار ته ددوستۍ له پاره راولیږلو، او ایلنفسټون یې شاه شجاع ته او — "کپتان ملکم" یې امیران سندهٔ ته راولیږلو، چې دوئ ورسره د دوئ عهدنامې اوکړې، د ایلنفسټون د سفارت په زمانه کښې دافغاني دولت وزیر عظم اکرم خان دراني و، او دویم وزیر یې ابولحسن خان ایراني وُ، ددوئ په کمک شاه شجاع دپرنګي سره لوظنامه وکړه چې که چیرې بیروني طاقت دافغانستان په لار باندې په هندوستان فوج کشي کوي نوانګریزان به خپل پوځونه دحملې کونکي خلاف افغانستان ته راولي، شاه شجاع پېښور کښې وُ، چې خبر شو، چې فتح خان بیا قندهار

قبضه کړ ، د یا د ساتلو له پاره ، شاه محمود د زندان نه تښتیدلے ؤ ، نو فتح خان سره یو ځائے شو،دوئ بیا په کابل حمله وکړه ، د پېښور نه شاه شجاع وروان شو، دګندومکۍ سره شاه سجاع فوجونو ماتې و خوړه په منډه تیرا ته لاړو ، شاه محمود یو ځل بیا بادشاه شو اخري ځل شاه شجاع په ۱۸۱۱ کښې اکوړیا سره یې ماتې وخوړه ، تر اټک پورې ورغلو ، د کشمیر ګورنر بندي کړو، دداے نه مخکښې د ده بال بچ او شاه زمان لاهور کښې د رنجیت سنګه سره پناه ګزین وو ، په ۱۸۱۳ کښې ده ته هم اجازت ورکړ شو ، چې لاهور کښې د خپل بال بچ سره یو ځائے شي ، شاه زمان لدهیانې کښې د پرنګیانو سره پناه ګزین وو ، دا هغه زمان شاه ؤ چې دے به وخوځیدو،په پرنګیانو باندې تبه راغله ، نن دغه حال وو چې په ړندو سترګو د پرنګیانو پناه ګزین ؤ ، دغه دافغانې سردارانو او بادشاهانو د بې اتفاقۍ او بدبختۍ نتیجه وه، اوشاه شجاع د سنګه پناه ګزین او همسایه شو. داحمدشاه بابا په کورنۍ کښې د بې اتفاقۍ مرض لګیدلے ؤ ، چې دوئ نه صرف خپل ځانونه تباه کړل، بلکې پښتون اولس یې د بدبختیو سره مخامخ کړو . دولت او عزت یې لاړو ، د دوئ د لاسه ناست رنجیت سنګه په پنجاب کښې دومره

زور واخيست چې پنجاب خو پرېږده ان تر پېښور جمرود
ډېره اسماعيل خان، ملتان او بنو، کوهاټ پورې يې د
پښتنو په علاقو د خدائ قهر را نازل او تيټ کړو، کابلي
بزکشۍ کښې حکومت د سدوزو په ځاے حاجي جمال خان
محمدزي کورنۍ ته لاړو دوزير فتح خان کشر ورور -
دوست محمد خان امير شو . دا ځکه وشول چې شاه محمود
دايراني بادشاه په وينه په ۱۸۱۸ کښې دوزير فتح خان سترګې
ړندې کړې ، دا ځکه چې فتح خان يو وطن پالونکی افغان
ؤ ، مګر ۱۸۰۱ کښې دپرنګي لوئ دښمن شاه زمان سترګې
هم ده ړندې کړې وې ، دا ځکه چې شاه زمان د دهٔ
پلار پائنده خان وژلے ؤ ، د حيرانۍ خبره دغه ده
چې دغه دواړه په ملت مئين افغانان وو، او دواړه ړانده
او بې کاره شول ، بلکې وزير فتح خان خو ډېر په دردناکه
طريقه سره شهيد کړاے شو . د شهزاده کامران د
شاه محمود زوئ دده د مرګ حکم ورکړو. دهٔ د
وزير فتح خان چې اوس ړوند ؤ د درباري مخالف -
سردارانو ته دوژلو حکم ورکړو، دغه واقعه د کابل نه
اووه څلويښت (٤٧ ) ميله لرې د سيد اباد په مقام اوشوه
فتح خان يې را ووغوښت په منځ کښې ودراوه، سردارانو
حمله پرې وکړه دوئ وار په وار دژوندي فتح خان

اندامونه پریکړل ویې وژلو خو دوئ مات نه کړو، ویل کیږي چې ده صرف کلمه طیبه او د قرآن کریم ایاتونه یې ویل، ترخوله یې بل بڼغ نه خوت، دغو افغاني لیوانو سردارانو دغه لوئ افغان په دې طریقه ټکړې ټکړې کړو، مګردوئ وزیر فتح خان ته ماتې ورکړه همدغسې په نره یې قصابي کړ، مګر دکمزورۍ احساس یې ورنه کړ. وایي چې بیا چې دغه ټکړې ټکړې افغان فتح خان یې یو بوجې کې راټول کړ، په غزني کښې یې ښخ کړ، وزیر فتح خان ډېر ورونه درلودل، دوئ په لويو لويو منصبونو باندې وو، دغه شان دوئ دخپل ورور بدل واخیست د سدوزو په ځائ د محمدزو باچاهي شوه شاه محمود اوکامران امیر دوست محمد هرات ته پرانږل کړل، فتح خان واحد افغان وُ، چې د ایران، سکهاو پرنګي ځنې خطره کېده، دغه چې لرې شو، افغانستان ګډوډ شو،

اوس افغان خاوره، د سیکهانو او ایرانیانو له پاره خوشې پاتې شوه، افغانان په کورکښې سره نورهم ارم شول، اوس جنګ احمدشاه بابا دلمسو په ځائ د دوو قبیلې ترمینځ شو یعنې سدوزي او محمدزي.

# سِکهان او احمد شاه شهید بریلوی

رنجیت سنگهـ اول سـر کښې د شاه زمان له خوا د پنجاب والي یعنې ګورنر مقرر کړای شـو، سیکهان د مغلو د وخت نه جنګونه کول . د احمد شاه په زمانه کښې هم لګیاؤ مګر دوئ منظم حکومت نه درلـوده، خو داړه ماري یې به یې کولـه ، مګر ۱۷۹۷ کښې د رنجیت سنګهـ والي توب د افغانانو له پاره د بدبختۍ سبب وګرځیدؤ ، دغه ډېر چالاک او عیار پنجابئ وُ ، په ظاهره به یې د افغانیا شاهانو چاپلوسي کولـه ، مګر په پټه لګیاؤ، خپل طاقت یې جوړولـو ، او لـه پرنګیانو سـره یې خپلې اړیکې نورې هم ټینګې کړې، د افغانانو کورني جنګ ته په انتظار وُ ، ده اول پنجاب او کشمیر کښې ځان مضبوط کړو ، د وزیر فتح خان ۱۸۱۸ کښې د وژلـو نه پس ده او ایراني باچا فتح علي شاه د پرنګیانو په لمسون افغاني خاورې باندې زور راوړو او رنجیت سنګهـ نه پرنګیانو د فرنټ لیډر کار واخیستو ، او س یې سکهان او افغانان سـره اړم کـړل ، او پرنګي ور ته د خیر په غونډۍ ناست وُ، رنجیت سنګهـ

اول په ملتان ورغئ جون ۱۸۱۸ کښې مظفر خان دملتان
والي وُ، مظفر خان سدوزے د سیکهانو سره مقابله
وکړه، میدان جنګ کښې شهید شو، او س رنجیت سنګهو خ
د پېښور او خیرآباد خواته راواړاوه، ده اول د اټک
قلعه و نیوله، او بیا په اباسین راپورې وتو، خیرآباد
د خوشحال باباکلئ یې قبضه کړو، او ورپسې یې پېښور
قبضه کړو، مګر بیا روستو د وزیر فتح خان ورور یار محمد
خان د رنجیت سنګه مقرر کړے ګورنر جهانداد خان پېښور
نه وشړلو، پېښور یې بیرته قبضه کړو، او رنجیت سنګه
د اټک نه بېره جات افغاني صوبې ته مخ واړاوه په ۱۸۱۸ کښې
ډېره غازي خان او ۱۸۲۱ کښې ډېره اسماعیل خان قبضه کړ، -
۱۸۲۲ کښې عظیم خان دکابل نه راکوز شو، چې رنجیت سنګه د
اټک نه وشړي، مګر دلته یار محمد خان د رنجیت سنګه سره پټ
ساز باز وکړل، رنجیت سنګه بیرته لاړو، خو پائنده خان
د زامنو بې اتفاقي ورمعلومه شوه، چې دوئ دړېرو
مېندو اولاد وُ، یو بل ته غله وو، یار محمد، سلطان محمد
او پیر محمد د پائنده خان زامن وو، چې وروسته پېښوري
سردارانو مشهور شول.

د افغانستان آخري بادشاه محمد ظاهر شاه سلطان محمد
د اولاد نه وو، دوئ ډېر مشکوک رول لوبولے دے دوئ

دسکهانو او ورپسې د پرنګیانو دلالي کړې ده ،چې ۱۹۲۹ کښې
وطن دوست باچا غازي امان الله خان د پرنګي دلاسه جوړ
بغاوت په وجه لاړو، نو د پرنګیانو نادرخان د پېښوري
سردارانو اولاد بیرته په کابل افغانستان کښې په قدرت راو-
وستو، دا ځکه چې دوئ د پټ نیکه د وختو نه ورپسې
ایجنټان وو، د دې کورنۍ حکومت-۲۸- اپریل ۱۹۷۸ کښې
پائې ته ورسیدو، د نوښار جګړه ۱٤- مارچ ۱۸۲۳ کښې
عظیم خان چې خبر شو ،چې یار محمد رنجیت سنګهه ته
اسونه رسولي دي نو ورڅخه خپه شو، یار محمد خان
د عظیم خان له ډاره خیبر ته وتښتیده، نو ځکه عظیم خان
په ۱۸۲۳ کښې پېښور ته بیا راکوز شو، هلته رنجیت سنګهه
۱۳ مارچ ۱۸۲۳ کښې د اباسین نه را پورې وت، خټک یوسفزئ
او د سیمې نور ټول افغان اولسي لښکر د افغانستان دخاورې
د ژغورنې له پاره په نوښار، "نوشهره" کښې دلنډۍ (دریائې
کابل" په کینډه غاړه غونډیان ونیول، عظیم خان او افغان
حکومتي لښکر د کابل د سیند په ښي اړخ وو، د افغان
یعنې پښتنو د اولسي لښکر او سکهه خالصه فوج لاس
په لاس جنګ شروع شو، پښتانه داسې وجنګیدل چې
آکالي مشران یې مړه او ژوبل کړل، د رنجیت سنګهه
بار به ګورکا لښکر ورته ټینګ نه شو، د سیکهه دلښکر کمندران

زیات تر فرانسویان، اطالیان، او پرتگیان وو، دوی په
دغه ورځ د پښتنو داولسي لښکرنه سخته ماتې وخوړله.
چون دغه یو قبائیلي لښکر وُ، او منظم فوج نه وُ، افغاني
منظم فوج چې عظیم خان او دده د رونو په لاس کښې وُ، د
پښتنو او سکهانو د جنګ تماشه یې کوله. چې د دې بزدلۍ
نه خالصه فوج فایده پوره کړه، قبائیلي لښکرسره خوراک
څښاک ختم شوی، ایمونیشن هم نه و، دا ځکه چې غازیانو
خو د درې څلورو ورځو له پاره دځانونو سره (خوپیرمځ)
یعني خوراک جوار پوړی کاکوړی او سکوړی راوړی وُ، او
په . او ایمونشن هم ورسره نه وُ. یورپیانو آوازه
ګډه کړې وه، چې د عظیم خان خزانه د ده کشر ورور
دوست محمد خان وتښتوله. وایې چې پدې باندې عظیم خان
وارخطا شو، شپه په شپه کابل ته وتښتیدو، پښتانه یې
سکهانو ته ګوښي پریښودل، پښتانه څو ورځې وجنګیدل، مګر
دغازیانو سره خوراک او ایمونشن خلاص شو، بل اړخ ته
منظم دیورپي افسرانو ترکمانډ لاندې خالصه فوج وُ.
غازیانو سره ونه ورکړل، مګر خالصه فوج یې ایسار
نکړے شو. هدغه شان نوښار او پېښور د افغاني سردارانو
دغدارۍ په وجه سکهانو قبضه کړل. سکهانو د پښتنو نه
دیدل اخیستو باندې لاس پورې کړ، ټوله علاقه یې تالا واکړه

واړه زاړه يې مړه کړل، کورونه، فصلونه اوباغونه يې وسوځول، د پېښور په ښاريانو يې د خدای قهر را نازل کړ. خلك به يې د مهابت خان جماعت د منارونه ښکته راغورځول، رنجيت سنګه خپل يار يعنې رنجنځ يار محمد خان قلانګی والي «ګورنر» د پېښور مقرر کړو، او د سکهانو ټوله هغه علاقه قبضه کړه چې د خيبر اواباسين ترمنځ وه، نن سبا د صوبه سرحد په نوم ده. يعنې د پېره بنون، کوهاټ، پېښور، هزاره، مردان، دلته د سکهانو څه دايمي حکومت نه وُ، ماليه او نور حکومتي کارونه به د فوج کشۍ په زور کيدل، سړای وروته مستقيله جګړه و ټيلای شي، چې پښتنو د سکهانو سره کوله، د مروتو علاقه رياست منکره سره وه، نو رنجيت سنګه د نواب ټول رياست خپله عملاً ری کښې شامل کړو. نو د لکی مروت خپل پخپله د سکهه شاهي لاندې راغلل. رنجيت سنګه پخپله لکی ته قلنګ پسې راغلی وُ، اول يې يولك روپيه په مروتو ولګولې، بيا وروسته د نواب صاحب (۴۰۰۰) زره روپيه قلنګ منظور کړو، وايي چې د ېر قلنګ وصول شو، نو رنجيت سنګه وويل: «لکی نهيں سونے دی چکی» (کتاب بنون، وزيرستان تاريخ ليکونکی ـ ګل ايوب خان سيفي). بنوچو او وزيرو ـ

دسکهانو اطاعت نه منلو، دوئ ورسره په جنګ اخته
شول. بروستو مروتو هم مالیه نه ورکوله، دلته
دسیکهانو حاکم فتح خان توانه و. دوئ یوه کچه قلعه
په لکي کښې جوړه کړه، دلته مروتو کښې خپله ګوندونه
وو، چې یوسپین ګوند و او بل تور ګوند. سیکهانو به دوئ
دیو بل خلاف استعمالول، دګوندیانو تر منځ نه پخلا ـ
کېدونکي دښمنې وه، کله ناکله به مروتو په سیکهانو
ناساپي حمله وکړه ډېر نقصان به یې ورور ساوه،
دسیکهانو حکومت برای نام ؤ، دبنوچیو دغه حال ؤچې
مالیه به یې نه ورکوله، هر وخت به جنګ ؤ، کله سیکهان
او کله بنوچي وزیر کامیاب، په بنوں باندې کنورکهرک سنګه
او سردار فتح سنګه حمله کړې وه، د بنوچیو، وزیرو،
مروتو قیادت بناغلي غازي دلاسه خان کولو. دسیکهانو
نوج کښې توپچیان اکثره فرانسویان وو، یوبل ... چې
تارا چند نومیده د دلاسه خان په کلي حمله وکړه،
پښتنو سیکهان په ښاه و تمبول، توپچیان یې ځینې مړه
کړل، او تاراچند ناکام لاهور ته لاړو. غازي دلاسه خان
سره بنوچي او مروت دواړه، وزیر او محسود وو،
په یوه بله حمله کښې چې دسیکهانوں قیادت سردار
سوجت سنګه کولو دلسو زرو خالصه عسکرو سره په

غازي دلاسه خان په کلي حمله وکړه ، بنوچي، مروت وزير، او محسود تر سيکهانو بدل شول، سخته ماتې يې ورکړه، خوافسوس چې دغه ټولې لښکرې چيرې وې شاته يې منظم بادشاه اوپاچا نه وو، کنور او نهال سنګه او راجه سوچيت سنګه په بنوچو او مروتو باندې دېر ظلمونه کړي دي. شمالي پښتونخوا کښې يوسفزيو سيکهانو ته سخت ګوزارونه ورکړيدي ، دجمرو دجګړه کښې دا پريداو دلاسه سکه جنرال مړکړے شو. پيښور او مردان پښتانه د سيکهانو سره هروخت لاس پرګريوان وو، چې دې وخت کښې احمدشاه شهيد بريلوي راخرګند شو .

# سيد احمدشاه شهيد بريلوي

باچا خان په خپل کتاب زما ژوند اوجهدوجهد، کښې ليکي: « او يادغه وخت وُ چې د درانو عياشي بې-تدبيري، په خلکو د زور زياتي ، کورني اختلافونو او جنګونو په سبب پښتانه دومره پريوتل چې خپل کور کښې د سيکهانو د مقابلې نه وو. هغه د پلار نيکه کټلي خو پر ښږده ، خپله خاوره ترې سيکهانو لاندې کړه ، او په-

دوئ کښې د ومره ځوک نه وو چې پخپله خاوره او ناموس یې ننګ او غیرت کړی وے ، د سیکهانو د زور او ظلم په مقابله کښې یې سر اوچت کړے وے او د پښتنو غیرت او عظمت یې د دې ظلم نه بچ کړے وے ، د سیکهانو دېر ظالمانه حکومت ؤ ، زما د مور دا ړخه نیکه محمد دین خان په مونږ ته دا خبره کوله ، چې یوه ورځ زۀ د شو لګړی نه را تلم او په سند راپورې وتم ، چې په دې کښې یو سکهـ راغی ، ما ته یې اشارت وکړو چې راوګرځه او ما په شاه پورې باسه ، محمد دین نیکه ورته وویل : چې زۀ نا باري یم ، خو سکهـ مجبور کړے دے ، او چې سکهـ یې په شاه راسور کړے دے ، او د اوبو منځ ته رسیدلی نو هغوی نه یې کړي دي ، او سکهـ یې او بو په منځ کښې غورځولے دے ، او دے ترې تللی دے .»

یو بل ځاے لیکی : « د هندوستان د هغه سر نه سید احمد بریلوي او اسماعیل شهید په دوئ یعنې پښتنو باندې ننګ او غیرت کوي او د سیکهانو د مقابلې له پاره د پښتنو خاورې ته راځي ، د هغه وخت افغانستان له طرفه د دوئ سره مرسته و نه شوه ، بلکې دیار محمد له خوا ورسره جګړه وشوه لکه څنګه چې د پښتو د دې زړې چاربیتې نه څرګندېږي :

روان شو یار محمد سید او باسی د پنجتا ر ه
سید له بریه ورکړې الهـي پروردګا ر ه

هداړنګه یوبل ځائے باچا خان لیکي : « قصه داسې وه چې د تهکال ارباب بهرام چې د سید صاحب مرید وُ هغه به کال په کال د روژې په میاشت کښې بریلی ته تلو ، د قرآنکریم ختم او تراویح به یې هلته د سید صاحب سره کولې، پخوا د حمل او نقل ذریعې هم نه وې په آسونو روان وو چې ګوجرانوالې له راغلے دے . نو تږي شوي دي ، په لاره کښې کوهی وُ ، بنځې ورله اوبو له راغلې وې ، دے چې کوهي ته ورنږدې شوے دے ، نو د لاس په اشارې یې د بنځو نه اوبه وغوښتې . چې دې بنځو منګي ډکړل نو ربې هتولسې لاړې او دوه بنځې پاتې شوې نو دهٔ له یې اوبه یوړلې ، چې دهٔ له یې اوبه ورکړې نو په ژړا شوې او ورته وېې ویل : چې مونږ پښتنې یو او سیکهانو په زور راوستې یو ، او دوه دوه بچي موهم پیدا شوي دي . ارباب چې بریلي ته ورسیدو نو هغه ډېر زهیر وُ ، سید صاحب ترینه پوښتنه وکړه ، چې دا ته ولې زهیر یې ؟ هغه ورته د ګوجرانوالې دا هتوله واقعه بیان کړه نو سید صاحب د جمعې په ورځ په ممبر وخوت دا قصه یې بیان کړه او د جهاد اعلان یې وکړ .»

چې د غه نمونه کارونه سیکهانو د پښتنو سره کړیدي په دې کښې زمونږ خپل قصور دے ، چې احمدشاه بابا نه

څمونږ خپل قصور دے، چې د احمد شاه بابا د مرګ نه
پس مونږه په کور دننه سره په جنګ شو، نتیجه یې باچاخان
بیان کړه، هر هغه قوم قبیله یا ټبر چې بې اتفاقه او
خود غرضه شي نو د پردو خلکو خوراک او خنده شي. هغه
حال زمونږه جوړ شوے وُ، چې افغاني شاهانو او سردارانو
د یو بل سترګو ړندول یو شغل جوړ شوے وُ د ورچاپې
دښمن نه غافله وو، سید صاحب په ربښتیا هم ډیر د غیرت
کار کړے دے، دے یو عالم او مجاهد انسان وُ دوئ د
ریاست ټونک نواب امیر خان په افغان فوج کښې وُ، د پنډارې
تحریک دے ملګرے و، د دې تحریک د پرنګیانو خلاف ډیرې
هلې ځلې کړې دي، خو د پرنګیانو پالیسي کامیابه شوه، نواب
روغه وکړه دوئ یې بیرته د ټونک نواب کړو پدې باندې
سید صاحب ځنې خپه شوه په دې وخت کښې سیدصاحب
به د سیکهانو د ظلمونو خبرې اوریدلې چې دوئ به د
مسلمانانو سره کولو.

نو څه دغه خبرې شوې، څه سید صاحب پخپله
مجاهد و د اسلام خدمت یې تش ژباني نه کولو په عمله عالم
او اسماعیل شهید غوندې لوئ عالم یې ملګرے وُ دوئ اول
د حج له پاره مکې مکرمې او مدینې منورې ته لاړل، د سفر په دوران
کښې نو را هم د مسلمانانو زوال ورمعلوم شو، دریم کلونه
کاله نه پس بیرته هند ته راغلو، او س ذهني دې ته چمتو وو

چې باید د خالص اسلام له پاره کار وکړي او د سیکهانو
خلاف جهاد پکار دے، نو د ده سترګې په افغانستان
پريوتې. دوی د سند د لارې قندهار ته لاړل په دې وخت
کښې افغانستان ننګه د هاغه وُ، کوم نې جنګونو تباه او برباد
کړے وُ، د پائنده خان زښت ډیر زامن وو. چې دوی
د پلو پلو ماندیو څخه وُو، نو دوی افغانستان سره برخې برخې
کړے وُ په کندهار کښې پردل خان وُ، چې دوی د سید صاحب
د ملګي نه انکاری شو، داځکه چې دوی ته ترسیکهانه خپل
رونه خطرناک وُ دوی خود غرضه شوي وو، نو سید صاحب
د پېښور او خ ونیو او یوسفزیو کښې ډیره شو، په دې
شپو ورځو کښې یار محمد خان او د ده ورور ته د سیکه
باجګزار وو یار محمد خان به د سیکهانو له پاره د پښتنو
سره جنګونه کول، یوسفزي ډیر په نره د سیکهانو خلاف
جنګېدل، مګر د دوی لیډر نه وُ اوس هغه هم پیدا شو،
سید صاحب د یار محمد خان سره هم رابطه جوړه کړه
نو یار محمد خان هم راضي شو. دوی د اکوړي نوښار
سره په سکه شاهي فوج باندې حمله وکړه، سیکهان
یې ګډوډ کړل، مګر غدار یار محمد خان د خپل عادت
نه مجبور وُ بیا یې دهوکه وکړه د میدان نه وتښتید و نو سید
صاحب په دې ځائے وویل: چې دغه یار محمد نه دے بلکې

يار سنګهه دے ، يار محمدخان د سيکهانو په پره وو ديد و ، مګر دغه دله او ذليل انسان په هيڅ نه شرميدو . سيدصاحب پيښور قبضه کړ ، او د پښتنو علاقه يې د سيکهانو نه آزا د ه کړه ، يار محمد خان په يو جنګ کښې مړ شو ، تر څو پورې عسکري او فوځي کاروايي وه ، پښتنو او خاصکر يوسفزيو د سيد صاحب په ژغ لبيک او وئيلو ، مګر چې څه وخت سيد صاحب او د ده ملګرو اصلاحات شروع کړل ، دلته مشکلات پيدا شول دا ځکه چې سيد صاحب بنيادي انقلابي او مجاهد انسان وُ ، مګر د پښتنو د ټولنې د جوړښت نه پوره خبر نه وُ ، پښتانه ډېر ښه مسلمانان دي ، تر څو پورې د دوئ پښتو او اقتصادي ګټې په خطره کښې نه وي ، دوئ اقتصادي اسلام نه مني ، سيدصاحب د دوئ په اقتصاد کښې ګوتې وهلې ، او دے مجاهدانسان پښتانه نوروپيژ ندلي او خاصکر د ده واړه واړه مولويانو خو ډېر بې وقوف وو ، دوئ داسې اصلاحاتو ته لاس واچوه چې پښتانه په ذهني طور ورته تيار نه وو ، سيد صاحب په خپله عسکري کاميابي ، سياسي کاميابۍ او وړپسې اصلاحاتي پروګرامونه کښې فرق ونه کړا ے شو دهٔ باندې پښتانه راجمع شول ، داځکه چې دوئ سياسي ليډر نه درلوده ، دوئ په عسکري توګه کاميابي وجنګيدل داځکه چې دوئ پيدايشي جنګيالان وو ، نو دغه

دواړه کارو ته دوئ په ذهني طور تيار وو، نو دوئ پرکلکه دسيد صاحب ملګر تيا وکړه، مګر دهغه اصلاحاتو ته پرذهني توګه تيار نه وو، نو ځکه غلط فهمياني جوړې شوې، او بل داچې پېښنورې سرداران او سيکهان هم په ارام نه وو ناست دوئ هم دسيد صاحب دملګرو خلاف پروپيګنډې کولې، او پر خود غرض خلک وو، دوئ اصلاحات نه غوښتل، لکه څرنګې چې مغلو پيربابا او اخون درويزه يوسفزي د پير روښان دتحريک په خلاف تقسيم کړي وو، هدغه رنګې کار دسيد صاحب خلاف هم وشو، چې نتيجه يې ددوئ شهادت وو، او د پښتنو ذلالت، مګر سيد صاحب مړ نه دے، دده خدمتونه او جهادونه به دهميشه له پاره ژوندي وي، اخيردوئ بالاکوټ هزاره کښې په مئ ۱۸۳۱ کښې دسيکهانو دلاسه دشهادت لوړ مقام ته ورسيدل.

د-۱۸۳۱-نه تر اول افغاني پرنګي جنګ پورې ۴۲-۱۸۳۸ دغه حالات خو مو په تفصيل سره بيان کړل، چې دکومې پروجه اقتدار داحمدشاه بابا دکورنۍ نه دحاجي جمال خان کورنۍ ته لاړو، دحاجي جمال خان زوئ پاينده خان د زښت ډېر زامن وو، نو دوئ افغانستان سره خپلوکښې تقسيم کړو.

الف۱- وزيرفتح خان ۲- محمدعظم خان، ۳- تيمورخان دغه دريواړه ديوې موره وو-

ب: ٤ پوردل خان ٥ شیر دل خان ٦- کندل خان،
٧- رحمدل خان ٨- میر دل خان دا پنځه وا ړه دبلې مورو ن
ج : ٩- دوست محمد خان ١٠- امیر محمد خان ١١- جمال خان
دبلې مور وو.
د :- ١٢- سلطان محمد خان (١٣) یار محمد خان ١٤ پیر محمد خان
١٥ سید محمد خان دبلې مور نه وو.
ه :- ١٦- نواب اسد خان ١٧- نواب صمد خان - ١٨
نواب جبار خان د بلې مور وو.
و :- ١٩- جمعه خان د بلې مور و.
دغه لښکر پاینده خان محمدزي شاته پریښے وو.
دشاه محمود اوشهزاده کامران هرات ته دتښتیدو نه
پس داسې څوک نه وو چې افغانستان یې سمبال کړے
وا یی، فتح خان ړو نداو بیا وژلے شوے و. نولس وروڼو
په مختلفو صوبو قبضه وکړه، لکه محمد عظم خان کابل
کښې دوست محمد خان په غزني وو، پر دل خان پر کندهار
و، جبار خان سړ کشمیر و، او یار محمد خان د ورو نوسره
په پیښور و. دغه نور هم په صوبو کښې افسران وو،
خو مسئله دغه وه چې دوی یوبل ته غلے و، د دوی
په مینځ کښې کار اشتراک نه و.. هم دې نتیجه دغه شوه
چې سیکهانو اول دوی پنجاب اوکشمیر او ملتان نه ویستل

او ورپسې د پېښنو نه . په حقیقت کښې دغه ټوله لویه

پرنګیانو جوړه کړې وه ، سیکهانو یې صرف استعمالول ،

شاه شجاع او ړوند زمان شاه د پرنګي سره پرار یان وو، دخپل

پلار نیکه تخت ګټلو له پاره یې هرڅه ته تیار ؤ . افغانستان

کښې پاینده خان اولاد په اخلاقي توګه د بادشاهی لایق

نه وو ( د احمدشاه بابا لمسی شاه شجاع ) نو افغانانو حقدار په سترګه

کتل خو د احمدشاه بابا لمسی شاه شجاع یوه داسې جواري وکړه

چې د دوئ د کورنۍ حکومت د همیشه له پاره لاړو او

محمد زیانو هغه اخلاقی شرط هم پوره کړه ، دوئ د شاهي

کورنۍ په طور ومنل شول هغه داسې ، چې اوس حالات

داسې جوړ شوي وو ، چې د هند ، ایران ، افغانستان او مرکزی

اسیا کښې دوه لوبغاړي پاتې شوي وو ، چې هغه یو برطانیه

او بل زاري روس ؤ ، چې دواړه عیسویان وو ، اول سر کښې

د زمان شاه په زمانه کښې او بیا د نپولین د خطرې له

وجې پرنګیانو د ایراني بادشاه سره سنه تعلقات جوړ کړل . ،

ایرانیان یې د خپل مقصد له پاره د افغانانو خلاف لمسول

چې د افغانانو کور وران شو ، او د نپولین خطره ورکه شوه

نو پرنګیانو د ایران سره نښه کاغذي رابطه ساتله ، پدې وخت

کښې روس لګیا وو د ایران ځمکې یې نیولې ، د ایران بادشاه

خو خوځله پرنګیانو ته هغه لوظنامه ور یادې کړې ، مګر

دوی به تش کاغذي کاروايي کوله دروس خلاف یې ورسره اوس امداد نه کولو، روس چې څېنې ورته علاقې ونیولې، او ایران ورته معلوم شو چې هیڅ نه شي کولی، نو هغه کار چې دجنګ په ذریعه سرته رسېدو، هغه یې په خوارزه شروع کړو ایراني دربار کښې یې خپل اثر درسوخ زیات کړل. ایراني بادشاه هم د پرنګیانو دې لوظنامې نه تنګ شوی وُ، خیر یې په دې کښې ولیده چې دروسانو سره د دښمنۍ په ځای دوستي ښه ده، نو دروس شرطونه یې تول ومنل، او پوله یې ورسره سیخه کړه اوس ایران د پرنګي پرځای دروس ایجنیټ شو، روسانو خپل خوب د ایرانیانو په ذریعه سرته رسولو، نو ایران ته یې جدیده اسلحه ورکړه، او د فوج د تربیت له پاره یې فوجي استاذان ورکړل چې دوئ به فوجي تربیت ورکولو او جاسوسي به یې هم کوله، روس دغه دوه مخې سیاست روان کړو، ایرانیان اول د پرنګي په لمسه دافغانانو دښمنان وو، او اوس دروس په لمسه. په دې لوبه باندې پرنګیان وارخطا شول، نو دوئ دزاري روس په ایران کښې ددې نموني سیاست خلاف روسي حکومت ته احتجاج وکړو، مګر هغوئ به په ډیپلوماتي ژبه پاسته پاسته ځوابونه

ورکـول، اوس پرنګیانو ته دکابل په تخت دیو داسې سړي ضـرورت ؤ چې هغه سل په سلوکښې ددوئ سړی وي، نو دوئ پټ په پټه ۱۸۳٤ خواوشا کښې شاه شجاع تیار کړو، چې قندهار باندې قبضه وکـړي، په دې وخت کښې پردل خان دوئ په قندهار کښې په قدرت وو، نو شاه شجاع د یورپي افسرانو په کمک د قندهار محاصره وکـړه، که څـه هم دپاینده خان د زامنو په منځـو کښې پر ناجوړي وې، مګر بیا هم په دوئ پټولو کښې د دوست محمد خان چې اوس دکابل، غزني، ننګرهار حاکـم ؤ هوښیار او زیرک سـړے ؤ، نو د قندهاري ورو نو د امداد له پاره لاړو، چې د ده زوئ اکبرخان هم ورسره ؤ، دوست محمدخان د خپل زوئ اکبرخان چې وروسته په وزیراکبرخان مشهور شو، د شاه شجاع فـوج ته یې ماتې ورکـړه، شاه شجاع یوځـل بیا د خدائے په قهر ککړ وړ یا تریلسه شو یا نه ته یې ځان ورساوه، او پرنګیانو خانګ ته کښېناستو اوس پرنګیانو ته دوه خطرې پېښې شوې، یوه دروسي بله دغه چې د دوست محمد خان زور ورځ په ورځ په زیاتېدو خپل وطن کښې یې امن راوستو، او د پښتنو بیا امید پیدا شو، چې دغه سړی د تیا دت لایق دے، هم دغه

خطره د پرنګیانو او د دوئ دلالان سیکهانو سره هم پیدا شوه، د پرنګیانو سره دا ډار و چې افغانستان بیر ته د ده تر مشرکړې لاندې سره یو نه کړي، مګر په حقیقت کښې د خپلو وروڼو په منځ کښې سخته ناچاقي وه، د دوست محمد دقندهار دکامیابۍ نه پس خلکو مجبور کړ چې تاسو ځان ته یو لقب اختیار کړئ. هلته به افغانان دربانده ټولیږي، نو دوئ دبادشاه په ځائے دامیرلقب خوښ کړ، نو دے امیر شو. نود پرنګیانو په زړونو کښې یو شه وو، او په ظاهره یې یو پرنګی ورولیږلو، چې د تجارت متعلق خبرې ورسره وکړې، پرنګی استاذی بناغلی سرالیکذنډر برنس او ورسره موهن لعل یوکشمیری پنډت هم وو، دوی د هند ایسټ انډیا کمپنۍ ګورنر جنرل بناغلی لارډ اکنالینډ یولیک دامیر دوست محمد خان په نوم یوړو چې زه یې دلته لیکم:

ترجمه: منجانب ارل اف اکنالنډ په خدمت کښې دامیر دوست محمد خان فورټ ولیم ۱۵ مئ ۱۸۳۷.

کوم خط چې تاته په ۲۲ اګست ۱۸۳۶ لیکلی وو په هغې کښې ما دا اراده ظاهره کړې وه، چې زه به یو افسر ددې غرض دپاره درلیږم چې تاسره د تجارت د

ترقي او دافغانستان او دهندوستان ترمنځه د سوداګرانو دپاره دنګ راڼګ سهولیتونو پیداکولودپاره خبرې اترې وکړي.

ستا روښن ضمیر نه داخبره پټه نه ده چې تجارت د هرقسم قومي دولت بنسټ یعنې بنیاد دے اوهم د تجارت په ذریعه یو قوم خپل ټول فالتو پیداوار د بل قوم پیداوار سره بدلولائ شي، دولت جمع کولے شي او د مهذب ژوندون دارام اودنعمتونو نه فایده وچتولےشي، په ګوندي قومونوکښې د دې نعمتونو او ارمونو خوارول د حکومت دبرطانیه عامه مدعا ده، دهغوئ دا هرګز کوشش نه دےچې تش هغوئ دے ددې نه مستفید شي بلکې دهغوئ دلی خواهش دادی چې داسیا په ټولو ملکونوکښی دے امن اودولت قایم شي.

په همدې غرض حکومت برطانیه هغه ټول حکومتونه چې د دریاب پر دواړو غاړو پراته دي په دې خبره امده کړه چېددریایې سند دې د جهاز رانړه له پاره آزاد شي، اوددې حکومت ټول کوششونه همیش ددې غرض د حاصلولو له پاره دی، زه اوس سرالیګزاندر برنس دې غرض له پاره درلیږم چې داچیتې درله

درکړي او تا سره د هندوستان او افغانستان په مینځ کښې تجارتي امد ورفت له پاره د سهولیتونو پیداکولو بهترین تجویزونو باندې خبرې اترې وکړي، زما قوي امید دے، چې ته به هغه ته په خپل دربارکښې په دوستانه طریقه خوش امدید ووایې او تاسره به د هغه گفت، شنید هغه ټولې فایدې چې کوم زما په خیال کښې دي، حاصلې کړي، په اخیرکښې وغیره وغیره

دسخط اکسالینسلو (قاضي عطاالله دپښتنو تاریخ جلداول).

ددې میشن درسیدو نه څو ورځې وروسته امیر دوست محمد خان دوئ خپل حضور ته ومنل، موهن لعل ددوئ خبرې او سوال ځواب متعلق لیکي، چې امیرصاحب دبرنس نه دپېښور دسیکهانو نه ده ته دورکولو مطالبه وکړه، پرنګي سفیر ورته وویل: چې دپېښور علاقه داستا په عملدارۍ کښې نه وه بلکې د ستاسورونو سلطان محمدخان او پیر محمد خان سره وه، نن دوئ ددې علاقې درنجیت سنګه باجګزار دے، او دوئ ته یې جاګیر ورکړے دي، اوبل رنجیت سنګه زموږ وفادار اتحادي دے، طاقت او ډېر مال لري، چونکه دپېښور جمرود په حمله کښې د هغه سپه سالار هري سنګه قتل شوے دے، موږ به هغه دستاسو خلاف مزید جارحانه کاروایي

منع کړو مونږ به را جبه ته دارایی ورکړو چې پېښور سلطان محمد خان تر پرین دي.

دوست محمد خان ورته ځواب کښې وویل: چې زما خو خیال وچې که چیرې زما په سراوس دململ پګړۍ ده، نو د انګریزانو ددوستۍ په وجه به هغه په شال بدله شي. مګر داشان معلومیږي چې انګریزان زما په سر باندې هم هغه دململ زړه پګړۍ ساتل غواړي او تش دومره اقرار راسره کول غواړي، چې تانه به دململ پګړۍ څوک نه کوزوي، زما په نزد دقسم اقرار هیڅ قدر نه لري، ځکه زما دایقین دے چې دململ داپګړۍ له مانه هیڅوک هم نه شي اخیستی.

بیا یې ورته وویل: چې که چیرې پېښور سلطان محمد خان ته ورکړے شي نو دا د انګریزانو هیڅ نېکړه نه ده له ماسره، بلکې زما ذ کابل حکومت ته په پد ې نقصان ورسي، اوکرچې سلطان محمد خان زماورور دے، مګر دهغه لښ او وړوکے لښکر زما له پاره دسیکهانو دیو لوے لښکر نه زیات خطرناک دے، سیکهان به زما ورور له روپۍ ورکړي، او دمسلمانانو په جامه کښې به د سیکهانو اثر او حکومت عین زما تر صدد مقام پورې را ولي، هغه داهم ورته وویل: چې سیکهانو

په پېښور په داسې وخت کښې قبضه وکړه چې زه دشاشجاع سره په کندهار کښې په جنګ کښې ښتی وم . حالانکه چې د سیکهانو په پېښور کښې نه چیرې څه قسم حقوق وُو، او نه اوس شته ، موهن لعل لیکي: اخر د ډېر بحث او مباحثې نه پس برنس د دوست محمد خان د دعوې په صداقت باندې قایل شو، او ګورنر جنرال ته یې خبر ورکړ .

په دې باندې دکندهار سردارانو شک من شول د-دوئ خیال پیداشو چې دوست محمد خان دانګریزانو سره دوستانه تعلقات جوړوي . بیا به زمونږ حجامت کوي، نو دوئ فوراً دایران او تهران کښې روسي سفیر سره رابطه جوړه کړه ، دوئ دزار روس او ایران سره د اتحادجوړولو له پاره خطونه ولیږل ، روس خو هدې ته ناست وُ ،نودوئ نو دوئ ژر دکندهارخان سره دیوبل سره دامداد لوظنامه وکړه . او روس خپل یوافسر کیپټن ویکوویچ کندهار ته-راولیږلو، روسی چې کندهارته راغلو ، نو ورمعلومه شوه چې دغه یوه کوچنۍ صوبه ده ، واک ټول کابل کښې دے ، نو ده د زار روس یولیك د امیر دوست محمدخان په نوم کابل ته راوړو ، چې په ظاهره تجارتي خبرې وې، مګر دپرنګیانو په خیر روسانو هم سیاسي ارزګانې درلودې، دوئ دواړو دخپلو خپلو قومونو د سیاسي -

اثراتو زیاتولو کوشش کولو، برنس په کابل کښې وُ چې ویکوویچ راغی ده له دې نه بناغلی اکسالینډ خبر کړو، اوس کابل د روسي او پرنګی دغوبل مرکز وګرځیدو، اوبل اړخ ته، ایران خپله ناولې دنده دافغانانو خلاف روانه کړه د هرات د نیولو په منصوبه یې کار پیل کړ ، اوس نو د مشرق له اړخه پرنګي سیکهان دافغاني خاورې د نیولو له پاره لمسول، او د مغرب له اړخه روسانو ایراني دافغانانو تباهۍ ته تیار کړي وو، چې په حقیقت کښې دغه دزاري روس او دبرطانیه جنګ وُ، چې دوی د ایرانیانو، افغانانو او سیکهانو په ذریعه مخکښې بوتلو څکه په تاریخ کښې ورته " The great game " وائي.

۱۸۳۷ کښې پرنګیانو ډېر کوشش وکړو چې ایران د هرات د حملې نه منع کړي، په دې وخت کښې ایراني باچا فتح علی شاه ، قاچاري او دده زوی شهزاده عباس دواړه مړه وو، دده لمسی په قدرت وُ یعنی محمد مرزا. روسانو محمد مرزا قاچار ته لالچ ورکړ، چې دهرات علاقه پخوا هم د ایراني حکومت برخه وه، باید چې اوس بیرته قبضه کړای شي، د روسانو سیاست دغه وُ چې دوی هند ته دایرانیانو تر څادر لاندې ورننوځي شي، چې د هرات پسې کندهار او ورپسې بلوچستان او

سند اوګرمو اوبو ته ځان رسول ؤ، نو محمد میرزا قاچار د څلور زره (۰۰۰،٤) جدید فوج سره د روسي او فرانسوي افسرانو په کمک حمله وکړه د هرات افغانانو یې ۹ میاشتې دوی مقابله وکړه، ایرانیان او روسان افغاني همت ته تینګ نه شول، ناکام لاړل، تر دې وخته پورې هرات د احمدشاه بابا داولادې سره ؤ، چې دشهزاده کامران، حکومت ؤ. دوی دهرات آباده علاقه شاته یو بربا ده علاقه پرېښوده، چې روسته دومره لوږه راغله چې افغانانو د لوږې اولادونه خرڅول.

اوس دهرات دناکامۍ نه پس روسي په خپله مرکزي اسیا کښې په تماقم پالمو علاقې نیولو باندې لاس پورې کړو، او په تیزۍ سره دآموسین برید ته روان وو، بل اړخ ته پرنګیان په کلکته کښې ډېر بې ارامه وو، که څه هم امیر دوست محمدخان برنس ته دګورنر جنرل په نوم ډېر دتسلۍ خطونه ورکړي وو، او ددوی سره یې دوستي څرګنده کړې وه مګر دپرنګیانو اعتبار نه په راتلو. داځکه چې پېښور نه بغیر امیر صاحب لیکلي لوظنامه د ته تیاره نه وو، نو دده خلاف یې منصوبې جوړولې، چې په هغه کښې غوره منصوبه دغه وه چې شاه شجاع بیرته افغانستان کښې په قدرت راولي، نو-

دوئ سیکهان هم دې ته تیار کړل چې امیر دوست محمد خان په یو وخت د سیکهانو، شاه شجاع، او پرنګیانو دښمن دے نو داوس نه یې ختمول پکار دي بس څه وو، دده خلاف یې دغه پروپګنډې شروع کړه، چې امیرصاحب د روسانو سره پټ لاس لري، غواړي چې په ګډه هندوستان کښې سیکهان او د پرنګیانو واکداري ختمه کړي، او د دوئ نه واک واخلي چې په حقیقت کښې دوئ د ریوارو غوښتل چې امیر دوست محمد خان له افغانستان څخه وباسي چې د ے سان بازکښې د دوست محمد خان پیښاوري ورونه هم د دوئ ملګري وو، داځکه چې دوئ په حقیقت کښې د سیکهانو دلالان وو، شاه شجاع او راجه رنجت سنګهه دواړه پرنګیانو د ربرمهر په طوراستعمال او بل د پرنګي سیاست دغه وُ چې سیکهان افغاني خاوره چې څومره لوېره لاندې کړي دوئ ته بنه ده، داځکه چې دوئ به روسته د دې وارثان شي، په کابل کښې د برنس موجودګي د هرات محاصره او هند اکسالنډ شمله کښې په بېنس افغانستان باندې د یرغمل منصوبه جوړه کړه، دوئ د شملې غونډه کښې داسیکم پاس کړو چې د انګریزانو تر لارښود نی لاندې به راجه رنجت سنګهه په کابل حمله وکړی دده د کومک له پاره د شجاع په مشری کښې فوځ جوړ ېږي چې خرڅ به یې پرنګیان ورکوي، او یو اختیار لرونکی انګریز افسرهایندهٔ

به ورسره وي چې لاړ سنو دنه او ځاځه به کوي، او دشاه شجاع

دفوج کماندران به پرنګیان وي، نوموړي سکیم ته لندن دعملي

کولو اجازت ورکړ په ۱۸۳۸ مئ کښې دبرطانیوي هند

چیف سکرتري میکنا ټن لاهور کښې دراجه سنګه سره ملاقات

وکړ، او ورسره یې خبرې وکړې، شاه شجاع خو داول

نه تیار ناست ؤ مګر دوستو دسیکهانو دفوج په ځای پرنګي

فوج کابل افغانستان ته لاړ و، رنجت سنګه ځان بچ کړ، پرنګیانو

یې ورځکښې کړل دغه فوج فیروز پور نه رخصت کړو چې

راجه په خپله موجود ؤ، نو دوی ۲۶ دجون ۱۸۳۸ کښې

لاهور پنجاب کښې درې فریقي لوظنامه لاس لیك کړه (شاه

شجاع، راجه رنجت سنګه او انګریزانو) په ښکاره پرنګیانو

دهرات دمحاصرې چیغې وهلې، لیکن په حقیقت کښې دوی

په پټه نورې منصوبې درلودې، دلاهور دمعاهدې

مطابق به داسې ویش ؤ، چې شاه شجاع به دافغاني صوبې

دسیکهانو دلاسه نیولو ته یو قانوني شکل ورکوي، یعنې

دېره جات، پېښور، کشمیر او هزاره، ملتان او پرنګیانو

ته به صوبه سنده ورکړ کیږي، او افغانستان کښې به وړته

پوره پوره حق وي. او مئ ۱۸۳۸ تر اګست ۱۸۳۸ پورې اک لیند

ګورنر جنرل په افغانستان باندې دحملې کاروائي مکمله کړه،

او اکتوبر ۱۸۳۸ کښې یې دافغانستان سره دجنګ علان جاري

کړو، او واسې يې پکښې وېشلې او ليکلي وو، « زمونږ دختيځ د نيوکو ښه په دې کښې ده چې زمونږ په لويديځ کښې دېره دښمن دمطيع کولو نکو، او د برې او د ځان د پياوړي کولو منصوبې جوړونکو پرځای، دجابرحيت په مخنيوی او سکون جوړولو خوښه اتحاد وي »

« حواله کتاب انگريزي استعمار او افغانستان ليکونکی اولس يار - ۱۰۷ »

مگر پرنگيان پخپله مني چې دغه معقول دليل نه دے، مگر دوئ په دې پسې نه گرځيدل، د دوی مطلب دافغانستان نيول وو.

پس دوئ په افغانستان بريد وکړ، د شاه شجاع دفوج مشر هم پرنگی وُ، او ورسره نور ډېر پرنگيان جنرالان او فوج وُ، دوی اول د قندهار سرداران وشړل، او شاه شجاع يې قندهار کښې بادشاه کړو، او ميکناټن يې ( political ADVICER ) سياسي مشاور شو، او بيا پرنگي غزني، کابل، جلال اباد علاقې هم قبضه کړې، امير دوست محمد خان مقابله وکړه، مگر افغاني سرداران ډېر ژر د شاه شجاع ډډې ته شول، نو دوست محمد خان ترکستان ته بخارا ته لاړو، او د ده زوئ اکبرخان وطن کښې پاتې شو، اول سر کښې خو پرنگيانو دغه سياست کامياب شو، چې خلقو کښې يې خوره کړه چې زمونږ مقصد خو صرف د احمدشاه بابا د کورنۍ حق پرځای کول وو، زمونږ

نور غرض نه لرو.

مگر دافغان اولس دومره ساده هم نه وو، دوی ژر درک کړه چې شاه شجاع واك نه لري، بلكې ټول واك د پرنګي میکناټن او برنس سره دی. نو ورو ورو افغان ملت دمبارزې تیاری شروع کړو، چې دوی کښې عبدالله خان اڅکزی او آمین الله خان لوګری ډیر مخکښی مخښکې وو، او بل ملاموبن و، چې دیکتیا دغاړې راغلی و، لیلای سیل لیکي: چې دد مولانا نه موږ ډیر په عذاب و، اول خلك په قندهار کښې پورته شول، بیا کوهستان کښې، ورپسې غزني او بیا په ټول افغانستان کښې، اولس لښکرې جمع کیدې، او هرځای به یې په پرنګیانو او دشاه شجاع په طرفدارانو حملې کولې. که څه هم امیر دوست محمد خان وروسته له بخارا نه راغی. ځان یې پرنګي ته حواله کړو، لاړو هندوستان کښې جلا-وطن میشت شو، مگر دده زوی وزیر اکبرخان داولس سره ودریدو، چې حالات ډیر خراب شول، نو میکناټن بیا هم کوښښ کولو، چې افغاني سردارانو کښې بې اتفاقي واچوي دغلزي او دراني په نوم یې سره وجنګوي، مگر دې ځل دده ټولې چالاکۍ ناکامې شوې، ۱۸٤۱ کښې حالات تر دې ورسیدل چې افغاني مجاهدینو الیګسنډر برنس په خپل کور کښې قتل کړو، او ورسره یې ټول هندوستاني او-

او پرنګي سپاهیان هم ، اوس میکناټن کوښښ شروع کړو ، چې وزیراکبرخان تیرباسي ، نو دده سره یې لیدنې خواست اوکړو ، وزیراکبرخان خو اوس د افغاني انقلابي اولس زورلیدلی وو. چې څه وخت دوی سره کښیناستل نو د اکبرخان اومیکناټن خبرې سره ترخې شوې ، اکبرخان او سلطان جان خان لاس وروا چوه ملیکناټن یې ټینګ ونیوو ، اوکش یې کړو ، اوس میکناټن په ځان پوه شو ، چې اخري وخت یې دے ، نو یې خپل قومي عزت پت ته هم نه وو کتل ، اکبرخان ته په خواستو شروع شو چې باربار به یې دغه نعره او ژړا کوله ، چې از برائ خدا ، ازبرای خدا یعنې دخدای له پاره مامه وژنه ، مګر دې ځل وزیراکبرخان او سلطان جان فیصله کړې وه چې دغه پرنګی لومړه به ژوندی نه پریږدو ، دده میرمن ته پرنګانو FIRST LADY ویل ، اوافغانانو ورته خانم بزرګ ویله ، خانم بزرګ افغانانو کښلوه کړه ، وزیر اکبرخان څوځوځله هغه په وزیرې چاره وو هلو ، میکناټن حجامت یې وکړه ، دده خیال وُ چې ، پرنګانو واسکویګاما یم او س به پرنګي تاریخ کښې زما نوم لیکه شي ، چې میکناټن افغانستان لانلایا کړو . مګر دده ټول خوبونه او پلانونه دکابل په خاورو کښې خاورې شول . اوس ژمی وُ پرنګي فوج څوځو ځله کوښښ وکړ ، مګر هرځل به دوئ ماتې خوړ له توپې او اسلحه یې مجاهدینو قبضه کوله . جنرل -



۱۸۴۲ کښې دوی د وزیر اکبرخان سره معاهده وکړه،
چې دوی به د افغاني خاورې نه وځي، دوی جنرال
الفنټن په مشره کښې د کابل نه روان شول، چې خرنګې
باګرامی او خورد کابل ته ورسیدل د هر لورې افغاني
مجاهدینو پرې حملې شروع کړې، دپرې مینځې او ماشومان
وزیر اکبرخان سره یرغمل شول، چې لیډي سیل یعنې جنرال
سر رابرټ سیل مېرمنه هم وه، هغه د وزیر اکبرخان د ښو
اخلاقو ډېر صفت کوی، او د پرنګي افسرانو نه سر ټکوي، چې
دوی څه بالکل وو، د پرنګي په فوج افغاني ورنېي لېوان
او ګیدړ ماړه شول، صرف یو ډاکټر برائیډن نیم ژوندی
حالت کښې پاتې وو، پرنګیانو ته ده خبر ورکړو د دې سره
داک لیسنډو نوکري هم خلاصه شوه. او لندن کښې دغه خبر
د بم غوندې وچاودیده، چې ټول یورپ کښې یې آوازه شوه،
چې افغانانو پرنګیان وډبول، د هغې وخت الماني عالمان
مارکس او انګل هم د دې متعلق لیکلي دي، او یو الماني،
شاعر او لیکوال هم دغه واقع په خپل شعر کښې بیان کړېده؛

## Afghanistan das Tor nach Indien Herbert Tichy

**Afghanistan und besonders das duestere Khurd Kabul beschaeftigte sich fuer einige Zeit die Phantasie Europas Schriftsteller und Dichte. sie hatten einen dankbaren Stoff gefunden. Hier ein Gedicht (T. Fontanes) ueber afghanische Ereignisse:**

Das Trauerspiel von Afghanistan – Theodor Fontane

**1819-1898**

1) Der Schnee lies staeubend von Himmel faellt,
Ein Reiter vor Dschellalbad haelt,
"Wer da?" ein britischer Reitermann
"Bringe Botschaft aus Afghanistan!"

2) Afghanistan! Er Sprach so matt,
Es umdraengt den Reiter die halbe Stadt.
Sir Robert Sale, der kommandant,
Hebst ihn vom Pferd mit eigner Hand.

3) Sie fuehren ins steinerne Wachhaus ihn,
Sie setzten ihn nieder an den Kamin
Wie waermt ihn das Feuer, wie lobt ihn das Licht,
Er atmet hoch auf und dankt und spricht

4) "Wir waren dreizehntausend Mann,
Von Kabul unser Zug began,
Soldaten, Fuehrer, Weib und Kind,
Erstart, erschlagen, verraten sind.

5) Zersprengt ist unser ganzes Heer,
Was lebt, irrt draussen in der Nacht umher,
Mir hat ein Gott die Rettung gegoennt,
Seht zu, ob den Rest ihr retten koennt."

6) Sir Robert stieg auf den Festungswall,
Offiziere, Soldaten folgten ihm all.
Sir Robert sprach: "Der Schnee faellt dicht,
Die uns suchen, sie koennen uns finden nicht.

7) Sie irren wie blinde und sind so nah,
So lasst sie's hoeren, dass wir da.
Stimme an ein Lied von Nacht und Haus,
Trompeter, blast in die Nacht hinaus!"

8) Da huben sie an, und wurden's nicht mued,
Durch die Nacht hin klang es, Lied um Lied,
Erst englische Lieder mit froehlichem Klang,
Dann Hochlandlieder wie Klanggesang.

9) Sie bliesen die Nacht und ueber den Tag,
Laut, wie nur Liebe zu rufen vermag.
Sie bliesen – es kam die zweite Nacht,
Umsonst, dass ihr ruft, umsonst, dass ihr Wacht

10) Die Hoeren sollen, die Hoeren nicht mehr,
Vernichtet ist das ganze Heer.
Mit dreizehntausend der Zug began,
Einer kam heim aus Afghanistan

نوټ: دغه نظم بناغلی « THEODER FAN TANES »

چې د ے سبه لیکوال او شاعر دے د ۱۸٤۲ د پرنګي په -

« DISASTER » باندې لیکلي دي: چې پرنګیانو اول ځل اول

افغاني پرنګي جنګ کښې ماتې وخوړله او د دوی ټول فوج

عزت او رعب درب تباه شوے وُ . بناغلی شاعر په خپله

جرمنانی یعنې المانی دے . خو انګلینډ کښې هم اوسیدلی

دے . نو ځکه دوی ته د پرنګیانو د تباهۍ سبه اندازه وه.

د هغې وخت ټول یورپ شاعران او لیکوالان د دې واقع نه

متاثر شوي وو، دا ځکه چې پرنګیانو به ویل: چې زمونږ

په دایري کښې ماتې یعنې شکست نه شته، مګر د پښتنو د لاسه

دوی وهل وخوړل نو دوی ډیر ذلیل وو.

د نظم ترجمه:

## « د افغانستان په غم لړلې لوبه »

(۱) واوره وروره د اسمانه وریده

چې یوسوار د جلال اباد سره ودریده

چا وویل چې دا څوک دے هاں دغر برطانوی سوړ دے

یو خبر یې د افغانستان نه راوړی دے

(۲) افغانستان! ډیر کمزوری آواز یې دے

په دې کښې پوره نسیم ښار پرده راچاپیر مشو

سررا برټ سیل د فوج کماندان

په خپل لاسو یې د اسپې نه راکوز کړو

۳- دوی د کابو نه جوړ سیو ډیپهرې تاپو ته بوتلو

او دوی یې د یوې انګلستانی خوانه کښېناوو

چې څرنګه اوږ د ځګرم کړو او ستړی یې وغړېدې
نو یو لویه ساه یې واخیسته او ل یې تشکر وکړو وړیې شو کړ یان

۴- موږ دریالس زره مخلوق وو.

د کابل نه زموږ کاروان راروان وو .

چې پنځه ماشومان، سپاهیان او سرداران وو .

ټول قتل یعنې وچ کړي او لار یې غلطه کړې وی .

۵- زه موږ ارمي تباه شوه .

چې څه پاتې دي د شپې یې لارې ګودرې خطا کړه ورچانی کړځي

او زه ، اوزه دلوی خدای په برکت ژوندي یم .

وګورئ که باقي تاسې چیرته بیچ کولی شئ .

۶- سرابرټ د قلعې په دیوال وختو .
ورپسې عسکر او ټول افسران ور وختل .
سرابرټ وویل: چې وا وره ډېره درنه لرېږي .

چې څوک موږه غواړي هغه موږه نشي موندلے .

۷- دوی لارې خطا کړې دي د راتلو په ځیر دي که څه هم موږ ته نږدې دي

نو راځئ چې دوی زموږه او ازونه واوري چې موږه یو .

نو راځئ چې سندرې ووایو ، د شپې سندرې

نو دوی به د شپې لخوا ورچانې وژاړنه او لی .

۸- دوی ډېرې چیغې وکړې پوره شپه سترې نه شول .

ټوله شپه یې دسندرې پسې سندره وویله
اول یې دانګریزې د خوشحالۍ سندرې وویلې
وروسته یې غرائزه سندرې او بیا وروسته دوبره سندرې.
۹- دوی ټوله شپه او ورځې بچی وغږولې.
دومره په زوره چې څومره یې مینې اجازت ورکاوو.
دوی ژغاولې ژغاولې پدې ډکیږي دویمه شپه را غله
دوی وویل چې مونږه فضول چیغې وهوا وفضول پیرۍ او څوکۍ کوو
۱۰- چې څوک یې اوری هغه یې نه اوری.
داځکه چې ټوله ارمي تباه نست ونابود ده.
د دیارلس زرو کاروان وو.
صرف یوځینې دافغانستان نه کورته راغئ.
دلته اخري څو پرنګیان چې پاتې شول نو ګند ومک غونډۍ
سره ګولې ورخلاصې وې. نوري یې را ویستلې ټول مړه شول.
یو افغانانو ژوندے وینو، هغه داسې چې یو جولدار و، دهغه
سره یو نین جیک بیرغ و، د پاسه یې ګرم کوټ په اغوستی و،
چې پښتنو څملو، د پاسه یې ګرم کوټ پر اغوستی و، چې
پښتنو څملولو او مړکولو یې، نو دیکښې دوی دغه بیرغ،
یې ولیده تر کوټ لاندې، د دوی خیال و چې چیرته دپرلوئ
پرنګی دے، نو دوی مړ نه کړو، دوزیر اکبر خان دانعام د
پاره یې ژوندے پریښود، نو دوئ پر دوکه شوې وو، په

دې حیل پرنګي سرجنټ ته ورندې پاتې شو، ددې شکست، سره د دوی رعب هند کښې ډېر کمزورې شو، دوئ د دې، کمزورۍ د پښتولو له پاره روستو دکابل شکلې پېټ بازار په بارودو والوزاوه. او غزنې کښې کم کور نه یې د قوت دروازه د هندوانو د غولولو د پاره یوړه، هند کښې یې چېغې وهلې چې دغه ده د سومنات دروازه مو راوړه، مګر ددې ټولو نخرو باوجود دکمپنۍ رعب دب ته ډېر زیان ورسیدلو هم داوجه وه چې روستو دویم افغاني پرنګي جنګ کښې هم دغې غونډې بانده یعنې ګندومک لوظنامه په افغانانو وتپله چې دوئ اول افغاني جنګ کښې شرمیدلي وُ، نو دبدل دپاره یې دغه غونډې دلوظنامې دپاره وټاکلو، مګر دغه دویم حل هغه یې هم په وینو ککړه شوه، دوئ د بدل نه پس امیر دوست محمد خان بیرته کابل ته راپریښو دګورنر جنرل آکلینډ نوکرۍ خلاصه شوه، هند کښې نوې ګورنر جنرل مقرر شو، دوئ ورپسې سنده قبضه کړو، دسنده امیران یې بې واکه کړل نیپالیان یې وټکول، مرهټه یې بې خوېږې کړل، اوس د دوئ دوست رنجیت سنګه مړ وُ، ده پخپله د دوئ ۱۸٤۲-تباهی نه ولیده، دکشمیر راجه ته یې د جلال اباد دنیولو ویلي وُ، خو هغه دومره لیونې وُ، انکار یې وکړو، بس اوس، سیکهانو ته یې سترګې نیولې وې، چې دوئ به څرنګې ختموو:

افغانستان کښې شاه شجاع او د ده اولاد ټول مړه کړای شول، اوس محمد زیان د افغانستان جائز حکمرانان د افغانانو لخوا ومنل شول، دا ځکه چې شاه شجاع د پردو په اوږو سپور راغلی ؤ. نو د افغانانو په سترګو کښې د وراثت حیثیت یې خلاص شو.

# دسکهانو او پرنګیانو جنګونه او لاندې پښتانه

جولائی ۱۸۳۹ کښې راجه رنجیت سنګه مړ شو او د ده زوئ کهرک سنګه دپنجاب حکمران شو. دے د څه وخت دپاره، حکمران پاتې شو، بیا ئې ورخپل زوئ کنورنونهال سنګه دتخته کوز کړو، او د پلار په ځائے پخپله حکمران شو، مګر قدرت ته دغه نه وه منظوره او دے ۵ نومبر ۱۸۴۱ په ورځ دخپل پلار یعنې کهرک سنګه د جنازې نه پس واپس راروان وُ چې د خصورۍ باغ یو لوئ چهت د ده په سر راپریوتو، او دڅو ګهنټو نه پس مړ شو، د ده دمرګ نه پس څو څو شهزادګان او وزیران دپنجاب حکمران شول. یعنې باچاګردي شوه دوې اخیري دراجه رنجیت سنګه یو ماشوم زوی دلیپ سنګه د پنجاب، مهاراجه کړو، او د ده مور رانې چندان د ده سرپرسته مقرره شوه او سردار لال سنګه خالصه وزیر عظم مقرر شو، مګر داسې حال وُ چې سیکه فوج او سیکه سرداران ټول خودسري شوي وو، او پرنګیانو داسې

د بې اتفاقۍ او لالچ او رپکښې اچولې وُ، چې حد يې نه وُ او بل دوئ خو د باداشاهۍ قابل نه وُ د د هقاځه -
نه باد شاهان جوړ شوی وو، او پوره پوره مهذب شوي نه وو. او بل پرنګيانو ته يې نور ضرورت نه وُ، دوئ په څه پلمه ځته ول، نو پرنګيانو د ځپلو چلونو په ذريعه سيکهان بې وقوفان ( PROVOKE) يعني په قهر کړل او د سمبر
۱۸٤۵ کښې ستلج درياب چې د دوئ او د کمپنۍ بريدؤ عبورکړه او پر نګيانو خلاف يې علان جنګ وکړ، که څه هم پدې جنګ کښې پرنګيانو ته تاوان ورسيد و، مګر اخري شکست او ماتې دسکهانو په غاړه شوه. نو ۱۸٤٦ کښې معاهده لاهور وکړه د دې شرطونو په لاندې ډول وو:

۱- دوابه جالندهر علاقه سيکهانو پرنګيانو ته ورکړه.

۲- مهاراجه دليپ سنګهه دپنجاب مهاراجه تسليم شو.

۳- سرهنری لارنس سيکهه دربار کښې ريزيډنټ مقرر شو.

٤- سيکهانو يونيم کروړ روپيه تاوان جنګ ومنلو. دسيکهانو سره ۵۰ لاکهه روپيه وي. ديوکروړ په بدل کښې يې جموں او کشمير ورکړل، چې ورورسته پرنګيانو په ګلاب سنګهه باندې په يو کروړ روپيه خرڅ کړو.

۵- دسيکهانو دفوج تعداد کم کړاے شو او فقط ځلويښت زره (٤۰۰۰۰) پياده او ۱۲۰۰۰ دولس زره سواره مقرر شول.

بيا و روسته دسيکهه دربار کار و بار ۸ - اته سردارانو جرګې

چلاوو چې د دوی د مشر پرنګی بناغلی سرهنري لارنس و، د دې

کونسل يا جرګې معياد تر ۱۸۵٤ پورې و، چې دوی د شهزاده

تر بلوغت پورې وو، او دې جرګې په مختلفو ضلعو کښې اسسټنټ

ريذيډنټان کېښودل. او دغه پرنګيان وو، او د دوی په لاس کښې

پوره پوره واک و، يعنې د سيکهانو د حکومت مثال د هغې ټرک و چې

ډرايور او انجن يې د پرنګيانو سره و او تشه باډي يې د سيکهانو سره

وه. د سيکهانو د دې دور کښې د بنو د ضلع مشر ښاغلی کرنل ايډورډ

و، او س سيکهان پوه شول چې اختيارات خو د پرنګيانو سره دے

دوی څه سي کډوان دي. نو ګورنر جنرال ډليوزی د ډېر مياشتې

لا نه وې تيرې شوې چې د وسيکهانو دويم جنګ شروع شو.

د لاهور دربار د ملتان حاکم مول راج نه حساب کتاب وغوښتو

ليکن مول راج انکاري شو لارډ ګف ته حکم وشو، چې

مول راج باندې حمله وکړه، ليکن لارډ ګرمی په وجه سستي

وکړه، او س د راج بغاوت يو خطرناک مشکل اختيار کړو، په دې

ورځو کښې کرنل ايډورډ د بنو ريذيډنټ و، نو هغه د ډيرو

او بنو ن پښتانه د مول راج خلاف بوتلل، په دې کښې د غزني خيلو ن

مروتو خانانو د پرنګی کمک وکړو چې هغه کښې مشهور رقيب خان،

ولد پير محمد خان غزني خيل و، او د بنوچو دا ړخه درب خان،

دايډورډ سره لاړو پښتنو د پرنګي د مشرکړې لاندې مول راج ته

دوه ځله ماتې ورکړه او ملتان کښې یې محصور کړ، دلاهور دربار ایلچو دمدد دپاره شیرسنګه ولیږلو مګرهغه ملتان تر رسیدو سره سم دمول راج ملګرے شو، چې څه وخت ددې نه لارډ ډلیوزی خبرشو، نوفوراً یې دسیکهانو خلاف علان جنګ حاوکړو، ددې نه دبنوں او ډیره وپښتانو فایده وچته کړه، دوئ بنوں کښې په سیکهانو او پرنګیانو حمله وکړه ځان یې ځینې ازاد کړو او زر یې افغانستان ترخبر ورکړو، چې بنوں دسیکهانو نه او پرنګیانو نه خالي دے، تاسو یې قبضه کړئ، خو هغوئ غوږ نه په وګرولو دسردار شیرسنګه او مول راج دملګرتیا په وجه سخت جنګ شروع شو، خو بیا هم دسیکهانو په قسمت کښې ماتې وه، دوئ دجلیانواله باغ سره سخته ماتې وخوړه، ددې سره پرنګیانو یعنې لارډ ډلیوزی ګورنر جنرل پنجاب سیکهو شاهي خته کړه، او دکمپنۍ علاقه یې اعلان کړه او مهاراجه دلیپ سنګه ترې پنځوس زره پونډه دکال پنشن مقرر کړ، هغه شان کوزه پښتونخوا مارچ میاشت ۱۸٤۹ دکمپنۍ ترعملدارۍ لاندې راغله، او س پرنګیان ددریائے تسلج په ځائے جم (جمرود) پیښور، بنوں، کوهاټ او ډیره کښې باقی افغانستان ته کښیناستل، او دافغانستان دژمي دارالخلافه، پیښور دپرنګیانو داستوګنې ځائے شو، او س د پرنګي او روسي په منځ کښې صرف باقي افغانستان پاتې شو، زاري روس هم ځان اموسیند تر رارسولے وو.

# د امیر دوست محمد خان بیا امارت

## د ۱۸۴۳ء نه تر ۱۸۶۳ء پورې حالات

که څه هم اوس پرنګي نه وُ، دوئ جنورۍ ۱۸۴۲ کښې - امیر دوست محمد خان بیرته خلاص کړے شو او افغانستان ته راغلے وُ، مګر اوس هغه امیر دوست محمد خان نه وُ پاتې چې کوم ځنګښې وُ چې زړه یې مات او بې خوصلې وُ، او بل افغانستان هغسې برخې برخې پروت وُ، قندهار کښې بیرته د لا - و رونه په قدرت وو، هرات کښې یار محمد خان وُ، قطبي افغانستان جدا جدا ویشلې شوے وُ، پښتونوړ اول سیکهانو اوس د پرنګیانو سره وُ، اوس پرنګیانو د افغانستان د مکمل نیولو د پاره منصوبې جوړې کړې، دوئ کوزه پښتونخوا مارچ ۱۸۴۹- کښې ونیوله اوس د موجوده قبایلي علاقو د نیولو پروګرام یې جوړ کړو د غه اول قدم وُ، او د دې نه پس د دوئ مقصد اموسینډ وُ، کویټه شال د دوئ قبضه کښې وُ، خانِ قلات یې بې واکه کړو، خارجه سیاست یې ځینې واخیستو، کورنۍ چارو کښې آزاد نه وو، افغانستان کښې سرداران یې دیو بل خلاف استعمالول،

او امیر دوست محمد خان یې دافغاني خاوري راټولولو ته نږږیبنوڅ دسیکهانو دربار په دوران کښې ځینې پرنګیانو وروزل شول، چې وروسته دوئ دپښتنو دپاره لوئ خطرناک او زهرجن ثابت شول. دمثال په توګه، دلارنس دوه رونړه، جارج او جان لارنس ایبټ ایډوارډ، هډسن، نکلسن، لیومټر ډن - سنډیمن، او برنس چې دافغاني خاورې نیولو کښې ددوئ ډیر لاس وُ، پنجاب کښې روزلې شوي وو،

پاس په پاتې افغانستان کښې امیر دوست محمد خان کوښښ کولو چې تجارت او صنعت او زراعت بیرته برابر کړي، لارې او - کودرې دغلو او شوکمارو نه پاکې کړي، خو دده په مخکښې ډیر خنډونه وو، اول کار دغه وُ چې افغانستان کښې مرکزیت راولي ۱۸۵۱ کښې یې قطبي افغانستان بیرته قبضه کړو، او دمرکزلاندې یې راوستو په ۱۸۵۵ کښې یې قندهار قبضه کړو، ( دل ) رونړه یې وشړل، ۱۸٦۳ کښې یې هرات هم قبضه کړ چې دې کال باندې امیرصاحب وفات شو، خو پاتې افغانستان یې سره یوکړو، مګر پرنګیانو امیرصاحب چرته په ارام پرېښنوده، نو پېښنور لوظنامه مارچ ۱۸۵۵ کښې په منلې شوه په ۱۸۵٤ کښې ګورنر جنرل لارډ دلیوزي په هدایت دپېښنور ډیپټي کمشنر ایډورډ ته لارښودنه اوسته چې امیر صاحب سره رابطه جوړه کړي، په مارچ ۱۸۵۵ کښې د پنجاب چیف کمشنر او دامیر-

صاحب زوی غلام حیدر خان پېښور کښې سره ملاقات وکړو، او ۳۰ مارچ ۱۸۵۵ کښې دوئ یوه لوظنامه لاس لیک کړه چې دې کښې دغه لیکلي وو:

« چې امیر صاحب به د پرنګیانو د دښمنانو دښمن او د دوستانو به یې دوست وي» مګر دغه په پرنګیانو نه لاګو کیده که څه هم لوظنامه کښې ښکاره نه وولیکلی شوی، چې دکوزې پښتونخوا نه دې امیر صاحب تیرشي مګر اشارتو کښې هرڅه وو، پرنګي دغه ځلوریدې، د هند دپاره دومره ضروري ګڼلی، لکه څومره چې داسان دپاره خوراك دے. او بل امیر صاحب دومره کمزورے شوے ؤ، چې هغه دملګو پګړه باندې رضاو، او س پوره پوره په راضي ؤ، دښال نه یې توبه کړې وه، او بل ۱۸۵۶ کښې ایران بیا په هرات حمله وکړه او پرنګیانو د امیر صاحب مشکلاتو نه فائده اخستلو نه سر نه غاړاوه دوی جنوري ۱۸۵۷ پېښور کښې یو بله معاهده په امیر صاحب ومنله، دلوظنامې نه پس پرنګیانو امیر صاحب ته دولس زره پونډه دفوج د ساتلو دپاره هره میاشت - ورکولې ترهغه وخته پورې ترڅو پورې چې امیر صاحب د ایران سره په جنګ کښې وي، انګریز افسرانو کولاے شول چې د دې پیسو د لګولو دپاره دکنټرول حساب وکتاب دپاره

کابل، قندهار او بلخ ته لاړ شي، مګر امیرصاحب که په فوجي توګه غریب او کمزوری و، مګر بې وقوف نه و.

هغه په دې ښه پوهیده چې دغه افسران به جاسوسي کوي نو صرف یې قندهار ته د تګ اجازت ورکړو، د حیرانۍ خبره دغه ده چې یو اړخ ته پرنګي ایران خلاف امیرصاحب ته فوجي امداد ورکولو او بل طرف ته یې هرات د نور افغانستان نه جدا ساتلو، چې دغه لوظنامه وشوه نو بیا پرنګي د هرات بیرته د افغانستان سره دیو ځای کولو اجازت ورکړو، بل ٤ مارچ ۱۸۵۷ - کښې پیرس لوظنامه کښې ایران د برطانیه ټولې مطالبې ومنلې، او دې لوظنامې کښې ایران لوظ کړې وُ چې هغه به راتلونکي وخت کښې د افغانستان سره هره رابطه دکمپنۍ په ذریعه ساتي، هم دغسې د پرنګیانو لاس په افغانانو او ایرانیانو باندې دپاسه شو، د دوئ مشر پرنګی شو، د پرنګي د خبرتیا نه بغیر دوئ دیو بل سره څه لوظنامه نه شوله کولې.

ځینې خلک د تاریخي واقعاتو نه خبر نه وي، نو زر راتو پ کړي چې ۱۸۵۷ کښې افغاني امیر چیرته وُ، او د ده پوزښن دغه وُ چې د خپل ځان نه په غم پرنګي اخته کړے وُ، د هند د ازادۍ جنګ کښې یې هیڅ کمک نه شو کولی. د لته جنوري ۱۸۵۷ کښې امیرصاحب باندې لوظنامه وتپلی شوه هلته ۱۰ مئ ۱۸۵۷ کښې د میرټ په مقام د استعمار خلاف،

دهندوستان دخپلواکۍ لومړۍ لمبه پورته شوه، او ـ ټول هند کښې اور بل شو، افغانانو په امیر صاحب باندې زور راوړو چې اوس وخت دے، چې پرنګې باندې ګزار وشي دافغانانو د خطرې په وجه د پنجاب چیف کمشنر جان لارنس هم و فیصله وکړه چې تر اباسینه پورې علاقه امیر صاحب ته بیرته ورکړي، مګر دګورنر جنرل لخوا یې سخت مخالفت وشو، او ورته هدایت وشو چې پښتنو ته اخره ټینګ کړه. تر څو پورې چې دهند دازادۍ جنګ و، امیر صاحب نه پخپله اونه یې افغان اولس دې ته پرېښود چې پرنګي باندې ګزار وکړي او بل لیوه مزرون پرنګي شهزاده غلام حیدر خان سن ۱۸۵۷ کښې قندهار کښې ناست و، هغه ته یې نصحت کولو چې دستاسو دکورنۍ خیر پدې کښې دے، چې دهند دچارو نه ځان وساتۍ. دغه جذباتي پاسون دے ډېر زر به ختم شي، نو پرنګیانو په سره سینه دپښتنو نخواه پښتانه او پنجابیان دهند دازادۍ د جنګ خلاف استعمال کړل، او بله وجه دغه وه، چې تازه تازه دسیکهانو حکومت ختم شوے و، چې دوی په پښتنو ډېر ظلمونه کړي و، او افغاني امیرانو ددوی هیڅ کمک نه و کړے دهغوی په مقابله کښې پرنګیان ډېر مهذب وو، داځکه چې دهغې وخت پښتنو او پنجابي مشرانو خیر پدې کښې لیدو

چې د وحشي سیکهانو نه پرنګي ښه دے، د پرنګیانو د حکومت د پیروخت نه وُ شوے، نو ځکه دوئ ورځنې تنګ نه و، د هندوستان خلقو خو د پرنګي اصلي ظالم ښکل پېژاندلے وُ، او پښتنو او پنجابیانو خو تازه تازه د تار سنګهه دو نه خلاص شوي وو، او د پرنګي اصلي ښکل اولس یا نه وُ پېژندلے، او ځکه د پرنګیانو خلاف اولسي پا څون ونشو، او بل پر ګلیانو د سیکهانو د وخت نه پښتنو او پنجابیانو کښې کلکه ملګري جوړه

کړې وه، بیا د مارچ ۱۸٤۹ نه تر ۱۸۵۷ پورې دوئ ډېر لوی لوی جاګیر داران او قبائلي سرداران خپل ایجنټان جوړ کړي وُ نو د دوئ د افغانستان نه هم زړه په قرار وُ، او په خلاص متې یې پښتانه او پنجابیان په ډهلي ورل -

چپول، خو دکال خبره دغه ده چې سیکهانو هم هیڅ پېروه نه خوځوه، حالانکه د دوئ بادشاهي خو تازه تازه ختمه شوې وه، او بل دغه پاڅون څه منظم نه وُ و، عسکرو بیا هغه پخوانی کاهل او ارام پسنده مغل په تخت کینښناول چې دوئ نه عسکري هنر درلوده او نه سیاسي تنی کو دي پاتي وو، او بل دې وخت کښې دخانی او بوجهانو نه وو، د لندن او د برطانیه د نورې کالونو نه زر زر امداد رارسیدو، ازادی غوښتونکی اولس ټینګ ایمان درلوده، خو څه خاص پروګرام نه وو، او بل یورپ کښې

۱۸۳۵ نه ریل جاري شوے وُ، او پرنګیانو سره د پر دولت وُ، او بل روس هم د دې ګړ بړ نه فایده واخستله، خو که روس را غلے هم وے، نو د هندوستانیانو د پاره پکښې څه خیر وُ.

بهرحال دغه جنګ هم هندي پښتنو کړے وُ، او مشر یې یو هندي پښتون وُ، چې شایسته خان نومیده ۸ جولائی ۱۸۵۸ پورې پرنګیانو هندي پاڅون مات کړ، مشران یې پهانسي شول، او د مغلو زوړ او ړوند باچا ظفر شاه رنګون ته ولیږلے شو، او بچي یې ورته د ده په مخ کښې مړه کړل، دغسې د مغلو برائې نام حکومت پائے ته ورسیدو، او ورسره ورسره د کمپنۍ حکومت هم ختم شو، نومبر ۱۸۵۸ هند د ایریکټ د تاج برطانیه لاندې راغلو، او هندوستان د ملکه وکټوریا د تاج او تخت برخه شوه، او دا د دې تر حکومت لاندې ینغ په نیغه راغلو د کمپنۍ وروستی ګورنر جنرال لارډ کیننګ له دې ورځې نه وائسرائے هند شو، دغه جغ چې په هندوستانو سوَ شو. نو ۱۴ اګست ۱۹۴۷ پورې پې د هند کلتوري، سیاسي اقتصادي، ژباني ښه استحصال اوکړو، اوس لاندې، پښتانه پاخه د پرنګي تر پوندو لاندې شول، اوس د لته د پرنګي دوه دوله سیاست شروع شو، چې یو سیاست یې د کوزې پښتونخوا د پاره وُ، او بل یې د پاتې افغانستان

دپاره وه کوم پښتونخوا کښې ځینې علاقې یعنې ضلعې پولس لاندې راوستې، او قبایلي علاقې یې د خپل فوځي مشق دپاره وساتلې، او د افغانستان سره دپولې پاخه پولې په تګل کښې شول امیر دوست محمد خان ستړے ستومانه او بلها شوے و، خو دمرګ نه مخکښې یې هرات واخیست او په ۲۷ جولای ۱۸۶۲ کښې یې بتول افغانستان سره یو کړو، یعنې پاتې افغانستان او امیر صاحب ۹ جون ۱۸۶۳ کښې هرات افغانستان کښې ساه ورکړه، ددې فاني نړۍ نه لاړو، او دده زوۍ شیر علي خان چې روستو په امیر شیر علي خان مشهور شو، دافغانستان امیر شو .

( ۱۸۶۳ - ۱۸۷۸ع )

# دامیر شیرعلي خان وخت او دوییم پرنګي افغاني جنګ

دامیر دوست محمد خان دپر زامن وو، چې دوئ د مختلفو مانديو اولادونه، او بل که څه هم دامیر دوست محمد خان په وخت کښې افغانستان سره یو شو، مګر مقامي خانان او ملکان یا سم شوي نه وو، او سره پرنګي هم لرې نه وُ. یو دښمن ورته په جمرود پېښور کښې ناست و، بل ورته دامو سیند په غاړه سندرې وویلې.

پدا سې وخت کښې شیرعلي خان امیر شو، او دخپلو ورونو په منځ کښې اتفاق او اعتماد نه وُ، هر یو غوښتل چې امیر شي، نو ددې په وجه افضل خان، او عظم خان راپورته شول، یا چا را پورته کړل، د شیرعلي خان خلاف یې بغاوت وکړو، ددې سره بیا کورنۍ جنګ شروع شو، چې پرنګي او روسي ورته لمن وهله، دافغانستان د خوراک په نیت ناست وُ، دپرنګیانو ډایریکټ لاس و پکښې، دوئ غوښتل چې افغانستان نبه کمزورے کړي چې ددوئ لاس ته ناست وي.

نو دغو دواړو وروڼو امیر شیرعلي خان د تخته و شړلو
حکومت د دوی په لاس ورغی، مګر امیر شیرعلي خان همت
نه بائلو، اخر د دوی نه یې ۱۸٦۸ کښې بیرته کابل قبضه کړو،
یو ځل بیا امیر شو، عبدالرحمٰن خان او عظیم خان دواړه
وتښتیدل، عبدالرحمٰن خان ترکستان بخارا ته لاړو، د روسانو
میلمه شو.

کله چې امیر شیرعلي خان بیا امیر شو نو د هند وائسرای،
لارډ لارنس "Lard Laurence" ورته مبارکي ورکړه، د مبارکۍ
لیک ترجمه:

نیټه ۱۲ اکتوبر ۱۸٦۸ "ما ته ستاسو هغه لیک راورسیده
چې کوم کښې ستاسو د بیرته راتګ او د خپل پلرني بادشاهۍ،
نیولو خبر و،

علی جاه! زه تاسو ته په دې کامیابۍ مبارکي وایم، دغه
کار صرف ستاسو د پیاوړتوب، لیاقت، حوصلې او د ټینګې ارادې
برکت وُ، زه په رښتیا سره یقین لرم چې تاسې به په خپل هیواد
کښې امن او امان تر خپلې واکدارۍ لاندې ټینګ کړئ زه امید
لرم چې تاسې به د خپلو مخالفینو سره نرم چلند وکړې، که څه
هم دوی د ستاسو له پاره د ډېرو بدبختیو سبب جوړ شوي
وو، تاسو به د لوی زړه مهربانۍ او د مینې نه کار واخلئ.
ستاسو حضور به په خپل وطن کښې د مهربانۍ او عزت روایات

هېنگ کړئ.

زه په دې خبره ډېر خفه او غمجن یم چې د پیاوړي مرحوم امیر دوست محمدخان اولاد په خپلو کښې سره په جنګ وو. چې نتیجه یې کورنی جنګ وُ، چې د دې سره زما بهادرهش او په عامه توګه افغان هیواد او طاقت کمزوری شو، زه ستاسو په حضور باور لرم چې تاسو به د خپلې نیکۍ، مهربانۍ او-لری کتو په ذریعه به خپل هیواد کښې امن، صلح او خوشالي راولې، زه صرف زباني خبرې نه کووم. بلکې غواړم چې په عملي توګه هغه ټول روا بط چې زما او ستاسو د مرحوم، والد صاحب ترمنځ موجود وو، نور هم پیاوړي او ټینګ کړم، په دې کښې برطانوي حکومت هم ملګرے دے»

د غه وه د پرنګي ښکاره خبره چې څومره په خوږه ژبه یې خط ورته لیکلے وُ، کله چې سرے د غه د مبارکۍ لیك ولولي، نو داسې ورځني معلومیږي چې لارډ صاحب د امیر شیرعلي خان سکه ورور دے، مګر د غه ټول چا لونه وو، د دې شاته زهر پراته وو، دا هغه وخت چې پرنګیا نو کښې د وه ډلې وې چې یوه ډله ته یې «BACKWORD-POLICY» ویله او بلې ډلې ته یې «FORWORD-POLICY» ویله پدې وخت کښې هندي برطانیه د افغانستان سره په داسې بريد مطمینه نه وه نو دوئ د «SCIENTIFIC Frontier»

په تکل کښې و د « BACKWORD-policy »، والوخیالاو سوچ

ؤ، چې د هند ددفاع بهترینه لاره دغه ده چې اباسین

دهند N.W.F. وتاکي، داځکه چې دغه دافغانستان،

اوهندوستان ترمنځ قدرتي پوله ده، باید تر اباسین پورې

خاوره افغانستان ته ورکړی شي، اوبل ۱۸۵۷ کښې امیردوست محمد

خان کورنۍ ته نه موښو. دمشکلاتو نه ناجایزه فایده نه واخیسته

چې د دې سیاست پلویان لارنس پخپله او بل ملګرے۔

« JAMES OUTRAM »، وو، د دوی خیال ؤ چې د

هند دفاع دپاره دغه یوه « IDEAL » پوله اوبریده دے.

مګر د دې سیاست مخالفین چې دوی د مخ په وړاندې

سیاست پلویان وو، دوی یې مخالف وو، دوی غوښتل چې

افغانستان بیخي ختم کړي او آموسین د روس سره بریده

کړي، د دې سیاست پلویان ښاغلی « لیتن » «دیورنډ»،

بروس، او سنډیمن وو، او د دوی د ملګرو برطانوي پارلمنټ

کښې کمی نه وو. د لارنس سیاست هله ماتې وخوړه چې د

هند واسرای «لارډ لیتن» مقرر شو، په هغه وخت

کښې د برطانیه سټیټ کونسل یو غړے چې هنري راولسن،

نومیده، تجویز وړاندې کړو، (۱۸٦۸) کښې چې فارورډپالیسي

ته دې دوام ورکړے شي، موږ ته پکار دي چې کوټه

او دره بولان ونیسو امیر ته وظیفه مقرره کړو، کابل کښې

پرنګي نماینده کښېنه‌وواو روسانو په امو مقابله وکړو، ښاغلي لارنس ددې سیاست سخت مخالف و، دوی ویل چې څوک اول د افغان خاورې ته ورګډ شي یعنې حمله پرې وکړي، که هغه روسي وي یا موږ هغه د افغانانو دښمن دے،او هغه بل به یې دوست دے. نو موږ ولې افغانان په مفته د ځان دښمنان کړو، پرېږد دئ چې روسان حمله وکړي موږ به د هغوی امداد وکړو، نو پدې طریقه دافغانانو اعتبار ګټلی شو، مګر دلارنس دغه سیاست دلارډسالسبری اولارډلیټن د دې فیصلي په وجه ګډوډ شو، چې دوی پریکړه وکړه چې موږ به افغانستان کورنۍ چارو کښې لاس وهو، او د هند سرحد به نور هم افغانستان خواته ورمخ ته کوو، اوس دفارورډ پالیسۍ کښې درې خوښې وي « "CHOICES" یوه دا چې افغانستان دې بیخي ختم شي، امو سیند دې د هند پوله شي بل « CHOICE » دغه وُ چې هندوکش دې پوله شي، اودریم دغه وُ چې دډیورنډ لاین په ځاے دې کرښه تېره شي.

دغه خبرې داسې روانې وې، چې دې کښې امیر شیرعلي خان ۱۸٦۹ کښې د هند سفر وکړ او دانباله په مقام یې دوائسرائ هند « Lard May » سره وکتل، ده ورته وویل، چې غواړم د برطانوي هند حکومت سره نزدې کار وکړم، او

دروسانو خلاف ستاسو د مدد امیدواریم .

بل تجویز یې ورته دغه وړاندې کړ چې دوئ دې دده ځوان زوی شهزاده عبدالله جان د ولي عهد په توګه ومني، که څه هم حق د یعقوب خان وُ ، دایوب خان او یعقوب خان دې مور دلال پورې مهمنده وه، او د عبدالله جان مور کندهارې وه، نو دغه سبځه په امیر شیرعلي خان زوروره وه ، خپل زوی یې پر ولي عهد کړو، که څه هم شهزاده یعقوب خان ډېر مشروُ او حق یې وُ .

مګر دغه دواړه خبرې وانګرېز هند رد کړې امیر صاحب خپه بیرته خپل هیواد افغانستان ته راغی د پوځ په جوړولو یې پیل وکړ او تجدید طرزې تربیت شروع کړو او نغد بې تنخوا ګانې یې ورکولې، او د خانانو او سردارانو زور او رسوخ یې په چل ول ترکنټرول لاندې راوستو، په دې وخت کښې روسان هم په قراره ناست نه وو، دوئ په ۱۸۶۵ کښې تاشقند ، ورپسې خوجند ، سمرقند، فتح کړل، او روسي ولایت (صوبه) ترکستان یې جوړ کړو، چې د دې ګورنر جنرل بناغلی کاف من ( Kauf Man ) مقرر شو ، نو ددې سره امیر صاحب نور هم بې قراره شو مګر کاف من پدې وخت کښې امیر صاحب ته یو خط ولیکو، چې

تاسې هيڅ خطره مه محسوسوئ، په دې ليک باندې پرنګيان
خوشاله نه وو، که څه هم امير صاحب د کاف من ليک -
واسرای هند ته ليږلی ؤ، او دوئ يې ځينې خبر کړي
وو، په مارچ ۱۸۷٤ کښې د ليسرائلی د برطانيه وزير عظم
او سالسبری د هند سکرترئ شو، دوئ خيال وکړ چې مرکزي
ايشيا کښې اوس حالات خرابيږي، نو پکار دي، چې نوي افغاني
امير افغانستان کابل کښې يو انګريز سفير يا نماينده ومني، تر او سه
به برطانيه نمائندګي يو هندي مسلمان په کابل کښې کوله د دوئ
فکر وو، چې په داسې وختو کښې يو مسلمان د اعتبار وړ نه دی،
مګر د دې منصوبې خلاف نباغلي نارتهه بروک سخت احتجاج
اوکړو، او ورته يې وويل، چې ۱۸٦۹ کښې امير صاحب د روسانو
نه خطره په ګوته کړې وه، مګر برطانيه دغه خطره نه منله
او دوئ دامير صاحب سره د ګلو کار نه انکاري شول، اوس
تاسې وايئ چې د روس نه خطره ده، زما خيال او پوره
يقين دے، چې د يو انګريز سفير به په کابل کښې اوسيدل
امير صاحب هيڅ کله و نه مني، دغه کار د ۱۸۵۷ لوظنامې خلاف
د ے، سالسبری په دې زور ورکاوه، چې يو مشين ليږل پکار
دي، نباغلي نارتهه بروک واسرائ هند خپل احتجاج بيا بيا ورليږلې
کړو، او حکومت برطانيه يې خبره کړه چې د داسې عمل نتيجه به
دوهم افغاني جنګ وي، چې د هر دولت، عزت، او انساني تباهي

سبب به شي، د واسرائ هند احتجاج و نه منلے شو(۱۸۷٦ کښې يې استعفیٰ ورکړه).

نوې واسرائ د ( Forword Policy ) مشهور او معلوم طرفدار سړے و، لار د ليټن د هند واګد ارشو، نوې واسرائ يو رومان تيک، سنبه ليکوال او شاعر و، مګر په سياسي لحاظ پرېس مانده و، د حالاتو درک يې نه شو کولے، هم د ده په برکت دويم افغاني پرنګي جنګ جوړ شو، ده اول اميرصاحب ته خبر ورکړ چې ستاسي حضور ته به يو وفد حاضرېږي چې هغه به د ملکه ويکټوريا د هند د ملکي کيدو مراسم وړاندې کوي، امير صاحب ورته ځواب ورکړو چې افغانستان نه د هند برخه ده، او نه د ملکې، نو ددې مراسمو سره زما هيڅ تعلق نه شته، په دې ځواب باندې واسرائ هند خپه شو او اميرصاحب ته يې وليکل چې د غه نمونه ځوابونه د افغانستان په مفاد کښې نه دي، او تاسو د برطانيه د جائزو مفاداتو نه سرغړونه، اکتوبر ۱۸۷٦ کښې هندي مسلمان چې پرنګي په کابل کښې نمائنده و هند ته وغوښتل شو، چې واسرائ سره وګوري، ايجنټ چې واپس افغانستان ته تلو د غه نمونه هدايت ورته شوي وو:

The Agent was instructed to inform Sher Ali that the position of Afghanistan between Russia and Britain resembled that 'of an earthen pipkin between two iron pots; that if Sher Ali remained our friend, the military power of England could be spread around him as a ring of iron, and if he became our enemy, it could break him as a reed.

**ترجمه:** شیرعلي خبر کړه چې دافغانستان پو زیشن، (موقعیت) د برطانیه او روس په منځ کښې داسې دے لکه خاورین لوښے چې د دوو اوسپنو پلو په منځ کښې وي، که چیرې شیرعلي زموږ ره دوست شي، نو د برطانیه فوجي قوت به داسې تر بدل شي، لکه د فولادو دائره، او که چیرې زموږ دښمن شي نو داسې به مات شي لکه د نل وابنه) د ۱۸۷٦ په اخیر د مخ په وړاندې سیاست مشهور ملګرے او طرفدار رابرټ سنډیمن د بلوچانو د خان قلات سره یوه لوظنامه وکړه، چې خان پرنګیانو ته د شال (کوئټه) نیولو اجازه ورکړه، چې دغه کار د فوجي نقطه نظره د درے، بولان او بیا د قندهار د پاره خطرناک قدم و، نو قندهار کې خبره

وه، چې ددې اقدام سره کابل کښې امیر صاحب وارخطا شو دا ځکه چې اول افغاني پرنګي جنګ کښې پرنګیان شال (کوټه) کښې یو ځای شوي وو، او بیا د دره بولان په لار قندهار ته تللي وو.

جنوري ۱۸۷۷ کښې په پېښور کښې یو کانفرانس وشو، چې په دې کښې د افغانستان لخوا نمائنده سید نور محمد شاه صدراعظم وُ، او د برطانیه لخوا ( Leneis Pellt ) ګډون کړے وُ، د دې ورو خبرو اترو نه پس ناکام شو، سید نور محمد شاه قندهاري ددې نه انکار وکړو چې کابل کښې پرنګي ریذیډنټ ومنی او لے پرې چې دوئ د هندوستان د راجه ګانو او نوابانو حال لیدلے وُ، چې اول به . . . . وُ، او وروسته به هیواد قبضه کول وو، نو افغاني نمائنده صفا انکار ورته وکړو، ده ورته وویل: چې د برطانیه حکومت او خلک یې زورور دي، مګر افغانان هم په زور هیڅ نه مني دوئ آزاد خلک دي، او خپله آزادي، پت او عزت، دخوږ ژوند نه پرې ګران دي، دوئ به د خپلې آزادۍ، پت او عزت د پاره خپل ځانونه قرباني کړي، مګر سر به ټیټ نه کړي، ده زیاته کړه چې افغان او اس دوه په زیات آزاد دے، هیڅ یو امیر خپل تخت او تاج نه شي ساتلے، که د دوئ لږ هم شک پرې راشي، چې دوئ د خارجي قدرت نه هدایات اخلي، او بل دا چې موږ په تاسو هیڅ باور نه لرو، ستاسې دوستي داوبو کربنه ده، که تاسې

يوځل راګله شوئ، نو تاسي به زموږ خلاف غلط، غلط، رپوټونه ليکئ، چې يوه ورځ به زموږ په زيان تمام شي

دهند وائسرائ دومره پوند و، چې دامیرصاحب وسواس يې لږ هم نه لرې کولو، هغه وخت دکابل بازارو کښې دسراے چوکئ دخبرو په شان مشهوره وه چې د برطانيه (Duke Ederburgh) او روسی شهزادګۍ سره واده کوي، ددوئ تعلقات سره خوا ږه وي او دافغانستان په تقسیم یعنې ویش باندې سره راضي شوي دي، هدغه وجه وه چې امیرصاحب په پرنګيانو باندې شکمن و، او دده دربار دافواګانو او سازشونو مرکز جوړ شوے و، هدغه کانفرنس درواں کال ۱۸۷۷ کښې افغان وزیر عظم او نمایتده بناغلے سید نور محمد شاه قندهاري پیښور کښې بیمار شو، او هدلته په حق ورسيدو په خلکو کښې مشهوره شوه چې پرنګيانو زهر ورکړل، داځکه چې ددوئ په رشوت او رعب دب باندې دغه نراوبیدار افغان قندهارے نه شو سمولائ، نو زهر يې ورته ورکړل د دېموقعې نه وائسرائ هند فايده واخيسته، دپيښور ـ کانفرنس یې ختم اعلان کړو که څه هم يو بل افغاني نمایند په لار و چې، دمرحوم سید صاحب پرځائ دافغاني ملت نمایندګي وکړي. خو پرنګي بهانه اوپلمه يې لټوله،

دوی عوښتل چې افغاني امیر لرې کړي، مګر خط وکتابت کښې پرنګیان ډېر نرم وو، یو اړخ ته یې کانفرنس ختم اعلان کړو، او بل اړخ ته داسې لیکي:

{ چې ترڅو پورې تاسو یاستاسو امیر زموږ پرخاوره یا زموږ د دوستانو په خاوره تیرے ونه کړئ، هیڅ برطانوي سپاهي ته به اجازت ورنکړاے شي، چې افغانستان ته بغیر دبلنې نه ننوزي، شیرعلي خان یو آزاد او خپلواک امیر دے. برطانیه هیڅ حق نه لري چې خپلا میشن د ده داجازت نه بغیر په افغانستان ور ولیږي، او یا دا چې کوم بنه تعلقات دروسانو سره جوړوي، دغه د ده خپله خوښه ده چه همسایه دے. د ده انکار د برطانیه دمیشن نه څه ډېره غټه خبره نده.}

دغه د پرنګي ښکاره لیک و، او په پټه او عمل کښې د پښتنو کوهاټ او ډېره اسماعیل خان او ورسره دقبایلي علاقو پښتانه د افغانستان خلاف همایت کټلو هلې ځلې کولې، تر دې پورې چې دکشمیر دراجه سره یې هم رابطه جوړه کړه، او دافغانستان په خنمیدوا و ټکره کیدو باندې دوئ کار شروع کړے و، د افغانستان او برطانیه تعلقات دیوې بلې حا دثې په وجه نور هم خراب شول چې څه وخت ۱۸۷۶ کښې SER BiEN او MONTENGRiN د ترکې خلاف بالکان . یورپ کښې بغاوت وکړو، نو اپریل ۱۸۷۶ کښې روسانو

دباغي، سربین په حمایت کښې د ترکي خلاف د جنګ اعلان
وکړو، او روسي فوځیان د ترکې حدودو ته ورګډ شول.
او د استنبول اړخ ته یې پیشقدمې کوله په دې بانديې برطانیه
خپل مفادات په خطر کښې ولیدل، نو د روس خلاف یې
د ترکانو د مدد اعلان وکړ، او بحري جهازونه یې د دره
دانیال په لاره استنبول ته ولیږل، چې د روسي فوجیانو
مخه ونیسي.

په دې باندې روسان وار خطا شول، د ترکې سره
یې یو لوظنامه وکړه، دغه معاهده ۱۸۷۸ کښې د سان ستیفان
په نوم مشهوره شوه.

د ترکانو، ایرانیانو او افغانانو غټ تکلیف دغه وُ چې
د افغانانو زخمونه د پرنګیانو نه وو، او د ترکانو زخمونه
د روسانو نه وو، نو ترکې به همیشه د پرنګیانو دلالي کوله
د افغانانو جانونه به یې خبرې ته به یې غوږ نه نیو، داځکه
چې پرنګیانو د خپل مقصد د پاره ترکیه څو څو ځله د
روسانو نه بچ کړه، د دې مقصد دانه وُ چې ترکان د-
پرنګیانو خوښن وو، مګر سیاسي او فوجي تقاضه دغه وه
مګر ترکیانو به په دې کښې فرق نه شو کولے، نو د پرنګسي
ملاتړ به یې کولو، کومه لوبه چې روسانو د دوئ سره کوله
هغه لوبه پرنګیانو د افغانانو سره کوله، نو په دې وخت کښې

شيخ اسلام د ترکې تيار شوے وُ، چې د پرنګي پر وينه
پر امير شيرعلي خان باندې دکفر فتویٰ ولګوي .چې سيداحمد
خان، هندی ورسرو هم ملګرے وُ، چې دغه وروسته د سر
سيد احمد خان په نوم مشهور شو.ده روستو د سرکارعاو پرنګي
اسلام بنياد کېښود، او هندي مسلمانان دعلي ګړ او د يوبند
مکتب فکر کښې تقسيم شول. يوه ډله د پرنګي ملګري او دغه
بله ډله يې دښمنه وه، او ايرانيانو اول سرکښې دروسانو
نه وهل وخوړل، روستو د پرنګيانو نه، اول جنګ عظيم کښې
چې سياسي او فوجي تقاضا د ترکې خلاف جوړه شوه، بيا
برطانيه خپل دروس ناساتلے ترکي سلطنت ټکړې ټکړې،
کړو، او خپله خيټه کښې يې واچاوه، روسان د پرنګيانو
نه پديې خپه وو، چې دوئ د ترکې حمايت کړے وُ، د جرمني
چانسلر بيسمارک د دوئ په منځ کښې د دريم ګړي رول ولوباوه
او جون ۱۸۷۸ کښې جرمني ناستون برلن کښې د دوئ جرګه جوړه
کړه، چې روسان، پرنګيان، او ترکان پکښې حاضر وو، مګر اوس
روسانو د بالکان بدل په افغانستان کښې ځينې اخيستلو قسط وکړو.
چې هلته د برلن کانفرنس شروع شو، نو دلته په هغه ورځ
روسي جنرال ستوليټوف بغير د امير صاحب د بلنې نه کابل ته
روان شو، اميرصاحب د دې خبرې سره وارخطا شو، او سرحدي
افغاني ګورنرانو ته يې هدايت وکړو، چې روسي جنرال ستوليټوف

افغانستان ته د رته راګله نشي، بل اړخ ته به د پرنګي جاسوسانو
وائسرائ هند ته هر وخت رپوټونه لیږل چې امیرصاحب د
روسانو ملګری دے، امیرصاحب د روسي ترکستان روسي ګورنر
جنرال نباغلي کاف من ( KaufMan ) ته سخت احتجاج
وکړو، او ورته یې ولیکل چې جنرال ستولیتوف منع کړه،
کاف من ورته ځواب ورکړ چې جنرال ستولیتوف اوس نه
شي واپس کیدائ. که څه نقصان ورته پیښ شو زاری روس
به ددې ذمه وار تاسې ګڼي، دغه دامیر صاحب پوزشن ؤ
چې، یو اړخ ته وائسرائ هند په زور میشن او ریذیډنټ کابل
ته لیږلو، او بل اړخ بغیر دبلنې نه ستولیتوف روسے
راروان ؤ، او روسي ګورنر جنرال ورته غوړې هم کولې
نو که نقصان ورته ورسي نو امیرصاحب به یې ذمه وار وي.
مګر بیا هم امیر صاحب د مزار شریف ګورنر نباغلي شیردل
خان ته هدایت ورکړو، چې هغه یې را پریږده. اوس روسانو
امیرصاحب ته دیوې بلې بلا سره ورښکاره کړو، چې هغه
دده پراري وراره عبدالرحمن خان ؤ، چې بخارا کښې،
ورته روسانو ساتلے، خدائ دې داسې څوک مجبور نکړي
لکه دغه شپو ورځو کښې چې امیر شیرعلي خان ؤ، روسي
جنرال په زور کابل ته راځي، هم په دې وخت کښې دهند
وائسرائ دامیر صاحب نه دغه غوښتنه وکړه، چې اوس

پرطانوي میشن داسې ومانه لکه روسی، که څه هم امیرصاحب
واشرای هند ته خبر ورکړے ؤ، چې دغه روسي وفد زما
دمرضۍ نه بغیر راغلے دے، مګر پرنګیانو چرته منل، ددې
حالاتو ذمه وار امیرصاحب نه ؤ، بلکې پرنګیان او روسان ؤ
چې دوئ دبالکان او بحره روم غوبل او زورآزمایي کابل ته
راوړه، چې څه وخت دبرلن کانفرنس کښې روغه وشوه
او لوطنامه لاس لیک شوه، نو فورا جنرال ستولیتوف سره
دوفد کابل پرېښود وطن ته روان شو، ددې سره دبرطانیه
او روس، ترمنځ دجنګ خطره ورکه شوه، روس په هند
دحملې نه کولو لوظ کړے ؤ، مګر پرنګیانو صرف روس
دبهانې دپاره استعمالولو، خو اخیري او اصلي منشاء یې
افغانستان نیول ؤ، چې وړه وړه امارتو کښې یې تقسیم کړي
نو دوئ په امیرصاحب دغه تور ولګاوه، چې زمونږ دښمن
او دروسانو دوست یې، نو دوئ دهند او افغانستان ترمنځ
دیو ( seinTific FronTier ) خبره ګرمه کړه
او واشرائ هند خپل هندي مسلمان ایجنټ کابل ته ولیږلو،
چې امیرصاحب دمیشن دورتګ نه خبر کړي. پدې باندې
امیرصاحب سخت احتجاج وکړو، مګر پرنګیان دغسې وروان
شول، په اګست ۱۸۷۸ کښې امیرصاحب خوږ زوئ ولي‌عهد
عبدالله جان وفات شو، پرنګی دومره کلک زړے او ظالم

وُ، چې دامیرصاحب خفګان ته یې دسره ونه کتل نو په ۱٤ اګست ۱۸۷۸ واشرائۍ هند ( لارډ لیټن ) امیرصاحب ته ولیکل چې ( sirneville chamberlain ) کابل ته دروان دے، یو اهم خبر دروړ ي، خو امیر صاحب هیڅ ځواب ورنه کړو، دځو ورځو نه پس برطانوي میشن پیښور ته ورسید و، او فوجی بدرګچیان علي مسجد او خیبر درې ته ورسیدل، دعلي مسجد افغان فوج کماندر بناغلی فیض محمدخان د برطانوي دفوجي ډلې مشر ( Cavagnary ) ته په پاسته او په مضبوطه ژبه وویل: چې تاسې بغیر دامیرصاحب داجازت نه افغانستان ته نه شئ ګډیدا ئ. کاواګناری پیښور ته واپس شو او حکومت ته یې وویل چې افغانان د زور ژبه پیژني، پدې باندې لارډ لیټن چیغې جوړې کړې، چې برطانوي وفد افغانانو بې عزته کړو، او غیراخلاقی سلوک یې ورسره وکړو حقیقت کښې دغه ټول دروغ وو، افغانانو ورته په ډېر عزت سره ویلي وو، چې دامیرصاحب داجازت نه بغیر تاسو ته د دا خلیدو اجازت نه شو درکولے، پدې باندې ۲ نومبر ۱۸۷۸ کښې برطانوي، حکومت واشرائۍ ته هدایت ورکړو، چې امیرصاحب ته اخطار ( الټی میټم ) ورکړه، چې که امیرصاحب دا فغانستان بدبختي نه غواړي، نو فوراً دې معافي وغواړي، او بل دې برطانوي وفد کابل ته پرېږدي. که دغه نه وي نو امیرصاحب دې .

حالاتو ته تيار شي، او که چيرې ۲۰ نومبر ۱۸۷۸ پورې ځواب رانغئ نو ذمه وار به يې اميرصاحب وي ۳۰ نومبر باندې داميرصاحب لخوا ځواب راغئ چې ميشن دې راشي، مګردغه خو تشه بهانه وه، اوس پرنګي ورته بل شرط کېښود، چې اميرصاحب دې معافي هم وغواړي، اميرصاحب پوه وُ، چې زه که معافي غواړم نو دغه ډېره بې عزتي ده، نو دے غلے پاتې شو، هم ددې سره برطانيه خپل جنګي ښکاري هندي او انګلسي سپي په افغانستان ورخوشې کړل، په ۲۱ نومبر ۱۸۷۸ کښې د پرنګي فوجي لښکر دخيبر، بولان او کورمې دروپه لارې په افغانستان حمله آور شول .

دخيبر په لار او General (samuel Brawe )

جنرال (Robert) دکرمې په لار او جنرال

( sTeWart ) دبولان په لار حمله اور شول اميرشيرعلي خان دبرطانيه دفوج دزور ته وُ، خپل زوی يعقوب خان يې دکابل حکران مقررکړو، او پخپله دشمال اړخ مزار شريف ته لاړو، غوښتل يې چې روسانو ته د پرنګيانو خلاف شکايت وکړي ، ليکن روسانوخپل حدودته دداخليدو اجازت هم ورنکړو، دغه لوئ افغان ګډوډ او دوسواسونه ډکه زړه په ۲۱ فروري ـ ۱۸۷۹ کښې مزارشريف کښې وفات شو.

دوئ په اميريعقوب خان باندې ۲۶ مئ ۱۸۷۹ کښې ګندومک

نو ړه او بې عزته لوظنامه ورو تپله، د دې سره دافغانستان خارجه سیاست د پرنګیانو په لاس ورغئ، کابل، قندهار، هرات او نورو ځایو کښې د پرنګیانو پاخه نمائندګان ومنل شول کرمه پښین، سبي، بولان، میچنې، خیبر دغه ټول لې علاقې برطانوي حکومت ته ورکړے شوې، دغه ګندومک هغه غونډئ ؤ، چې اول افغاني پرنګي جنګ کښې دروسته اخیرې اتر انګریزي عسکر مړه شوي وو، نو د وئ دافغانانو نه د بدل په خاطر دغه غونډئ د دې لوظنامې دپاره وټاکه، د دې نه معلومیږي چې پرنګیان څومره په زړه کښې تور وو، چې څه وخت افغان ملت ته د دې تورې لوظنامې اصلي شکل معلوم شو نو ټول افغانستان کښې افغانان د یعقوب خان او پرنګیا نو خلاف، پورته شول. چې نتیجه داوه چې کاوګناري د پرنګي لوئ سفیر ووژلی شو، او د میکناټین په لار لاړ، او او یعقوب خان تخت باتلود، لاړو هند کښې مهاجر شو پرنګي فوج یوځل بیا په کابل کښې افغانستان کښې ګیر شو، افغانانو سخت قیام وکړو، مشهور افغاني جنرال محمد جان وردګ او ورسره مولا موشق عالم دوئ دواړو په کابل کښې دجنرال رابرټ په فوج باندې حملې شروع کړې، نو دقلعه قاضي سره نږدې سخت جنګ جوړ شو، افغاني ملیشه په پرنګي فوج ورګډ شوه، دوئ تار په تار کړل، افغانانو تورې په لاس، لاس۔

دوی د کابل حکمران کړ، دا ځکه چې بل څوک نه ورته ملاویدو چې دغه دغه لکڅ شکور یې په سر اخیستی او سمبال کړے وے. او دوی بل ژمي ته تیار نه وو، چې پاتې شي، او امیرعبدالرحمن ځکه تیار شو، چې دامیر شیرعلي خان زوی شهزاده ایوب خان هرات او فراه کښې لګیاو، د پرنګیانو خلاف یې تیارے کاوه، او ۲۷ جولای ۱۸۸۰ کښې یې د میوند په مقام یې پرنګیانو ته ماتې ورکړه، او دلته په کابل کښې ۲۲ جولای ۱۸۸۰ کښې دربار ولګیدو او د امیر عبدالرحمن د حکمرانۍ مراسم پکښې وشول، او (sir Donald stewart) ورته خپل خطاب کښې داسې وویل: «نن زما له پاره د عزت ځای دے چې علیٰ جاه ته سترې مشې کوم، زه عالی جاه ته خپل زوړ د پلار او نیکه دوخت تاج او پایتخت په لاس کیدو او واپس کیدو درته، مبارکي وایم، اُمید لرم چې تاسې به د دې وخته پورې سپږ سنتو مانه نه وی.»

امیرصاحب ځواب کښې وویل: «د دې نه مخکې چې د ستاسو تشکر وکړم، چې تاسو زما د پاره کړیا دي، نو جنرال صاحب زه خواهش لرم، د ستاسو داوږد ژوند د پاره بنه صحت او د خوشالۍ ژوند، د ستاسو عزتدار پروفیشن کښې درته بریٰ غواړم، زما څوارلس کلنې جلا وطنۍ، او زما بیرته راتګ خوشالي او خاصکر خپل کور، تاج په لاس کول، د ستاسو سوه

دخبرې نه معلومېږي چې اوس اوس زما اوستاسو په منځ کښې شوې وي، چې زه څومره خوشال یم، خو زه د لیکلو نه علاوه په ژباني توګه د ستاسو او د ستاسو ستاسې مشاورو شکرګذار یم، د دوی ډېره مننه کوم. خاصکر هغه خطوکتابت چې زمونږ ترمنځ شوې دي، ډېر د دوستۍ او عزت وړ دي، سرډونلډ ورته بیا وویل: چې زه ډېر ویاړم، چې یو شهزاده مې په تخت کښېناوه، او زه په آخیر کښې د امیر صاحب دپاره د ډونلډ او کامیاب حکومت هیله لرم پس د دې سره د دویم افغاني پرنګي جنګ خلاص شو، لس (۱۰) منته پس جنرال خپل فوج ته د هند اړخ ته د کوچ حکم ورکړو، مګر امیر-صاحب ته یې د غم شکوه ورپه ساکړو اوس د ےپوره شه او د ده کار. او پرنګیانو افغاني تالاب ته اچولے وُ، اوس د ده کار وُ، چې لوب شي او یا لمبه زده کړي، او ډونلډے پاتې شي د دې حل پرنګیانو قسمت سنه وُ یو تکړه ظالم او بې رحمه سیاستدان په لاس ورغلو، د شاه شجاع په څیر ثابت نه شو، امیر صاحب ډېر ډر افغاني بزکشۍ کښې یو وتلے لوبغاړے ثابت شو، مګر د دې مطلب دغه بالکل نه وُ، چې افغانستان کښې هر څه سم دي، د ده تربور شهزاده ایوب خان ورته هرات، فراه کښې ناست وُ او د ده سره یې په تخت جنګ وُ.

# دمیوند جنګ یا غزا او شهزاده ایوب خان غازي ۱۸۸۰ع

چې څه وخت امیر عبدالرحمن کابل کښې د پرنګي په ملاتړ حکمران شو، نو هغه وخت په افغانستان کښې ګړ بړ ؤ. د یو مرکز لاندې نه ؤ، په اول سر کښې د پرنګیانو سیاست او پالیسي دغه وه چې دوی کابل، غزني، او ننګرهار، او پکتیا علاقې عبدالرحمن خان ته دورکولو خیال ؤ، هرات یې جدا ساتلو، قندهار ځان ته، هم دغسې بلخ مزار شریف او کندوز علاقې، او دوئ غوښتل چې افغاني خاوره په وړه، وړه امارتونو تقسیم کړي، مګر دغه منصوبې هغه وخت شنډې شوې، چې څه وخت افغاني اولس د دوي خلاف سخت قیام وکړ، او مشهور افغان جنرال محمدجان خان وردګ او وړه ملا موشفق عالم په مشرکړه افغاني مجاهدینو د جنرال رابرټ فوج ته ماتې پسې ماتې ورکړه، او د جنرال رابرټ تجربه کار فوځ تیښتې ته اړ شو، نو دوئ ته د مدد د پاره پرنګي فوج د جلال اباد او قندهار نه راغئ، دوئ یې د مجاهدینو نه وژغورل، نو اوس پرنګیان د ځان په غم شول، د افغانستان نه ځکولو ته یې پوره، پوره

لاس نه اخیستو، که څه هم دوئ ډېر وار خطاوو، بغیر دشیطانت
نه یې بل کار نه وُ، دوئ قندهار شیرعلي خان« دغه بل شیرعلي خان
وُ چې د بارکزو مشر وُ « ورکړو، دوئ د هرات او سیستان ایران ته
دورکولو وعده وکړه، مگر یو شرط چې ایران به د غازي ایوب خان
خلاف جنگیږي، مگر ایران انکاري شو، داځکه چې هرات او-
سیستان دشهزاده ایوب خان په قبضه کښې وُ، نو دده نه اخیستل
څه اسان کار نه وُ، او بل داچې مغربي افغاني خاوره کښې د
شهزاده ایوب خان پلویان زورور وُ، چې څه وخت دے
دپلار دمرگ نه خبر شو، نو ده زر په هرات قبضه وکړه،
او بیا وروسته د خپل ورور نه ډېر خپه وُ، چې ډکندمک
نوم لوظنامه یې لاس لیک کړې وه، نو ده غوښتل چې اول
دپرنگیانو ایجنټ شیرعلي خان بارکزئ دقندهار نه وشړي، او بیا،
امیرعبدالرحمٰن دکابل نه.

چې څه وخت افغاني مجاهدین خبر شول، چې شهزاده ایوب خان
دمغرب داړخه راروان دے، نو دوئ ټول هرات ته ځانونه
ورسول چې دپرنگیانو او ددوئ ایجینټ سردارانو خلاف یو
محاذ جوړ کړي، سردار ایوب خان اول سرکښې پرنگیانو ته اطلاع
ورکړه، چې دافغانستان دتخت واکدار او حقدار زه یم، ولې پدې
چې دغه زما دپلار تخت وُ، مگر دپرنگیانو داړخه څه ځواب
رانغلو، هرات کښې ټول ضد پرنگي مشران راجمع شول، مگر ددې

سره مرضونه هم راپیدا شول، چې هغه د دوئ په منځ کښې، حسد ؤ چې پرنګي ور ته لمن وهله، چې دایوب خان طاقت شنډ کړي، دا حسد دومره زیات شو چې په هرات کښې د هراتیانو او کابلیانو سردارانو تر منځ جنګ هم جوړ شو، شهزاده ایوب خان زرقابو پرې وساتله، مګر په قندهار باندې حمله وختلو شوه، د سردار صاحب پروپګنډه ډېره اثر ناکه وه، په افغانانو یې ډېره سینه اغېزه کوله چې دے به ډېر زر پرنګیان او د هغوئ دلالان د افغاني خاورې نه وشړي، افغاني مجاهدین هم دغسې خبرو اوریدو ته انتظار وو، پرنګیانو د دې پروپګنډې سبکاره ځواب نه ورکولو مګر، په پټه لګیا وو، د خپلو جاسوسانو په ذریعه یې دایوب خان په سردارانو کښې د بې اتفاقۍ او نفرت تخم کرلو، غازي ایوب خان ډېر انتظار ونه کړ، ۹ جون ۱۸۸۰ کښې د هرات نه راروان شو، د دوئ فوج کښې با ۴۰۰۰ شلور زره باقاعده عسکر وو، ۱۰۰۰ زر کسان سواره وو، ۳۰ دیرش ورسره توپې وې او ۳۰۰۰ درې زره ورسره مجاهدین وُو، د سردار صاحب ټوله وسلحه مقامي افغاني جوړه وه، یورپي اسلحه ورسره نه وه، د روانیدو نه مخکښې سردار صاحب دغه فرمان جاري کړ؛

« زما د ربښتینې دین عسکرو او مجاهدینو او افغانانو! نن مونږه د خپلو ښارو د آزادولو له پاره وځو، چې زمونږ د ازلي دښمن پرنګي په لاس کښې دي، انشاء الله مونږ به دوئ

دخپلې خوږې او پتمنې خاورې نه وشړو، موږ په حقه یوو موږ د خپل کور، وطن او دین موبېن له پاره جنګېږو، راځئ چې روانېږو په دې اراده باندې، چې یا به بریالي شو یا به شهیدان »۰

ددې فرمان سره ټول افغانستان سور اور شو، پرنګیانو اول د قندهار ګورنر شیرعلي خان بارکزي ته، حکم ورکړ چې دایوب خان مقابلې ته ور شه او تیار شه، دایوب خان اویعقوب خان مور مومنده وه، او د شهزاده عبدالله جان مور بارکزۍ وه، او د شیرعلي خان بارکزي لور وه، چې دده په کمک امیرشیرعلي خان دمومندې زامن یعقوب خان او ایوب خان دتخت نه محروم کړي وو، اوس دغه د عبدالله جان شهزاده نیکه شیرعلي خان بارکزے د قندهار واکدار ؤ، نو دایوب خان او شیرعلي خان بدي اوږده وه، او پرنګیانو هم شعوري دغه کار کړے ؤ، نو شیر علي خان بارکزے دایوب خان خلاف دپرنګي ترکمځ لاندے شو .

نوټ : امیر شیرعلي خان دشیرعلي خان بارکزي زوم ؤ .

شیرعلي خان بارکزي تر پرنګیانو دایوخان خلاف توره ورتړ نزملاء کړه، او دایوب خان خلاف یې ولېږلو، دے ۸۰-انیا میله د قندهار نه لرې ګرشک ته لاړو، چې دایوب خان مخه ونیسي، خو دایوب خان په نږدې کېدو په وجه بارکزے صاحب

بې آرامه شو، نو ده زړ پرنګي جنرال پرايم روس «PRIMROS»
ته چې د قندهار فوجي مشر و، خبر ورکړ چې کمک ترڅانه
را ورسوي، نو پرنګي جنرال سمدستي دهند نه فوجي امداد
خواست وکړو، چې څه وخت ایوب خان تر دخپل دښمن
دغه کمزوري معلومه شوه، نو سمدستي بې ټګ ګړ ند سره
او په ټول هیواد کښې دسردار ایوب خان خبر خور شو، او په
قندهار کښې پرنګیان وارخطا شول، په ٥ پنځم جولائ ١٨٨٠ کښې
خبر راغی چې ایوب خان فراه تر ٢٣٠ میله دقندهار نه لرې
ده را ورسیدو، او دګورنر شیرعلي خان بارکزي فوج دهلمند
د سیند په بله غاړه ورته په انتظار کښې و، پلا ې وخت کښې دپرنګي
مدد هم را ورسیدو، نو د بارکزي نه فوج بغاوت وکړو، او
سردار ایوب خان ته واوړیدو، ولې قندهار یې پر یو ګس
پرېښود. پرنګیانو کیمپ ته په منډه لاړو، دا وخت دټیلګراف زمانه
وه، نو د پرنګیانو دپاره خبر لیږل دمنتهونو خبره وه، چې دغه
سهولیت دایوب خان په برخه نه و، دوئ به د روایتي طریقې سره کار
کولو، نو پرنګي جنرال دایوب خان متعلق واشراع هند شمله ته
ټیلګراف وکړو چې متن یې داسې و: ما
«حالات زاړه په زاړه دي، هغه مسافران چې دایوب خان
دکیمپ سره تیرېږي وايي چې حالات ښه نه دي کیدائ شي چې د
دایوب خان فوج په ټولیو کښې تقسیم شي په دې نه ځکښې چې

دوئ هلمند ته راسي، جنرال " BUYYOWS " د دوئ دمقابلې دپاره چمتو دے، فوج صحتمند او پیاوړې حوصلې لري».
د دې خبر نه زر وروسته چې ایوب خان دفوج سره هلمند ته راورسیدو، نو سانګ بور چې تقریباً ۱۲ مله دبرطانیه دکیمپ نه لري وو خپل فوجي کیمپ ولګاوه.
۲۲ جولائ ۱۸۸۰ کښې جنرال « pYimYase » ته دهند حکومت نه دغه نمونه ټیلګراف ملو شو مشن « تا سو ته مکمله آزادي چې تاسو څه وخت وغواړئ، چې په ایوب خان باندې حمله وکړئ، بشرطِ چې تاسو مضبوط یئ، حکومت هند او برطانیه غواړي او په سیاسي توګه د پېر اهم دي چې ایوب خان غزني ته د رنه رانشي، او په هر ممکنه طریقه دغه کارکول پکار دي »
۲۳ جولائ ۱۸۸۰ کښې کرنل جان John جنرال st pYimYase خبر کړو، ایوب خان د هلمند رسیند ته راپورې وتو او د« حیدرآباد» مقام»
۲۶ جولائ ۱۸۸۰ کښې ایوب خان په میوند وروان شو، چې د پرنګي دکیمپ خشک نا خود نه ۱۰ لس میله لرې وُ، اوس د برطانیه دپاره دوې لارې وې، یو دا چې ایوب خانه پرېږدي چې غزني خواته لاړ شي، او یا د میوند په مقام ورسره مقابله وکړي، چونکه دوئ ته هدایت وُ چې غزني ته په یې نه پرېږدي، نو دوئ د مقابلې فیصله وکړه، نو پرنګي فوج دجنرال « BUYYOWS » تر کماندلاندې د ایوب خان مخه بنده کړه، داځکه چې دوئ سره دا ورو چې که

ایوب خان غزني ته لاړو، نو ټول غلجیان په وړسره ملګري شي،
اوس دایوب خان دپاره هم دوه لارې وې، یو دا چې مقابله وکړي
او یا دا چې غلزیو قلات ته پټه لاړ شي، مګر ټګ یې مشکل و بالکل.
په پاک میدان راګیرشو، چې هیڅ قدرتي دفاع یې نه درلوده یعنې
غر یا ځنګل. سحر په لښو بجو په ۲۷ جولاۍ ۱۸۸۰ کښې سردار صاحب
جاسوسانو خبر کړو، چې پرنګي په کاریز باندې قبضه وکړه،
چې داوړې پلې سخته ګرمه کښې ګڼه یواځینی داوبو ذریعه وه.
هدغه وجه وه چې ایوب خان دخپل فوج یوې برخې ته حکم
ورکړو چې کاریز بیرته قبضه کړي، ددې سره پرنګي حمله
پیل کړه، داول نه سره دسردار ایوب خان دسورے چهترے
ولګیده، بس څه وو، افغانانو یا خیر یا الله، الله اکبر دنعرو
سره حمله وکړه. مګر دافغان دآسلحې او دبرطانوي آسلحې
د ځمکې او آسمان فرق و، پرنګي د میوند په میدان قیامت جوړ
کړ. افغانان وار خطا شول، او ۴۰۰ څلور زره هراتي فوج هم
بې خونده شو مګر په دې وخت کښې افغاني افسرانو په خپلو ټوپکو
خنجرونه وخیژول لاس په لاس جنګ یې شروع کړو، او په پرنګي
فوج ورګډ شول، دوئ د تعریف وړ تیګوالی وښودو، او
په ډېره ښه طریقه یې جنګ شروع کړو، بلې غاړې ته افغاني
سورو د پرنګي پیدل فوج باندې دائره را تینګه کړه، د دوئ
د ټوپکو ګولیه دوئ ته رسیدې، سخت جنګ روان شو، افغاني -

مجاهدینو د زمرو په شان غرمبا شروع کړه، سره غرمه یې بالکل توره شپه کړه، هر خواته د باړدو لوګي او پرویتو ککړ خپور وو، او لږ وخت کښې د افغانانو لاس پر پرنګیانو بر شو، میدان د پرنګیانو په مړیو ډک شو، او ففانی جنرال شاغلی تاج محمد خان درلمه غونډې ورپسې وُ، دده کوښښ وُ چې برطانوي فوج ته د جنرال « Nuttal » کمک ایسار او قطع کړي، ددې سره که څه هم افغاني مجاهدینو عسکرو د شهادت جامونه نوش کړل، مګر اوس د غازیانو حوصلې لوړې وې، او دوی خطرناک حملو او بریدونو پرنګیان ګډوډ کړي وو، په علاج یې نه پوهیدل، د ایوب خان توپ چیان دومره تکړه ثابت شول، چې دوی د برطانیه جدیده توپ خانه غلې کړه، ددې سره افغانانو د پرنګیانو پر توپونو بیولو باندې پیل وکړ، دوی مدد افغاني سورو کولو، چې دوی بر ناڅاپه حملې کولې، او پرنګیان یې وارخطا کړي وو، ددې یو ګهنټو سخت او خونړیزی جنګ نه پس اوس، افغاني توپې لوړې هم ګرندې شوې وې، د برتش رفوج حوصلې پر ماتیدو شوې، پنجابیانو سیکهانو او هندوستانیانو عسکرو په منډه پیل وکړه، د فوج ډسپلین ګډوډ شو، په دې وخت کښې ځینې سرول افغاني مجاهدینو د پرنګي ګوداموته لوټ کړل، چې غلي، کچري او نور څناور پکښې وو، د غرمې تر دوو بجو پورې افغاني توپ خانې خپل پوزیشن نور هم ټینګ کړ، اوس افغانانو د اخیري ګزار په پوزیشن،

کښې وو، په اول سر کښې توپخانې خپله بمباري تېزه اوګړندۍ کړه دبلې غاړې لاس پړلاس جنګ جوړ شو، دبښې اړخ نه غازیانو د سیلۍ په څېر پسې راغلل، دپرنګیانو نه یې د ټوپکو او توپونو نیولو او وړلو باندې پیل وکړ، پدې کښې دګهېځ اړخ نه د جیکوب رائفل پلا ټنې حوصلې ماتې شوې او تیښتې ته تیار شول، داځکه چې دافغانې غازیانو بریدونه دومره تېز شول چې دوئ نور ورته ټینګ نه شول، د دوئ قطارونه اوکرښې ماتې شوې، په ځائ ددې چې افسرانو ورته دوسپلین چیغې وهلې وای، د د بمبې دفوج هم دغه حال شو، ٦٦ نمبرپلټنه هم ګډه وډه شوه، او محمود اباد کلي ته وتښتیدل. جنرال « BUXXOWS » کوښښ کاوه چې، دوئ په چل ول واپس کړي مګر دزانه لښ دلې څناورو بد حال ؤ، او هر طرف ته ګډوډۍ وه، د څناورو او انسانانو عجیبه کاروان ؤ، چې چا ژړل، چا چیغې وهلې، او څناور په ناړه شروع کړې وه، سخته ګرمي وه، ګړدونه وو، یو ورکوټی قیامت په پرنګیانو جوړ شوې ؤ، ورو سته ورپسې غازیان ؤو، ددواړو اړخه یې حملې کولې، بد حال ؤ، اسپې، اسان، خره، کچرې، او عسکر ګډوډ روان وو، ځینې اسپې زخمي شوې وې او ځینو خرو دتګ نه انکار کړے ؤ، افغاني غازیانو د منګا نو ځمونږ ددوئ ښکار کولو، کلیوال خلک هم ګډیاوو، د پرنګي قتل عام یې کولو، ددې فوج

نه صرف لفټننټ مالکیس او حیثې نور قید یان شول، د قندهار
والي یعنې ګورنر شیرعلي خان بارکزی او د ده سیاسي پرنګې مشاور
« Advicer » کرنل « st john » د تباهی Disaster نه ځانونه ځکني
پېنې سپکې کړې وې تښتیدلي وو. خو ددښمن پیاوړتو ب،
او بهادرې هیرول پکار نه دي، د برطانیه پیدل فوج ٦٦ نمبر
فوج سپاهیان تراخرې سلګه پورې ټول لپرنه وجنګیدل،
او مړه شول، خو منلو یې ونکړه دوی د برطانیه عزت
وساتلو، دوی په دائره جوړوله، مات فوج به یې دافغانانو
نه بچ کولو، اخیري شپیږ کښې دوی یوولس کسان پاتې شول
او د Khig په یو باغ کښې افغانانو راګیرکړل، نو دوی په ټوپکو
چړې او خیږ ولے. لاس په لاس جنګ یې شروع کړو، مګر
افغانانو دوېر زر بیست و نابود کړل، او هندي عسکر وخودېر
بد حال و، افغانانو دوی تلاش دوېر لرې پورې ونکړ و مال
غنیمت باندې اخته شول. کښې د دوی په چرګه پاتې نه وه، ټول
فوجي او سولي سامان یې دافغانانو په لاس ورغی، کم عسکر چې
په منډه منډه قندهار ته رسیدلي وو، د مړو برابر وو، بدحال
یې و، چې روستو دوېر پکښې نفسیاتي بیماران شول، چې دا خبر
قندهار ته راورسیدو، خلکو کښې شور جوړ شو، او دوېرو د
ښار نه په تښتیدو لاس پورې کړو، چې لندن ته اول ټیلیګرام
ورسیدو، چې جنرال « Burrows » فوج په میوند کښې

تباه او ذليل، شو، نو هند او برطانيه باندې دشرم او خفګان،
نو ځکه خوړه شوه. ميوند جنګ افغاني تاريخ کښې ډېره لويه
پېښه ده، د دې سره د مغرور او متکبر پرنګي د فوج غرور
مات شو، او ذليله شو، د برطانيه فوجي تاريخ کښې د غر بغير اګر
مګر نه ماتې وه، او دوی په خپله مني چې د غر لويه تباهي
وه، د دې سره د پرنګي د افغانستان د خوراک او تو تې، تو تې کولو
منصوبې د غازي فاتح ميوند سردار ايوب خان په برکت د خاورې
سره ګډې شوې، د افغانانو د خوشحالۍ نه ځای نه کيده، چې څه
وخت د غه خبره کوزه پښتونخوا ته راورسيده، نو ناڅاپې
پښتنو د پرنګيانو په پوستونو باندې حملې شروع کړې، او-
د غسې د ميوند جنګ يو ځل بيا نړۍ ته د پښتو د غيرت ښکاره
کړو، د ۱۸٤۲ تباهي يې بيا پرنګي ته وريادده کړه.

د دې جنګ متعلق دوه قيصې ډېرې مشهورې دي چې
يوه قيصه د پيغلې ملالۍ ده، چې دې پښتنو زلمو ته غيرت
ورکړو، چې د تېښتې پر ځای په پرنګيانو باندې راګوز شول
او د ميوند ماتې يې په برياليتوب بدله کړه، د غه د پيغلې ملالۍ،
برکت و. چې د هغې د خولې مشهورې لنډۍ يې نن هم د پښتنو
د پاره د وياړ ورده لکه چې وايي:

«خال به د يار د وينو کښېږدم »
« چې شينکي باغ کښې د ګلاب پکل وشرموينه »

«که په میوند کښې شهید نه شوې
خدای ګوولا لیه بې ننګۍ ته دې ساتمه»
«ملالۍ»

او بله قیصه دیوې پښتنې مور متعلق مشهوره ده چې وایي:
د غه پښتنه میدان جنګ ته راغله ، مړي او شهیدان یې کاته چې
یو شهید یې راپوره ترکړ ، او کلک یې بښکل کړو ، نو بل یې
راپورته کړو لاړ ي یې په تو کړې ، چا ورځینې تپوس وکړه
چې دا خو دواړه شهیدان دي ، نو دغه بیل بیل سلوک دې ولې وکړ؟
وایي چې هغې ځواب ورکړو ، چې دغه اول مې زوی وُ په
سینه یې ګولۍ خوړلې وه ، نو ځکه مې ښکل کړو ، او دغه بل
مې خاوند وُ په شا یې ګولۍ خوړلې وه ، نو ځکه مې لاړې په
تو کړې ، .

د میوند د برې نه پس ایوب خان په قندهار ورغۍ ، دلته
پرنګي فوج محاصره شو ، د برطانیه حکومت وائسرای هند
ته سخت هدایت وکړل ، چې په هر صورت چې وي د برطانیه
فوجي او سیاسي وقار په ځای کړه ، که داسې ونه شي ، نو
ددې شکست اثر به په لاندې پښتنو او په ټول هند باندې پریوزي
او یو عام یا خون خطره ده ، لکه د ۱۸٤۲ د پېښې نه جوړه شوې وه ،
او ۱۸۵۷ یا خون چې بیا ګردان نه شي ، چونکه دویم افغاني پرنګي جنګ
په وجه لار دلیټن سیاست دې عزت نه ذریعه ګرځیدلی وُ .

نو د ده چهتي وشوه، بې رونکاره شو، ددې پرځای حکومت برطانيه لارډ ريپن « Ripon » وائسرای هند مقرر کړو او سخت هدايت ورته وشول، چې دغه هدايت به په ځای کوي، نو ده چې لاتر اوسه پوره کابل کښې « جنرال رابرټ ته عزيمت ورکړو، چې دهند په ځای قندهارته لاړ شه او دايوب خان دلاسه دقندهار محاصره ماته کړه، او پرنګيان دقتل عام ته بچ کړه، د بل اړخ نه د جنرال رابرټ فوج دکابل نه قندهارته روان شو، او بلې غاړې ته دکوټې او دره بولان په لاره دبمبۍ نه تازه فوج قندهارته کوچ وکړ، اوس جنرال رابرټ دغزني غلجو را ايسار کړو، قندهارته يې نه پرېښودو، مګر اميرعبدالرحمن د غلجيانو مشرانو کښې ځينو په رشوت راضي کړل، ددې په ذريعه دجنرال رابرټ لس « ۱۰۰۰۰ » زره فوج بغير دجنګ نه قندهارته ورسيدو، هم په دې وخت کښې دهند نه فوج راغلو، جنرال رابرټ دقندهار سره نن دې کلي خالي کړل، او دايوب خان فاتح ميوند خلاف يې دجنګ او سازش تيارے شروع کړو، جنرال رابرټ په قندهار کښې کيږ شوے فوج متعلق ليکي:

" I confess" writes Robert, " to be greatly surprised, not to use a stronger impression, at the demoralized condition of the greater part of the garrison; there were notable exceptions, but the general bearing of the troops reminded me of the people of Agra in 1857.They seemed to consider themselves hopelessly defeated, and were utterly despondent; they never been hoisted the Union Jack, until the reliving force was close at hand."

د دې سره د کوئټې پولیټکل ایجنټ د خان قلات سره رابطه جوړه کړه، خان ورته د هرقسم مدد یقین دهاني ورکړه، چې وروسته ورته ملکه ویکټوریا . د شکریئ خط لیکلی ؤ.

ایوب خان چې د جنرال رابرټ د فوځ نه خبر شو نو خپل مرکز یې ولي بابا کړو، اوس پرنګیانو او دامیرعبدالرحمن جاسوسانو د غازي په فوج کښې ځانونه ورګډ کړي وو، دوئ دپرشوتونو او سازشونو په زور د ایوب خان لښکر کښې بې آرامي خوره کړه، دولي بابا جګړه کښې غازي ایوب خان دپرنګي او امیر صاحب دګډ فوج نه ماتې وخوړه، دغه فوجي ماتې نه وه، بلکې درشوت، چالاکیو او سازشونو په زور، وه، دولي بابا ماتې نه پس غازي ایوب خان بیرته هرات ته لاړو، او کندهار پرنګیانو دشیرعلي خان پر ځائ امیر ته حواله کړو، او رابرټ سره د فوج کوئټې ته لاړو، او ۱۰ ستمبر ۱۸۸۰ کښې وانسرائ هند امیر صاحب ته دولي بابا دفتح مبارکي ورکړه، او ورته یې لیکلي وو: چې ایوب خان هرات ته لاړو، په قندهار کښې امیرعبدالرحمن خان خپل تربور، سردار هاشم خان دعظیم خان زوئ مقرر کړو.
چې ۲۱ اپریل ۱۸۸۱ کښې پرنګیانو افغاني خاوره خوشې کړه، نو غازي یوځل بیا جون ۱۸۸۱ کښې دقندهار دبیرته اخیستو په عرض روان شو، که څه هم د ده سره خزانه وه، فوج یې هم ډیر زیات نه وو، اوس پرنګیان نه وو، امیر صاحب یواځې پاتې ؤ، او له سره

کبنې غازي ایوب خان مشهوره کړه، چې دے د قندهار سره غرض
نه لري، د پشین نه پرنګیانه شړي، خو امیر عبدالرحمن دومره ماشوم
نه وه د غازي ارادې ورمعلومې وې، غازي صاحب چې ګرشک ته
راورسیدو، نو امیر صاحب غلام حیدر خان توخي ته دده دمقابلې
حکم ورکړو، دکاریز عطاسره د توخي فوجیانو را ایسار کړو، دلته
د توخي د فوج نه څلور رجمنټ بغاوت وکړو، د غازي ایوب خان سره
شاملې شوې، توخي شکست وخوړو، غازي قندهار بیرته قبضه کړو،
چې دغه خبر کابل ته ورسیدو، نو امیر عبدالرحمن پخپله ۱۲۰۰۰ دولس زره
فوج واخیسته او دغازي مقابلې دپاره قندهار ته لاړو، غزني کبنې،
ورسره علجیان هم شامل شول، دغې بزکشۍ ته دبرطانیه حکومت
دېر په بې آرامۍ سره انتظار کولو، ددوئ دایجنټ دپاره سخت وخت
وه، چې یوخوا ته یې غازي فاتح میوند وه او هغې بلې خوا ته دپرنګیانو
دلالي وه، مولوي صاحبانو هم پدې وخت امیر عبدالرحمن خان باندې
دکافر فتوی ورکړې وه، هم پدې حالاتو کبنې په ۲۲ ستمبر ۱۸۸۱
کبنې د قندهار د دیوال نه ورچاپیره جګړه شروع شوه، اول سرکبنې
داسې معلومیده چې امیر صاحب به ماتې خوري، پداسې سخت
وخت کبنې هغه څلور رجمنټ چې د توخي نه غازي ایوب خان ته
نښتیدلي وې، دوئ اوس دغازي نه بغاوت وکړو اودامیر صاحب
سره یو ځائ شوې، دوئ د ایوب په توپونو باندې قبضه وکړه
دشاته نه یې دغازي په فوج ګوله باري شروع کړه، ددې نه

صفا معلومیږي، چې دوئ دتوخي نه په یو پلان بغاوت کړے و،
او د امیرصاحب لاس ورسره و، ددې نه صفا درکه لګي چې امیر
عبدالرحمن خان څومره چالاک ،مکرجن، او مکار سړے و، او س
دغازي فوج مینځ کښې راګیرشو، دوئ ماتې وخوړه، هر
څه حیثي پاتې شول، دوئ تش لاس هرات ته روان شول مګر
دا ځل هرات هم سوړ اور شو، هغه داسې چې امیرعبدالرحمن
دکابل نه د روانیدو په وخت، جنرال عبدالقدوس خان دتاشقرغان
والي "ګورنر" ته یې حکم ورکړے و، چې هرات باندې د
حملې دپاره دې روان شي، او ده خپل ځان سره ۲۰۰۰ شل زره
لښکر تیار کړو، چې پکښې ازبک، هزاره او تاتي مینې هزاره، او
فیروز کوهي و، اکتوبر کښې هرات قبضه کړو، ایوب خان غازي
لا په لاره و، چې دهرات دقبضې نه خبرشو، نو دغه نرپیاوړي
غیرتي افغان چې ترنن ورځې پورې زمونږه فخر دے، د خپل
خوږ وطن نه دهمیشه دپاره لاړو، ایوب خان دخپلو افسرانو سره
ایران ته لاړو، هلته ایراني حکومت دپرنګي په وینا یو قسم نظر
بند کړو، چې روس ته لاړ نه شي. بیا و روستو دپرنګیانو سیاست
کامیاب شو، دغازي او فاتح میوند او دبرطانیه حکومت ترمینځ
یوه لوظنامه وشوه، چې دهغې مطابق غازي هند کښې داوسیدو
مطالبه منظوره کړه، او دراتلونکي وخت دپاره دعبدالرحمن خان
په سر چاپېره پرنګیانو حصار نده کړه، افغانستان وار په وار امیر

عبدالرحمٰن خان تر خپل واک لاندې راوستو غازي ايوب خان څه وخته پورې ايران کښې ؤ، مګر ۱۸۸۵ کښې د پنج دښې د واقع نه پس برطانيه ډېره وارخطا شوه، داځکه چې روسانو ۱۸۸۵ کښې دغه افغاني خاوره قبضه کړه، نو د برطانيه والو سوچ ډار پيدا شو چې غازي چيرې روسان را ته په لاس کښې نه کړي، نو د ايران حکومت زور راوړو، پدې دوران کښې د برطانيه سفارت په کار لګيا و، دايوب خان د خوشحالولو کوښښ يې کولو. د څه وخت نه پس ده برطانيه په مشهد ايران کښې کونسلر جنرل، برګيډئر، جنرل ( Ma Clean ) سره لوظنامه وکړه، چې دے به د برطانيه يو " Noble and honaured guest " وي د دې معاهدې نه پس د برطانيه وزير عظيم Lord salisbury د ايوب خان برطانيه ته تسليميدل علان کړل، او اعلان يې وکړو، چې په مرکزي ايشا کښې د روسانو په سياست د برطانيه سياست برشو، ايوب خان او د دوئ ملګري بنځې او ماشومان چې ټول تعداد يې ۸۱٤ کسان وو، دوئ اول بغداد ته لاړل، بيا د بصرې د بندرګی نه په دوو سپيشل جهازونو کښې چې " Lauerence " او " SURSA " نوميدل کراچې ته راغلل او د بندرګې جهازونه " Gunboats " ورسره ؤ، ٦ مئ ۱۸۸۸ کښې دوئ په کراچۍ کوز شول . او شاهي ګارډ اف انر سره يې سټرې مشي وشول، او لوئ لوئ پرګنيان يې کتو ته را جمع شوي وو، چې

فاتح میوند په خپلو سترګو وګوري دخوورځو نه پس سردار
صاحب یو خاص اورګاډي کښې راولپنډۍ ته روان شو دوئ
د ژمي هندو بست په پنډۍ کښې او داوړي او سیلډل یې مرۍ
کښې وو، ۱۹۰۲ کښې بیا لاهور ته لاړو، چې تر مرګه پورې په
لاهور کښې پاتې شو . باقي وخت فاتح میوند په کهیل اوښکار
تیر کړه، انګریزي ډ به یې هډلته نه ده کړه، چې څه وخت
امیرعبدالرحمٰن خان په ۱۹۰۱ کښې مړ شو، نو دده زوئ حبیب الله
خان امیر شو، نو ۱۹۰۷ کښې دهند حکومت دعوت کړو نو پرنګیانو
پدې موقع غازي ایوب خان ته وویل: چې تاسې دسیل دپاره
بهر ته لاړ شئ، د پرنګیانو دوه مقصده وو، یو داچې سردار
خوشحاله کړي، او بل داچې امیرحبیب الله خان ته داجوته کړي
چې موږ ه څه خیرن نیت نه لرو، دغه دے شهزاده ایوب خان
دهند نه بل لورې تر لیږو، نو غازي دپاره دوه ځایونه خوښ
کړے شول، چې یو برطانیه او بل جاپان وُ، چې غازي د جاپان
دتګ فیصله وکړه، د اځکه چې روسانو ته ۵ / ۱۹۰٤ کښې جاپانیانو
سخته ماتې ورکړې وه، نو ده غوښتل چې دغه د ایشیا نو زامن
وګوري. او بل پدې وخت کښې جاپاني او برطانیه تعلقات هم
ډېر خوا ږه وو، د روس په بې غیرتۍ پرنګیان هم خوشحاله وو،
ولې پدې چې مرکزي ایشیا کښې د دوئ سیال وُ، نو غازي صاحب
او ورسره یې زښت ډېر خپل ملګري او پولیټیکل ایجنټ کرنل وائټ هم

وار سره وو ، دوئ داتيلي يوجهان چې نوم يې « Capri » او
ديمبې نه سنګاپور ته روان شول ، دسنګاپور نه يو جاپاني جهاز کبنې
چې نوم يې « KOWACHIMARU » و توکيو ته لاړل دجاپان
حکومت خلکو اوپريس فاتح ميوند ته ګرم هرکلئ ووئيلو ، او
جاپاني پريس ورته وليکل چې دنمرختونکي هيوادته NIPPON
ته هرکله راشئ ، موږ ه دستاسو اودستاسو د ملګر يسو ،
تو د هرکلي کاوو ، غازي صاحب دسيل سياحت نه علاوه ، د
جاپان دلوئ لوئ شخصيتونو سره ليدنې کتنې وکړې ، او -
خاصکر د روس او جاپان دجنګ دهيروګانو سره چې دوئ
۱۹۰٤/۵ کبنې روسي فوج ړبولی ؤ ، چې په دوئ کبنې ،
مشهور Grand Admiral Togo وو چې ورته يې
Nelson of East ويئلو اوبل مارشل NOGI و چې فاتح
يې « Port Arthur » ووا وبل « Count OKUMA »
ډېر لوړ او عزت دار شخصيت دجاپان ؤو ، ترلو سره سردار
صاحب ملاقاتونه وکړل مګر پرنګيانو سردار صاحب ته د
« Emperor . Mutsohita » سره د ملاقات اجازت
ور نه کړو ، دوئ جاپان کبنې ددې جنګ متعلق ډېر خواهش
درلوده چې معلومات راغونډ کړي ، نو د دې ذکر کړيو
خلکو سره دوئ په تفصيل سره خبرې کولې او دده نه بريې
د ميوند دجنګ او افغاني حالاتو پوښتنې کولې ، مګر پرنګي به

ورسره وو، ۱۹۰۷ کښې دامیرحبیب الله خان دهند دوره خلاصه شوه، بس سردار ته اجازت ورکړ شو، چې بیرته هند ته راشي اخري وختو کښې سردار صاحب ډېر په عذاب و، دده ډېر وبنځو او اولادو په منځ کښې به هروخت جنګونه وو، اقتصادي وضع یې ښه نه وه، دافغانستان د تخت امید یې قطع شوے وُ او (۷) اپریل ۱۹۱٤ کښې دغه لوئ پښتون د حرکت قلب د بندیدو په سبب په حق ورسیدو، او څوک وایي چې نه دده یو خادمه وه چې نوم یې ګلاب و، هغې زهر ورکړي وو.

باهرحال هرڅه چې وو، خوفاتح میوند لاړو او دده دوصیت مطابق چې ده ویلي وو: چې ما به خپل وطن او یا وطن ته نږدې ښخ کړئ، نو اولاد خپل پلار پېښور ته راوړو، او د مشهور اولیا شیخ حبیب سره یې خاورو ته وسپارو، او یوه سپینه ګومبته یې په جوړه کړه دغه شعر په و لیکلی شو:

بر مزارِ ما غریبانی نه چراغ و نه بلبل
نه پري پروانه یابی نه صدائی بلبل

دغازي یولسل زامن وو او په درجنو لونه یې نشانه پاتې شوې.

# د ۱۸۴۹ء نه تر ۱۸۹۰ء پورې
# د کوزې پښتونخوا حالات

په انګلیانو د سیکهانو نیولې افغاني خاوره د پښتنو ن نه تر ډېره حده پورې د خپلې عملدارۍ لاندې ن او سته نو پښتنو د کوهاټ، هزاره، بنو او ډېره اسماعیل خان دغه ټولې علاقې یې د پنجاب د حکومت لاندې راوستې، د پنجاب نه اداره کېدې چې اول سرکښې ایډورډ ایبټ بروس او نورو پرنګي افسران دلته ور لاندې پښتنو لکه څرنګې دوئ د سیکه د حکومت سره لاس په کړیوان وو، هم غسې د پرنګیانو سره یې غزا کانې کولې، چونکه پښتانه هغه درو ( PASS ) کښې پراته وو، چې کومې د هند دروازې شمارې دلې، نو پرنګي کلکه اراده کړې وه چې دغه درې « Passes » به خپل واک کښې ساتي، نو دوئ د پښتنو وطن په دوو برخو تقسیم کړے ؤ، یعنې میداني علاقې او غرنۍ ې، علاقې چې رو ستو ځینې بندوبستي او قبائیلي علاقې جوړې کړای شوې، نو پرنګیانو اول سرکښې دا دامان علاقې پخې تر فوجي او پولیسي کنټرول لاندې راوستې، د پښتنو د غرنیو علاقو خلاف صرف اول سرکښې فوج کشي کولې او بیا به بیرته سمې تر

راکوزیدل، داسې څوڼ یو برید دوئ په محسودو باندې ۱۸٦٠کښې کړي وو، دوئ د ټانک ډېره اسماعیل خان او د بنو نه فوجونه په وزیرستان مارچ کړي وو، چې دوئ وزیرستان بالکل برباد کړے وُ، مګر محسود او وزیر پلا ې چیرته سمېدل، ددوئ پلمه دغه وه چې دغه سترا مونږ حمله ورکړه چې محسودو په ټانک برید کړے وُ، همدغه شان د یوسفزو پښتنو او پرنګیانو ۱۸٦۳ کښې د امبلې جګړه وشوه چې پرنګیانو ته یې د مغلي جنرال پیریل وخت وریاد کړو، همدغسې د مومندو اپریدو، اورکزو محسود او وزیرو، خلاف وخت په وخت فوج کشي کېدلې، د ټولو تفصیل مشکل دے خو زه صرف لیست لیکم چې د پرنګي پخوا لیکلے شویدے.

دکتاب نوم فرام دی بلیک مونټینز ټو وزیرستان

From The Belack . Montains
To Wazeristan .

لیکونکی کرنل سی. ایچ وی،

(۱) ۱۸٤۸ کښې په بایزی قبیلې کښې باندې د کرنل براد. بی. بی په کمان کښې حمله وشوه.

(۲) په ۱۸٤۹کښې بایزي قبیلې باندې دکرنل براد بی. بی په کمان حمله وشوه.

(۳) په ۱۸۵۰ کښې دکوهاټ په اپریدو باندې حمله دبریګیډیئر سی. کیمپل په کمان کښې وشوه.

٤- ۱۸۵۱ کښې په میرانزو باندې دکپتان جی کاکه په کمان کښې وکړه.

۵- په ۱۸۵۱ - ۱۸۵۲ - او ۱۸۵۳ کښې په مهمندو باندې دبرګیډیر سر ېې کیمپل په کمان کښې حملې وشوې یعنی هرکال .

۶- په ۱۸۵۳ بیا په رانیزو باندې سر . سي کیمپل په کمان کښې حمله وشوه .

۷- ۱۸۵۲ کښې هم دبرګیډیر په اتمان خیلو حمله کړې وه .

۸- په ۱۸۵۲ کښې په وزیرو باندې دبریګیډیر او میجرجي تکلس په کمان حمله وشوه .

۹- په ۱۸۵۳ کښې په هندي مجاهدینو باندې دکرنل میکسین په کمان کښې حمله وشوه . نوټ: « دغه خلک پښتونخوا کښې وو »

۱۱- په ۱۸۵۲ کښې په ادم خیلو اپریدو باندې دکرنل باګلو تر کمان حمله وشوه .

۱۲- په ۱۸۵٤ کښې په مومندو دکرنل کاټن په کمان کښې حمله وشوه .

۱۳- په ۱۸۵۵ کښې په اکاخیلو اپریدو دکیپټن کریجي په کمان کښې حمله وشوه .

۱٤- په ۱۸۵۵ کښې په میرانزو باندې دبریګیډیر چمبرلین په کمان کښې حمله وشوه .

۱۵- په ۱۸۵۵ کښې چمبرلین په اورکزو حمله وکړه .

۱٦- بیا په ۱۸۵٦ کښې هم دې پرنګي په توریو باندې حمله وکړه .

۱۷- په ۱۸۵۷ کښې په یوسفزیو باندې میجر واکن په کمان کښې حمله وشوه.

۱۸- په ۱۸۵۹ - او ۱۸۶۰ کښې د برګیډیر چمبرلین تر کمان لاندې په درویش خیلو وزیرو باندې حمله وشوه.

۱۹- په ۱۸۶۳ کښې بیا په هندې مجاهدینو د جنرال کارډوک په کمان کښې حمله وشوه.

۲۰- په ۱۸۶۰ کښې په وزیرو محسودو باندې جنرال چمبرلین تر کمان لاندې حمله وشوه.

۲۱- په ۱۸۶۴ کښې په مهمندو د کرنل میکډانلډ په کمان کښې حمله وشوه.

۲۲- په ۱۸۶۸ کښې بیا په اورکزو د میجر جونز تر کمان لاندې حمله وشوه.

۲۳- په ۱۸۶۸ کښې د تور غار ځائې په پښتنو حمله د جنرال وائلډ په کمان کښې وشوه.

۲۴- په ۱۸۶۹ کښې په ورکزو د کرنل کینز تر کمان لاندې حمله وشوه.

۲۵- په ۱۸۷۳ کښې په نارتو وزیرستان باندې د کرنل کینز په کمان کښې حمله وشوه.

۲۶- په ۱۸۷۷ کښې په اپریدو د کرنل ماکنې په کمان حمله وشوه.

۲۷- په ۱۸۷۷ - او ۱۸۷۸ کښې بیا په اپریدو د جنرال کیزوراس

ترکمان لاندې حمله وشوه.

۲۸- په ۱۸۷۸ کښې په رانړی زی، باندې دکرنل کیمپل ترکمان لاندې حمله وشوه.

۲۹- په ۱۸۷۸ کښې په اتمان خیلو باندې دکیپټن پېټي ترکمان لاندې حمله وشوه.

۳۰- په ۱۸۷۸ کښې په ذخه خیلو اپریدو باندې دجنرل ماډ ترکمان لاندې حمله وشوه.

۳۱- په ۱۸۷۹ کښې بیا هم دې جنرال په زخه خیلو اپریدو حمله وکړه.

۳۲- په ۱۸۷۹ کښې په ممندو دکیپټن کریګ په کمان کښې حمله وشوه.

۳۳- په ۱۸۸۰ کښې په ممندو دجنرل ډورن ترکمان لاندې حمله وشوه.

۳۴- په ۱۸۸۰ کښې په بتهنو پښتنو باندې حمله دکرنل رائنلډ ترکمان لاندې وشوه.

۳۵- ۱۸۸۰ کښې بیا په درویش خیلو وزیرو باندې د جنرل کارډن ترکمان لاندې حمله وشوه.

۳۶- په ۱۸۸۱ کښې بیا دې جنرال په محسودو حمله وکړه.

۳۷- په ۱۷۸۲ کښې په بنیرو یوسفزیو باندې دکرنل برون ترکمان لاندې حمله وشوه.

۳۸- په ۱۸۸۸ کښې دتورغار نوم ځائ ځا پښتنو باندې د جنرال

ایم . سی ټرکمان لاندې حمله وشوه.

۳۹- په ۱۸۹۱ کښې په اورکزو باندې جنرال سرلوکارټ دوه ځله حمله وکړه.

۴۰- په ۱۸۹۵ کښې پرنګي په چترال باندې حمله وکړه د میجر سرارلو ټرکمانډ لاندې.

۴۱- په ۱۸۹۳ کښې بیا په درویش خیلو وزیرو حمله وشوه.

۴۲- په ۱۸۹۷ کښې بیا په درویش خیلو وزیرو باندې دمیجر کاربرې ټرکمان لاندې حمله وشوه.

۴۳- په ۱۸۹۵ کښې کرنل کیل په چترال حمله وکړه.

۴۴- په ۱۸۹۷ کښې جنرال بیلډ په سوات الونو باندې حمله وکړه.

۴۵- په ۱۸۹۷ کښې په مہمندو د جنرال - ای - ایلس ټرکمان لاندې حمله وشوه.

۴۶- په ۱۸۹۷ کښې په اتمان خیلو باندې دکرنل ریډ ټرکمان لاندې حمله وشوه.

۴۷- په ۱۸۹۷ کښې په الکوزو ، ټرکمانسرو - دیر - او باجوړ باندې حملې د میجر بیلډ ټرکمان لاندې وشوې.

۴۸- په ۱۸۹۷ کښې بیا په اورکزو باندې حمله د جنرال یلټ مین بګز ټرکمان لاندې وشوه.

۴۹- په ۱۸۹۷ کښې په اپریدو باندې حمله دجنرال لوکارټ په کمان کښې وشوه.

۵۰- په ۱۸۹۷ کښې په چمکنو باندې حمله د برګیډیئر هنزکیسلی اوکرنل ... . ترکمان لاندې وشوه .

۵۱- په ۱۸۹۹ کښې بیا په چمکنو حمله دکیپټن روس کیپل ترکمان لاندې وشوه .

۵۲- په ۱۹۰۰ کښې په محسودو باندې حمله د جنرال ډینګ په کمان کښې وشوه .

۵۳- ۱۹۰۱ کښې په درویش خیلو وزیرو باندې د میجرایجرټن تر کمان لاندې حمله وشوه.

۵۴- په ۱۹۰۸ کښې په اپریدو باندې حمله د جنرال ویل کاکټر کمان لاندې وشوه .

بس لیست پدې ځائ ختموم ، که ټول ولیکل شي، نو ټول کتاب به تش لیست ، لیست شي ، دغه حال دلاندې پښتنو ؤ ، چې ، دوئ دپرنګي سره لاس په ګریوان وو ، افغاني امیران کوم د ننه دیو بل خلاف لګیا وو ، او پرنګي ورو ورو د پښتنو سیمې نیولې ، او ځان یې کابل ته ورنږدې کولو ، او د کم scientific frontier خبره یې چې کوله هغه ته یې حالات جوړکړل ، په کابل کښې یې ایجنټ امیرعبدالرحمن خان ؤ ، په بنو وسهې ضلعو کښې یې خان بهادر خان صاحبان وو ، او قبائیلي علاقو کښې یې ملکان پیدا کړل ، پښتانه یې داسې بې اتفاقه کړي وو ، چې یو د بل په لاره نه تلو . هم دغسې وخت کښې خدائ د بهرام خان محمدزي په کور کښې چارسدّ

اتمانزو کښې یو ماشوم ۱۸۹۰ کښې پیدا کړو، چې مور او پلار ورباندې عبدالغفار خان نوم کېښود. که چیرې پرنګیانو تر دغه علم وی، چې روستو به دغه هلک زموږ د زوال سبب کیږي نو دوئ به په ماشوموالی کښې په چا مړ کړے وو، دے لا دریې کلن وُ چې د دوه په وطن باندې پرنګی‌« ۱۸۹۳-۱۱-۱۲ » کښې د ډیورنډ د کرښې تر نوم لاندې تش په نوم کرښه تیره کړه.

# د دې بوړ ندکرښه

# او پښتنو مشرانو هلې ځلې

دغه خو تاریخي په ثبوت رسیدلې خبره ده چې په هند باندې

د معلوم تاریخ نه حملې د شمال مغرب د اړخه شوي دي، چې دغه

د هند د خپل جغرافیائي پروتوالي وجه ده، چې سمندر او د همالیه

د غرونو په ذریعه یې قدرتي دفاعي دیوالونه لري، پرنګیان یا په بله

معنی د یورپ خلک د سمندر د لارې هند ته راغلي وو، چې پرتګیزیان

هالینډیان فرانسویان او پرنګیان وو، په اخر کښې د دغو ټول

د پرنګیانو د لاسه وار په وار د هند نه بې واکه شول، او د دوئ

په کامیاب شول، ایسټ انډیا کمپنۍ د ۱۶۰۰ کال نه د هند سره تجارتي

رابطه درلوده، نو دوئ سره ډېر وخت وُ، چې د دغه ملک خلک

او مذهبونه ښه په ارام سره مطالعه کړي، دوئ د مغلو په دور

کښې راغلل. د مغلو د زوال سره دوئ په خپل پوریي تربورانو

بر شوي وو، او س د هند د نیولو په تکل کښې وو، دوئ د تاریخ

نه علاوه ښه پخپلو سترګو ولیدل، چې ۱۷۳۹ کښې نادر افشار د خیبر

د درې په لاره په مغلي هند حمله وکړه، او د لوټمار نه پس هم په

دې لاره یعنې د درې په ښته لاړو، — دوئ احمد شاه دراني بار

باں ولیدو چې دوئ هم په هند پاندې دغه دړې استعمال کړې
که څه هم دغه دړې دده په هیوا دکښې وې، خو دېرې ـ
پښتونخوا اوکوزې پښتونخوا قدرتي لارې او ګدرې هم دغه
دړې وې، چې بیا دهند پنجاب میداني علاقې وې، چې څوکۍ به
په خیبر، بولان، کرم اوګومل باندې کامیاب راووتو، نو بل پړاو
به یې لاهور او وروسته دهند زړه دهلي و ـ دوئ ۱۷۵۷ کښې اول
ځل د پاړه د هندوستاني نواب سراج الدوله نه د پلاسي په میدان
جګړه وګټله او دخپلې مرضۍ نواب یې مقرر کړو، مګر دغه وخت
دلوئ احمدشاه بابا دعروج دور و، هندکښې یا هندې پښتانه روهله
او نور مسلمانان وو، دجنوب دا ړخه پیشوا وو، مرکز کښې مغل
او جټان وو، پنجاب کښې سیکهان وو، مګر دغه ټولو کښې مضبوط
او خطرناک احمدشاه دراني و، نو پرنګیانو اول سرکښې دغیر
مسلمان او شیعه مسلمان سره ښه سلوک شروع کړ، چونکه دا
ریاست اودهکورنه شیعه ګان وو، نو دوئ دپرنګي تر ورور وختهپورې
ملګري پاتې شول، او هندوان او سیکهان، مهاراشټرا مرهټیان وو،
چې څه وخت جنوري ۱۷٦۱ کښې د پاني پت په میدان کښې احمدشاه
بابا مرهټیان وو بهول، نو بنګال کښې پرنګیان وا رخطاشول، دا ځکه
چې ددوئ سره خطره وه چې که احمدشاه بابا په هندکښې مقیم
شي، دغه تازه افغاني وینه ده، نو ددوئ د پاړه به مشکله شي.
او بل دوئ ته دغه پته ولګیده، چې احمدشاه بابا مرهټیان دخپله

هندي پښتنو یعنې روهیله وو، په زور ور بول، او دغه ورته پته وه چې د افغانستان او هندي پښتنو ترمنځ د پنجاب سیکهان دي، چې دوئ د مغلو د وخت نه د مسلمانانو او روستو د پښتنو خلاف جنګیدل، او بل د افغانستان ازلي دښمن ایرانو، چې دوئ هم شیعه ګان وو، او پرنګي د شیعه او سني مسلې تر شعور یې لـسن ـ وهـلـه، ولې پدې چې دوئ پخپله یورپ کښې فرقه پرست وو، تازه تازه کتولک فرقو کښې تقسیم شوي وو ، هـلـغـه قـارمـولـه دوئ هرځائې د ضرورت مطابق استعمالوله، چې کله د هندو او مسلمان په شکل کښې او کله د سني او شیعه په شکل کښې، نو داحمد شا بابا په وخت کښې دوئ د سیکهانو او مرهټیانو سره رابطه وه، او دلوئ بابا د مرګ نه پس خو دغه د دوئ د سیاست مرکزو، چې شاه زمان خلاف دوئ ایران او سیکهان لمسول، نو دوئ افغاني شاهان په کورکښې د سیکهانو او ایرانیانو سره اړم کړل، د هند د نیولو وو تل، پرنګیانو اول سر کښې هندي روهـلـه پښتانه د شیعه ګانو او وهدي نوابانو په ذریعه کمزوري کړل، او روسـتو دوئ پخپله پسې راغلل، هندي روهـلـه پښتانه یې بې واکه کـړل، او د افغاني او هندي پښتنو رابطه یې د پنجاب پرنګیانو په ذریعه خته کړه، دوئ په منځ کښې پریوتل، یعنې سیکهان چې خرخت یې هندي پښتانه او مرهټیان، مغل، جټان خـتم کړل، نو اوس د دوئ سرحد د سیکه شاهي سره ولګیدو، اوس یې سیکهان د افغانانو

خلاف کرم کړل، او د بلې خوا ایرانیان، چې افغانستان یې سنه د خدائ په قهر ککړ کړو، د رنجت سنګه د مرګ نه پس حالات اوس دې ته جوړ شوي وو، چې دوئ د سیکهه شاهي په ځائ په خپله شي. نو دوئ ۱۸٤۸-۱۸٤۹ پورې خپله پوله جم جمرود ته رانږدې کړه، اوس د هند د پاره افغانستان خطرناک نه ؤ، بلکې یو بل عیسوي او یورپي قدرت خطرناک ؤ، چې هغه زاړه روس ؤ، چې د هغې هم زړه کېده چې هند خپله خیټه کښې واچوي، او اوس د دوچوبې دلارې راروان ؤ، او هغو تاریخي لارو او درو ته رانږدې کېدو چې کومې د معلوم انساني تاریخ نه، هند باندې د حملې کولو قدرتي لارې وې، چې عبارت دي له: خیبر دره، کرم دره، ګومل دره، ټوچي دره او بولان دره، تر دې وخته پورې دوئ دروسانو نه مخکښې دې دروته راغلي وو، او دغه درې ټولې د احمدشاه بابا د قوم په قبضه کښې وې، یعنې پښتانه د لته میشته وو، نو پرنګیانو د دې قوم د تباکولو او ویشلو منصوبې جوړې کړې. اول سرکښې یې سیکهان رامخ کښې کړل، بیا په خپله افغانستان کښې ۱۸۸۰ کښې داسې سړے قدرت ته راوستو چې د دوئ د طبیعت سړے ؤ، نو دوئ اوس دیو داسې سرحد په تکل کښې شول، چې دغه افغاني درې ټولې د دوئ تر قبضه راشي. نو د دوئ اولنی پروګرام شنلوشو، چې ټول افغانستان په خیټه کښې واچوي په امو سیند باندې د هند پوله ولګوي، هغه بل یې هم کامیاب نه شو، چې هند وکش پوله کړي.

اباسین دوئ څکه خپله پوله نه منله چې درې داباسین تر برې وې، نو دوئ په قدرتي پولې پسې نه تلل، بلکې دفاعي پولې پسې تلل، یعنې د passas درو قبضه د دوئ دویم افغاني پرنګي جنګ دګنډمک د معاهدې لاندې افغاني امیر یعقوب خان باندې دغه منلي وو. چې دغه درې به برطانیه ته ورکړ کیږي. نو دوئ دې ته یو قانوني شکل ورکولو، دپاره دخپل ایجنټ امیرعبدالرحمن خان سره، خبرې اترې شروع کړې، اولاندې پښتانه پرنګي ته یوزرې پاتې شول. پرنګیانو وزیرستان، خیبر، کرمې، سبی ژوب، پشین او نورې پښتنې علاقې وار په وار لاندې کړلې، اوس پرنګیانو دافغاني خاورې په منځ کښې دیو داسې کرښې په هڅه کښې وو، چې دوئ ورته (SCIENTIFIC FRONTIER) وئیلو. اوس پرنګیانو په امیر زور راوړو چې دبرید متعلق خپل موقف جوت کړي، امیرصاحب ډېر هغه دغه وکړل، مګر خپل تخت ورته ډېر ګران وُ، سرېې ولګاوه، پرنګیانو هم ددې دپاره امیر کړے وُ نو۱۸۸۸ کښې امیرصاحب وا شرای هند ته لارډ ډفرن ته اطلاع وکړه چې د: (Border) یعنې د برید په باره کښې دې یو پرنګی افسر کابل ته راشي دهند واشرائ فوراً د هند دخارجه چارو سکرټر ډیورنډ خپل استازی، مقرر کړو، پدې شپږ ورځو کښې اسحاق خان افغاني په ترکستان کښې پورته شوے وُ، نو امیر صاحب ورته د څنډ، خواست وکړو، (ډیورنډ په خپل یاداشت کښې لیکي: «چې د کابل

میشن ختم شو، امیر صاحب دچارو د سمیلو دپاره بلخ ته ځي

زما یقین دے چې دے له موږ نه ویریدو، چې موږ به له ده نه زیات څه وغواړو»، په ۱۸۹۰-۱۸۸۹ کښې پرنګي ژوب اوګومل لاندې کړل، په شیله باغ او کوژک غره باندې د ریل تنل «غار» ایستل شروع کړو، چې د ریل ورے دپاره یې برابره کړي، پډ باندې دووږي په څلورم تاریخ ۱۸۹۰ کښې امیر صاحب

حکومت هند ته سخت پروتیستا احتجاج وکړو، ورته یې وویل: چې دغه کوژک غره کښې چې کوم غار تاسې کنئ، دا داسې دے لکه زما په کولمو کښې چې سیخ وهئ، مګر دغو ټولو د مکراو بې وسې احتجاجونو، نو ۳ ستمبر ۱۸۹۰ کښې بیا امیر صاحب هند ته ولیکل چې اوس استازی راولیږئ، مګر پرنګي خپل مقصد ته لاړه و رسیدلے، نو داسې یې ورته ولیکل:

«چې امیر صاحب دے هند ته راشي، چې دلته ګټورې خبرې وکړو او ورته یې ولیکل: چې د ( MISSION ) اندمخکښې واسرائ هند غواړي چې تاسو علیجاه سره په ځینو بنیادي خبرو خبرې وکړي، مګر امیر صاحب ډېر چالاک ؤ دهند دګټ نه یې معذرت وغوښتو، او ورته یې وویل چې زه دهیواد په چارو کښې سخت بوخت یم، نو زه نشم کولے چې ستاسو ددعوت نه فایده وچته کړم»

په حقیقت کښې امیر صاحب ډاریدو چې په هند کښې به پرنګي را باندې زور وکړي، او ډېرې ناجائزې خبرې به را باندې ومني.

خو ۲۸ فروري ۱۸۹۱ کښې اميرصاحب بيا واسراۍ هند ته وليکل؛ چې کابل ته دې يو استازى راوليږي، دوا ړو چالاکي کوله او وروسته اميرصاحب يو بل تجويز وړاندې کړو، چې هغه يعنې اميرصاحب به ډېر خوشحاله شي چې عزتمند واسراۍ د ده سره په کابل او يا جلال اباد کښې ملاقات وکړي، دغه به زما دپاره ډېره دخوشحالۍ موقع وي، مګر پرنګي دغه هم رد کړو، پدې چل ول کښې پرنګي لاندې ډېره دپښتنو علاقه لاندې کړه، دوۍ د مومنو او پښتونولو سره کولې، کله چې پرنګيان پوه شول چې اميرصاحب هند ته نه راځي، نو دوۍ ۲۳ جولاۍ ۱۸۹۲ کښې امير ته خبر ورکړو، چې دهند له خوا د هند دفوجونو مشر جنرال رابرټ افغانستان ته داستازي په توګه درځي، او تر اکتوبر پورې به جلال اباد ته دروسي، چې کوم ليک جنرال رابرټ له ځان سره وړو، هغه کښې ليکلي وو اميرصاحب ته: چې تاسې د برطانيه په کمک اميرجوړ شوى يئ، او نورې خبرې به هم ورته ليکلې وې، او که داول دسمبر پورې ستا دلورى د رابرټ دمنلو اطلاع او منظوري رانغله، زه به پوه شم چې تاسې انکاري ياست، زه به رابرټ استازى بير ته واخلم مګر خبره ساده درنه کوم، دغه تجويز که منې او که نه، دغه فيصله به موثره کوو، چې کومه خاوره دافغانستان ده او کومه نه ده، دغه هغه رابرټ وو، چې ۱۸۷۹ کښې پر افغانستان يرغل کړے وُ، اوس امير صاحب ګډوډ شو، نو دے تجويز او الټيميټم

نه یې غاړه کېښوده، په دریم اگست یې منظوري ورکړه، مګر
په دې وخت کښې هزاره ګان پوره ته شول او بغاوت یې وکړو، نو
امیرصاحب بیا حکومت برطانیه ته دحلالاتو دخرابیدو په وجه د
ځنډیدو خواست وکړو.

چې امیرصاحب به لږ هم بدمعاشي کوله نو پرنګیانو به پوره ته
خپل حیثیت په ګوته کولو، او ایوب خان غازي به یې وریادولو
چې هغه هند کښې ناست دے، ته نه، هغه، دد ې سره به دامیر
بدمعاشي لاړه. امیرصاحب به بیا چمتو او تیار وُ، سنډمن ۲۷-
ستمبر ۱۸۹۰ کښې په خپل نوټ کښې لیکي:" دا یا د ساتل پکار دي چې
امیرعبدالرحمٰن خان اوسنی حیثیت تر ډېره حده پورې زمونږ د
لاسه دے، ده یوازې پخپل زور قدرت حاصل نه کړو، مونږ په
جوته دده معزول تربور محمد یعقوب خان په ځای داومانه
او بنا رونه مو ورته دوسلې او خزانې زور ډک کړل، او په لاس
مو ورکړل، دا زمونږ کوښښ وُ چې دپخواني حکومت دپرېلویان
مو د افغانستان نه تېښتیدلو ته مجبور کړل، نو په دې کښې هیڅ شک
نشته چې دافغانستان اوسنی حکمران تر ډېره حده پورې زمونږ
په وجه جوړ شو.

نوټ: دغه هغه رابرټ سنډیمن دے، چې چا بلوچستان
لاندې کړے وُ) دبارورډ پالیسی غټ پلاوے وُ).

په دې وخت کښې برطانوي حکومت، حکومت هند ته خبر

ورکړو چې خبر دے، امیر صاحب ته د ۲۳ جولائی خبرداری
یو ځل بیا تکرار شي، څو که بیا یې پلمې یعنې بهانې کولې
نو بیا مناسبه کار روائي دې ور سره وشي، نو ۱۲ ستمبر ۹۲ ۱۸ کښې
واسرائے هند خبرداری ورکړو، که بیا دې خبره وځنډوله
نو مونږ به بغیر د ستاسو د انتظار نه مناسبه کار روائي وکړو،
په دې دوران کښې حکومت هند د برطانیه حکومت ته تجویز وړاندې
کړو چې برطانیه دې پخپله د پولې یعنې بریډ فیصله وکړي.
او ښار «علان» دې کړي د دې پولې یا کرښې نه چې زموږ غاړې
ته کوم افغاني فوج راځي په زور دې وویستل شي، او کرښه
دې داسې وي چې آسان، چاغي او وزیرستان د افغانستان نه
بیرکړے شي. هم په دې وخت کښې د امیر صاحب توپې او ټوپکې
پرنګي حکومت د کراچۍ په بندرګا بندې وینول، او ایسار یې
کړل، اګست کښې ورته امیر صاحب د توپو او ټوپکو د را خلاصیدو
ووئیل، مګر د هند واکدار واسرائے ورته داسې جواب ورکړو
چې د غه اسلحه به ته هغې پورې تاسو ته در نکړاے شي، تر
څو پورې چې د پولې یعنې بریډ خبره تعین او فیصله شوې نه
وي، امیر صاحب ډیر خپه شو مګر څه یې کولے نه شو ل، نو ۱۱ جنوري
۱۸۹۳ کښې واسرائے هند امیر صاحب ته اطلاع ورکړه چې پر یکم
مارچ به جنرال رابرټ د پېښور نه د روان شي او د مارچ په
نیمایي کښې به کابل ته در ورسیږي، او ورته لیکلي یې وو:

که ۷ فروري ۱۸۹۳ پورې ځواب رانغئ نو بیا به استانسے نرداستول

کیږي، دغه یو قسم ورته « Warning » و، پدې شپو ورځو

کښې د پایئن په نامه یو پرنګي چیف انجینر د (۱۸۸۵) کال نر د

امیر صاحب سره و، د دې وارنینګ نه پس امیر صاحب انجینر

پائین واشرائ هند ته واسنوه، بناغلي پائین دامیر صاحب لیک

(خط) د ځان سره واخیست، په ۱۲ مارچ ۱۸۹۳ کښې کلکتې ته ورسیده

دجنرال رابرټ د دې سره میشن منسوخ شو رابرټ

هم پدې کال کښې پنشني شو، واپس لندن ته لاړو، او س

پرنګیانو دخپل وطن انجینر پائین نرکار واخیستو د ۱۲ مارچ

نه تر ۱۲ جون ۱۸۹۳ پورې پائین دحکومت هند سره په خبرو

اترو کښې و، او ده پدې دوران کښې د هند دواشرائ سره او

د هند د خارجه چارو سکرټر بناغلي سر مور ټمر ډیورنډ

سره بیا بیا کتنې وکړې، امیر صاحب ته پرنګیانو دانکار

په شکل کښې سختې سختې بلاګانې ورښکاره کړې، او د پولې

منلو په صورت کښې یې ورته تخت وبخت او نورې ګټې ورپه ګوته

کړې، مینکاره یې ورته وویل: چې که کرښه منې نو تخت و بخت

دې محفوظ دے، او که اخوا دیخوا کوې نو حال به دې دیعقوب خان

امیر شیرعلي خان او غازي ایوب خان وي، ډیورنډ یوه نیاه

نقشه پائین ته ورکړه، چې امیر صاحب ته یې ورښکاره کړه،

اوس پرنګي پائین دامیر صاحب او واشرائ هند ترمنځ دکښتي

سفیر کار واخیست، نو دے به کله کابل اوکله کلکته کښې وُ،
چونکه دے پرنګے وُ نو د غیرجانبدارۍ سوال هم نه پیدا
کیږي، نو ده امیر صاحب دومره ودا رولوچې امیر
صاحب یې هرڅه ته تیار کړو، چې د ده نوکري امانت
په ځای پاتې شي، نو په یو وار یې امیرصاحب د ملک،
خرخولو ته چمتو کړو، د دې سره سمدستي ۲۴ جولائي
۱۸۹۳ کښې وائسرائ هند امیرصاحب ته اطلاع ورکړه چې
د برطانوي هند یو لوئ افسر به بغیر د فوجي بدرګې نه کابل
ته درځي، او تاسو سره به د اموسین په پوله د روس متعلق
خبرې کوي، امیر صاحب دغه تجویز سمدستي قبول کړو، وائسرائ
هند بناغلے سکرټري ډیورنډ ولیږلو، پدې کښې د پرنګیانو
چالاکي ده وه چې امیر صاحب ته داموسین پوله د روسانو
سره ډېره اهمه کړي او د هند سره کرښه یې بې اهمیته کړه،
لنډه دا چې ډیورنډ ۱۵ ستمبر کښې د پېښور نه کابل ته روان
شو او ۱۲ اکتوبر ۱۸۹۳ کښې کابل ته ورسیدو، د امیر صاحب سره
یې په اوله غونډه کښې داموسین د پولې خبرې وکړې.
ډیورنډ وایي: «چې په لمړۍ غونډه کښې امیر ده ته
وویل: «ځکه چې تا اول خبره شروع کړه، نو پکار دے
چې موږ د دې لمړۍ فیصله وکړو، خو حقیقت کښې دغه بل
سرحد اهم دے، دغه زما او د روسانو ترمنځ خبره ده، زما

خلك به نه په دې خبر شي، او نه د دې پروا کوي، چې زه په روښان یا شینګان کښې پر مخ ځم او که په شا، خو د دې معلومولو ډېر زیات په فکر کښې دي، چې ستاسو له لوري دوئ پر کوم ځاے ولاړ دے».

په اساز پښتو کښې امیر صاحب ډیورنډ ته ویلي وو، چې د رو سانو سره د کړښې متعلق زما خلك ډېر اندېښمن نه دي مګر د ستاسو د کړښې متعلق ډېر اندیښمن دي، یعنې اهم مسله د ستاسو سره ده، نه د روسانو سره، او پرنګیانو د پښتنو ښولې خاورې ته اهمیت نه ورکاوه، او د روس بوئ ډېر غټ کړے و.

ډیورنډ د یوې بلې ورځې په باره کښې لیکي: «عبدالرحمن خان وویل: «که تاسې ما مجبور کړئ زه به تاسو سره جنګ وکړم، زه بزدله نړیم، که څه هم زه د دې پر نتیجه خبریم، نو بیا هم زه جنګ وکړم، نو زما شیرعلي خان نه دے هیر».

داسې معلومیږي چې امیرصاحب «زړه نه زړه To be or not To be» په زړښ کښې و، یو وخت به غیرت واخیسته خو بیا به تخت ور یاد شو، فیصله یې نه شواے کولے.

یل ځاے امیر صاحب ورته وایي: «چې زه به د خپل ناموس له پاره بغیر د جنګ نه د آزادۍ نه لاس وانه خلم».

مګر په حقیقت کښې امیر صاحب دومره زړه او جرأت

نه درلوده ، لکه امیرشیرعلي خان چې دافغاني غیرت ساتلو
دپاره يې خپل تخت پرېښود ، خو پرنګي ته یې سر ټیټ نه کړو
او بیا ایرخ ته امیرعبدالرحمن ته دافغاني خاورې نه زیاتا خپل
تخت اوارام ګران وو ، او دپرنګیانو شومې اوخطرناکې منصوبې
ته یې سر ټیټ کړو ، نو دپرنګي استازي ډیورنډ په موجودګه
کښې یې ۱۲ نومبر ۱۸۹۳ کښې هغه ټولې علاقې چې پرنګي وارپېوار
لاندې کړې وې ، دهغې نه یې لاس واخیست ، دچاغي نه ترچترال
پورې په زرګونو میله مربع پښتون خاوره یې پرنګي ته وړکړه
او دغه کرښه دډیورنډ په نوم مشهوره شوه ، چې د دې سره
دپښتون قوم وجود په دوه برخو تقسیم شو چې ترننه ورځې
پورې همدغسې بې حرکته اوشل پروت دے ، ۱۲ نومبر ۱۹۹۳ کښې
یې ټیک سل کاله پوره شول ، دغه کرښه هیڅ بین الاقوامي او
حقوقي اوانساني جواز نه لري ، دغه په زور تیره شوې
ده ، اوهیڅ پښتون نه ده منلې ، د دې نه پس لاندې پښتانه د
خپل هیواد افغانستان ته وشکول شول ، چې دغه سلسله ترننه
ورځې پورې روانه ده لوئ بابا مرحوم باچاخان خوخپل ځان
جوت کړو اوعمل کښې یې دډیورنډ دکرښې نفي وکړه ، خپل دائمي
استوګن ځاے یې خوا جلال اباد کښې خوښ کړو ، او موږ پښتانه
بې خبره او بې همته پراته یوو ، دوه زنګین زنځیرونه یو په
طورخم او بل په سپین بولدک باندې پراته دي ، موږ لرې نه

کړاے شول.

د ډیورنډ لائن متعلق یو جرمني پروفیسر وویل:

(هایډل برګ پوهنتون) «چې الیف کیرو ډېر بدبینته پر نګی دے، ده په خپل کتاب پټهان کښې کوښښ کړے دے، چې تش په نوم ډیورنډ کرښې ته اهمیت ورکړي، دکرښې برې غاړې پښتنو ته افغان وایي، او دکونې خوا ته پټهان وایي، حالانکه، دوئ لر او بر افغانان دي، دوئ درې نومونه لري، چې- هندیان او پرنګیان ورته پټهان وایي، ایرانیان، ترک او عرب ورته افغان وایي، دوئ ځپله ځانونو ته پښتانه وایي، او ژبه یې هم پدې نامه یادېږي، دغه دریواړه نومونه دیو نژاد دپاره استعمالیږي».

زه په خپله ناست وم، دغه ۱۹۸۰ کال چې روسان افغانستان ته راغلي وو، او زموږ مکان اومکرجن امیر صاحب دډیورنډ لائن متعلق داسې لیکي:

«زه داواقیعت یوازې ددې څرګندولو دپاره بیانوم، چې که څه هم انګلستان دافغانستان یوه ټکړه هم نه غواړي، خوبیا هم ددې دحاصلولو هیڅ موقع هم له لاسه نه ورکوي، دی دوست تر روس نه زیات افغانستان لاندې کړو.

# د ډیورنډ د کرښې خلاف
# د عمراخان او ملا پیونده محسود
# هلې ځلې

د پرنګیانو خلاف د ډیورنډ د کرښې نه اول او روستو لاندې پښتنو ډېرې قربانیانې ورکړې دي، داسې د رڼو، غرو او غونډیو نښته، چې چیرته د پرنګي او یا د خپل وطن د ساتلو په خاطر د پښتون وینه نه وي توی شوي، او د هرې سیمې پښتانه مشران د خپل اولس په ملاتړ د دې جهاني خامار خلاف جنګېدلي دي، مګر بیا هم ځینې داسې پښتانه مشران وو، چې دوی نه صرف په فوجي توګه بلکې دوی په سیاسي توګه هم د پرنګي خلاف خپله مبارزه کړې ده، پدې مشرانو کښې د هغې وخت جوت کسان بناغلي عمراخان او ملا پیونده وو، د عمراخان د میړانې توپې نن هم په مردان کښې پرتې دي چې د هر پښتون د یاد د فخر او ویاړ وړ دی، دې لوی پښتون د جهاني سامراج، پرنګي لښکرو او ټنګ لاس باندې مقابله اوکړه، او ډېرې غزاګانې یې وکړې، مګر روستو دوی د پرنګیانو او د دوی د ایجنټانو په زور د لرې پښتونخوا نه لرې، پښتونخوا «افغانستان»

نه واوښت، نو پرنګي وا ښرایځ د خوشالۍ نه وویل: چې زموږ دښمن عمراخان اوس زموږ د خوږ دوست «امیرعبدالرحمن‌خان» میلمه شو، ددې نه معلومیږي چې دلوئ عمراخان خلاف کابل او کلکته سره یوه شوي دي، او د ده ملي ارزوګانې یې شنډې کړې عمراخان دوئ په ارام نه پرېښوده. داځکه چې دغه نرپښتون د پېورنګو دګرېښې سخت دښمن او مخالف ؤ، دوئ په هیڅ صورت د پښتون ویښ نه منلو، هم دغه د ده جرم ؤ، د ے د پرنګي د فارورډ پالیسۍ د پاره خطرناک ؤ، دامیرعبدالرحمن خان دلالۍ د پاره، نو دوئ دواړه د پیا وړي عمرا خان په خلاف سره یو لاس شول، او دغه لوئ پښتون یې په فوجي او سیاسي توګه شل کړو، چې په دیکښې مقامي ملګري پښتانه ملکان او نوابان او سیدان هم شامل وو.» د ښا

دښاغلي عمراخان متعلق ډاکټر وارث خان په خپل کتاب «آزادی تحریک» کښې داسې لیکي: پاڼه - ۸۹ »

« د سالارزو قبیلې مست خیل خاندان عمراخان دجندول ۱۸۹۳ یوروپي پرنګي خلاف جنګ وکړو.»

# دملا پاوینده هلي ځلې

هسې خو د پښتنو مشرانو فهرست ډېر اوږد دے، مګر ځینو مشرانو د وخت مطابق داسې ملي او اجتماعي کارونه کړي دي چې هغه د کانې کرښې جوړې شوې دي، هم په داسې ملي -

مشرانو کښې يو ملا پيوند ده راځي، دوئ په قوم محسود علیزئ
شابي خيل او بناخ يې ستانزئ دے، دوئ اندازًا ۱۸٦۱ ځوا
شاکښې وزيرستان کښې نا پيدا شوي دي، دا هغه وخت
وُ چې د پرنګيانو او پښتنو به هر وخت جګړې وې د ۱۸٤٩ نه
تر ۱۸۷۸ پورې د محسودو او پرنګيانو ترمنځ درې ځلې غټې
غټې جګړې شوې وې، او دوړو وړو خوځه حساب
نه وُ، دوزيرستان اختيار اول پرنګي د ټانک نواب شاه نوازخان
کټي خيل ته سپارلے وُ، دغه نواب په ۱۸٤۸-کښې د ملک فتح خان
تواني سره پناه ګزين وو، بيا روستو ايډورډ د پرنګي راوستو
د ټانک په ګدئ يې وماني او سرحدي معاملات يې هم دده په
لاس کښې ورکړل، مګر د محسودو، کنټرول کول
د نواب صاحب د وس خبره نه وه، نو روستو پرنګيانو د
محسودو معاملات د نواب پر ځائے پخپل لاس کښې واخستل، او
پرنګيانو محسودو کښې خپل ايجنټان ملکان جوړ کړل، او دوطن
کمئ کولو او دې بدل کښې به پرنګي ور ته انعامونه ورکول،
په شروع کښې سرکاري پرنګي دلالان کمزوري وو، مګر د پرنګي
د مضبوطيا سره دوئ کال په کال مضبوط شول، خاصکر هغه
وخت دوئ نور مضبوط شول، چې کله ۱۸۸۰ کښې امير عبدالرحمن
په افغانستان کښې په قدرت راوستلے شو، ولې پدې چې د
محسودو په وطن ميشو مشرانو د پاره د پناه ځائے ورک شو،

او کابل کښې هم يو قسم پرنګي غټ ملك ورته په ځای شو، امير
امير شيرعلي خان په وخت کښې به چې دوی پرنګيان مړه کړل
نو په کابل افغانستان کښې به ورته د عزت او غازيانو په سترګه
کتل کيدل، مګر پرنګيانو اوس خپل غټ ملك په افغانستان کښې
مقرر کړو، او بله دا چې کابل کښې قزلباشه او پارسي بانه
نوکری شاهي په قدرت وه، چې دوی ټول پښتون دښمن
او د پرنګيانو ملګري وو، چې څه وخت دويم افغاني پرنګي
جنګ کيدو، نو اوولس کلن ملا پيوندہ د محسود ولښکر
سره د پرنګيانو خلاف کابل ته تلی و، او دغه اول ځل و، چې
دې د قبائيلي او علاقې سياست په ځای ملي سياست وپيژندو
او ورمعلومه شوه چې د پرنګي ولې ته ډېر لرې لرې پورې
تلي دي، همدغه وجه ده چې ۱۸۸۰ نه تر ۱۹۱۳ پورې ټول
حالات او سياست د ملا صاحب ګير چاپيره ګرځي، دوی د
وزيرستان او پښتنو سياست کښې يو غوره رول لوبولی
دے، او يو « Dominance » شخصيت و، دغه نفسياتي
مسله ده، چې دښمن څوك په کاره نوم بولي، نو پوه شه
چې دغه لوی سړی دے، دهغه وخت لوی پرنګي او د
هند وائسرای لارډ کرزن به ملا پيوندہ ته يو لوی بدمعاش
وئيلو « scoundral » دا ځکه چې دې پښتون پرنګيان
تر پوزې راوستي وو، تر څو پورې چې ملا صاحب ژوندے.

وو، اولسي او په وطن مين مشران په سرکاري ملکانو باندې زوروروو، د پرنګي ملکانو په اولس کښې هيڅ څه خاص اثر نه وو، همدغه وجه وه چې دملکانو او پرنګيانو ملاصاحب په ګلوه دښمن وو، دوی ځو ځو ځله دهغه د مرګ کوښښونه هم کړے دے، مګر کامياب شوي نه دي، او ملاصاحب دهغه وخت يواځينی پښتون وو، چې د فارورډ پاليسي « Farward Palicy » شعوري مخالف وو، او تولو خبرو باندې ښه خبر وو، چې ددې سياستپه ذريعه پرنګے قدم په قدم د پښتون خاوره لاندې کوله، پدې سيمه کښې دمخ په وړاندې سياسته غټ پلويان را برته سنديمن، او دده شاګرد بروس وو، چې دوی پدې سيمه کښې دپښتنو خاوره نيوله، ۱۸۹۳ کښې څه وخت چې دافغانستان امير عبدالرحمن دپرنګيانو سره دپښتنو په تقسيم رضا شو. که څه هم دمکر ژړا يې کوله، مګر افغاني مفادونو نه پرې ذاتي مفاد ګران وو، چې ملا صاحب خبر شو چې پرنګيانو دپښتنو پرخپله باندې کرښه تيره کړه، نو دوی فوراً کاڼي ګرم وزيرستان کښې چيرته چې پير روښان مسکين وو، د درې محسودو جرګه راوغوښتله، فيصله پدې وشوه چې ملا صاحب ترمشرۍ لاندې به يو وفد کابل ته لاړشي، چې دامير صاحب سره وګوري، او صحيح معلومات ترلاسه کړي، چې څه وخت دوی

کابل ته لاړل، او امیرصاحب سره یې خبرې وکړې، امیرصاحب ورسره څو د درغو وعدې وکړې، او غلط معلومات یې ورکړل، او دوئ واپس وزیرستان ته راغلل، چې پرنګیان خبرشول، نو د امیرصاحب غوږونه یې تاؤ کړل، امیر دخپلې وعدې «لوظ» نه په شاته شو، تش نصیحتونه یې شروع کړل، او د مکرجنې بنځې غوندې یې ځان مرور کړو، داځکه چې په حقیقت کښې دے خرڅ شوے ؤ، چونکه ملا صاحب خو ضد سامراج ؤ، نو د امیرصاحب نه بغیر یې په ځان او په قوم باندې توکل وکړو، او د پرنګي خلاف یې جدوجهد شروع کړو.

د ډیره کمشنر مناغلي بروس ۱۸۹۰ کښې دګومل درې دوره وکړه، او په وانړه «WANA» باندې یې دا نړه تاوه کړه نو ملا صاحب پرنګي خبردار کړو، چې که چیرې دوئ وزیرستان نیسي نو په هر یو ګز باندې به پرنګي مړي وت وي.

د پرنګیانو خیال ؤ، چې افغانستان امیر زموږ دلاس، بوتپاڅي دے، نو د ملاصاحب دتیښتې او پناه ځائ نه شته. ملا صاحب تشې دهړکي اوغورې کوي، حقیقت کښې هیڅ هم نه شي کولے، مګر بلاړخ ته د ملا صاحب توکل په خدا ئ او خپل قوم باندې ؤ، چې څه وخت پرنګیانو او دامیرافسرانو دکرښې « Demarcation »، دپاره دوزیرستان سیمې ته راتلل، نو ملا صاحب دواړو ته سخت الټي میټم ورکړو،

او پرنګیانو ته یې سخت « WARNING » ورکړو، مګر دېره-

جاتو کمشنر بروس دومره مغرور ؤ، چې د ملا صاحب

لیک ته یې ځواب قدر هم ورنکړو، بناءً علی بروس دوزیرستان

دبرخې د پیورنلو دنش په نوم کړنې مشرؤ، بروس دکمیشن

چرمین ؤ، دوی دفوج په زور وانړا ته راغلل، ملا صاحب

بار بار دوی خبرول، چې ددې به سخت ردِعمل وي، مګر

پرنګیانو دغه هرڅه نظر انداز کړل، او غوږ یې نه پرکړو،

په دریم دنومبر ۱۸۹٤ کښې د ملا صاحب، په هدایت د جاګر محسود

عبدالرحمن خیل مختیار او مهتار محسود شمن خیل او زری بسند

وزیر ترکمان لاندې ۲۰۰۰ دوه زره محسودو او څه وزیرو

په پرنګي سحروختي برید وکړو ترسحره پورې لاس پړلاس

جنګ وشو، چې د پرنګي فوج یې تار په تار کړو، دېر

محسود او وزیر ځوانان شهیدان شول، مختیار خان او مهتار خان

دواړه ورونه وو، دوی ځانونو پورې کفن ګنډلے ؤ، د

شهادت په نیت راغلي وو، او ترهغې پورې جنګېدل چې

شهیدان شول، دوی دواړو به دغه چیغه ترکایځه پورې

وهله « چې محسودو په توره چې پرنګے درنه خلاص نه

شي » دغه خبره ساپرنا نا محسودو کوله چې ده په خپله

یې پکښې حصه اخیستې وه، «Safar Maresi Mahsud»

او بله یې دغه خبره کوله، چې څه وخت ملا صاحب دحملې حکم

وړ کړو نو ړېر داسې کمزوري محسود ښکاره شول، چې دوئ ځانونه دجګړې نه په دې بچ کړل، چې دوئ ملا صاحب آسپه ټینګه ونیوله، چې ته مشر یې دجګړې منیځ ته مه ځه خو په حقیقت کښې دوئ ددې په ذریعه ځانونه دجګړې نه بچ کول، او بل سړے یې یادوه چې هغه د ملا صاحب دآسپې لم نیولے ؤ، یعنې لکۍ یې نیولې وه، دغه سفرنا ناما په خپله لیدلې وه، چې ډېر زوړ ؤ، مګر دغه خبرې ما ته پلار کولې چې سفرنا نابه دغه خبرې کولې ."

## د وانا د جګړې متعلق پرنګیان څخپله دا سې لیکي:

Simultaneously Government decided on the permanent occupation of Wana, and for Wana Mr. Bruce started in October 1894 with a strong escort of troops. On reaching Karab Kot he received letters from Mulla Powinda pressing for the release of the Abdullai and Abdur Rahman Khel prisoners, and insisting that troops should not be located at Wana. Mr. Bruce sent a verbal reply declining to communicate with the Mulla except through the tribal maliks. What followed is a matter of common knowledge. A lashkar of about 2,000 Mahsuds attacked and a party of their swordsmen penetrated the camp at Wana some hours before dawn on the 3rd November, and was with difficulty ejected after severe fighting. The terms demanded by Government in reparation for this unprovoked attack were:

د دې نه اندازه لګي، چې پرنګیان یې څخپله مني، چې دغه ډېره سخته جګړه وه، هندوستاني عسکرو کښې دغه ځای د قتل ګړ په نوم مشهور شوی و.

پرنګیانو کوښښ کولو چې وزیرستان لاندې او کالونۍ ځینې تنې جوړه کړي، مګر د ملا صاحب په مشرۍ کښې محسودو او وزیرو د پرنګي دغه ټولې منصوبې د خاورو سره سمې کړې

## خپله پرنګیان دمحسودو په هکله لیکي:

The Mahsud Colonization Scheme continued to be failure and, by the standard of those times, a costly failure.

ترجمه: دمحسودو دلاندې کولو تړ اوسه پورې ناکام دي او دهغې وخت مطابق ډېر لوئ ګران ناکامتوب وُ، یعنې اقتصادي نقطه نظره. ملا صاحب ډېر خبر سړے وُ، او تر دې حده خبروُ چې بالکان کښې د ترکو مسلمانانو خلاف یورپي استعماري قوتونو چې کومې منصوبې جوړې کړې وې، ملاصاحب دهغوئ پربدل کښې د پرنګي خلاف په پښتونخوا کښې ورته هلې ګولې جوړې کړې چې پرنګیان ورته «عام اوسـتي پا خوږ واګ»

چې څه وخت وانه کښې پرنګي وهل وخوړل، او ملا صاحب د کربښې تیروللو ته نه پرېښودل او ورسره غزګانې یې کولې مګر د ملاصاحب د زور او طاقت یو حدو، پاس کابل کښې منافق امیر ناست وُ، او لاندې هند کښې ورته پرنګے ناست وُ، پرنګیانو دوانړو دجګړې نه پس په امیرصاحب باندې زور راوړو چې محسودو اوخاصکر ملا ته پناه ورنکړي. ددې نه پس حکومت هند محسودو ته دغه شرطونه وړاندې کړل:

1) The surrender as hostages of the eighteen leaders.
2) The expulsion of Mulla Powinda until demarcation was completed.
3) Restoration of all rifles, horses and money taken, or reparation at the rate of Rs. 500 for every missing rifle or horse.

ترجمه: (۱) هغه ټول اتلس سرغندي يعنې ليډران موږ ته د يرغمل په طور راکړئ.

(۲) ملا پونده تر هغې پورې له وطن نه وباسئ ترڅو کړښه « ډيورنډ لاين » نه وي مکمل شوے.

۳- ټول هغه ټوپکې او آسونه او روپۍ چې تاسو وړې دي بيرته يې راکړئ. يا د هر ورک شوي اس او ټوپک په ځاى ۵۰۰ روپۍ تاوان ورکړي.

د دوئ ۱۸- اتلس سرغندو نه مقصد هغه ليډران وو، چې دوئ په وانړه کښې حمله کړې وه.

د دې شرطو په اوريدلو او منلو نه محسودو انکار وکړو، بيا پرنګے ليکي:

Consequently on the 18th December 1894 Mahsud country was, for the third time, invaded by the forces of the British Government.

ترجمه: اخر کال په ۱۸ اتلسم د دسمبر ۱۸۹٤ کښې د برطانيه

فوجي قوت د محسودو په وطن باندې دريم ځل يرغل وکړو.

په وزيرستان باندې د څو اړخو حمله وشوه، ځينې فوج د بنو د غاړې نه حمله اور شو، بل فوج د ډېراسماعيل خان، ټانک، او دجنډولے د غاړې نه، دريم فوج دبلوچستان پورې (فوټ سنډيمن) او دوانو دغاړې راغئ.

ملا صاحب دپرنګي مقابله شروع کړه، مګر قبائيلي لښکر به څو مقابله کوله، دوئ امير صاحب ته يوه جرګه ورولېږله د مدد دغوښتلو دپاره، چې ته داسلام بادشاه يې زموږ مدد وکړه، امير صاحب ځان مرور کړے وُ، او ورته يې وويل تاسې زما نه منئ او بدمعاشي کوئ نو اوس يې خپله پالئ، امير خو د پرنګيو د ډېرې هيڅ نه شو کولے. نو ملا صاحب به کله يو ځاى کله بل ځاى کوريلايي حملې کولې. چې محسود دافغانستان نه نا اميده شول، نو پرنګي سره روغې ته تيار شول، دا ځکه چې پرنګي پرې بندش لګولے و، هيڅ خوراکي مواد يې وزيرستان ته نه پرېښودل نو د خلکو بالبچ وږي شوي وو، نو خلک تنګ شول، نو د ناکا مه دوئ ورته سر ولګاوه، د دې متعلق پرنګے ليکي:

This was the complete act of submission that the Mahsud have ever done, before or since: it was accompanied by complete acceptance of the government terms.

ترجمه: د غه د محسودو مکمل تسلیمدل وو، چې دوئ د دې نه نه پخوا داسې کړي وو، او نه د دې نه وروستو یې داسې وکړل، د غه کار دوئ د حکومت د خوښې او مرضۍ لاندې وکړو، د حکومت ټول شرطونه یې ومنل.»

مګر د غه کار پرنګیانو د خپلو مکارو تحصیلدارانو، او ملکانو په ذریعه کړے وُ، چې دوئ خلکو کښې مایوسي خوره کړې وه، چې ملا صاحب صرف او صرف وزیرستان ته پلی خوځی راولي، او صاحبان دومره نه وو چې دکابل بادشاه د دوئ داجازې نه بغیر متیازې هم نه شي کولے، ملا صاحب داوړو کښې وُ، ۱۸۹۵ کښې بیا په محسودو کښې راځرګند شو، او د دری محسودو جرګه یې په کاڼی ګرم کښې وکړه او پرنګي او افغاني امیر ته یې سختې غورې وکړې او امیر صاحب ته یې بیا وفد ولیږلو، او د محسودو د زړو غښتو لو د پاره یې نفسیاتي جنګ، د پرنګیانو سره شروع کړو ملا صاحب ته خو پته وه چې امیر افغانستان خو هیڅ کمک نه کوي، مګر خلکو ته یې ویلې ما امیر صاحب سره پټې خبرې کړیدي، په دې نفسیاتي پروپیګنډه باندې خلک بیرته تکړه او ګرم شول، او ملا صاحب شپځانو وړې وړې کوزټلانې حملې بیا په پرنګیانو شروع کړې، چې دې کښې به پرنګیان وژل کیدل،

يو ځل بيا ملا صاحب پدې برسشو، چې اولس کښې اعتبار پيدا کړي ، او د سرکار يې ملکانو هغه پروپيګنډې بې اثره کړې چې دوئ به کولې ، او بل چل پرنګيانو دغه وکړو، چې د وزيرستان سره لګېدلې دافغاني خوست دعلاقې حاکم چې محمد اکبرخان غاسي نوميده پرنګيانو دملا صاحب خلاف په رشوت واخيسته ، نو پرنګيانو به دغه بې ضميره او دلال افغان حاکم دملا صاحب خلاف لمساوه ، دې بدبخت او خرڅ شوے حاکم به ملا صاحب ته دپرنګي ايجنټ ويلو، چې په حقيقت کښې دے په خپله وُ ، نو چې ملا صاحب سره پښتنو قبائيلو کوم امداد کولو ، هغه به يې خرابولو ، يعنې دخوست دعلاقې، ځدران منګل ، تانړې ، او داسې نور قبائيل وو، چې دملا صاحب ملګرتيا يې کوله ، او پرنګي خلاف غزاګانو کښې شامليدل ، نو دے خوستي افغان حاکم اکبرخان غاسي به دغه پښتانه ځني بدظن کول ، له دې نه معلوميږي چې ، لندن، کابل او کلکته درې واړو سره لاس يو کړے وُ ، مګر ملا صاحب دلوئ همت خاوند وُ، دوئ تر ۱۹۱۳ پورې دپرنګي مقابله وکړه ، ترڅو پورې چې دوئ او د دوئ فوجي جنرال مان جي محسود وعبدالرحمن خيل ژوندے وو، نو دملا صاحب فوجي لاس مضبوط وُ ، مان جي محسود به هروخت په پرنګيانو حملې کولې، دوئ دپرځينې پرعذاب وو ، نو دوئ ديوه جنګ په دوران کښې شهيد شو، او پرنګيانو.

دومره پر خوشحاله وو، چې دوئ دده په مرګ پریس نوټ،
جاري کړو، پر نګے لیکي؛

At Tiarza, however, fortune was on the side of the Militia. They gave rather better than they got, killing three and wounding two of their assailants, and amongst the slain was Mianji himself, whose death was thought worthy of a press communiqué by the Government of India.

ترجمه:

دتیارزي په مقام دے ځل قسمت دملشي په اړخ ؤ، دے
ځل دوئ ډېر څه حاصل کړل په نسبت چې دوئ یې دومره حقدار
وو، دے ځل په حمله کونکو کښې ماڼجي ځنپله مړ شوے ؤ، او
ټول یې درې مړه او دوه زخمیان وو، دده مرګ دومره اهم ؤ
چې حکومت هند یو سرکاري اعلان ددوئ په مرګ خور کړو،
ددې نه پته لګي چې مانجي څه ورکوټی پښتون نه ؤ، هغه
پرنګی یو بل ځائے لیکي: Mianji wham if he had known

Mianji whom, he had known, if more of Islamic History, he might have dubbed Saif-ul-Haq, like a second Khalid.

ترجمه:

مان جي که چیرې داسلامي تاریخ ته ورېرخبروے نو ده ضرور ځان ته سیف الحق او دوم خالدبن ولید ویلي وو.

تر څو پورې چې ملا صاحب فوجي لاس مان جي ژوندے وُ، دوئ پرنګي دوزیرستان نه لرې ساتلي وو، مګر دمان جي د شهادت نه وروسته ملا صاحب په فوجي توګه خراب شو، دښمنان يې ورځ په ورځ مضبوطیدل، کابل، لندن، کلکته او خپل وزیرستان دننه ملکان دغه توڼل پسې وو، اخیرے وختو کښې پرنګیانو دده دخپلوانو او عزیزانو ترمنځ بدي جوړې کړې، دده زیاتر انرجي په دې روغوجوړ وخرڅه شوه، اخیر دغه لوئ انسان او پښتون د پرنګي اوافغاني منافیقو امیرانو دښمن ۲ نومبر ۱۹۱۳ کښې وفات شو، دده په مرګ لندن، کلکته، دهلي او کابل د ارام ساواخیسته، یوکال پس ۱۹۱٤ کښې اول نړیوال جنګ جوړ شو، که چیرې ملا صاحب ژوندے وے نو ده به یو لوئ کردار ادا کړے وے. د ډیرو خلکو شک دے چې دوئ ته زهر ورکړ شوي دي، چې په یکښې د پرنګي سامراج لوئ ایجنټ لاس وُ، "قلي خان خټک لاس وُ". د ملا صاحب مشر زوئ پکښې شامل وُ، د پلار د مرګ سره پټ ټانک ته وتښتید او د پرنګي سره پناه ګرین شو، د ملا صاحب کشر زوئ شهزاده فضل دین ته د مشرګړه پګړۍ وریرسره شوه، چې دغه وخت

دشهزاده عمر خوارلس کالـه وُ، د ملا صاحب لیکلی شوی وصیت
د دوئ په جنازه کښې محسوداو وزیرو ته واورلے شو.
د دې متعلق هم دغه پرنګي لیکلي :

This worthy read out to the assembled Mahsuds the farewell letter to this countrymen in which Mulla Powinda gave them some excellent advice. He exhorted them to hold their nationality intact and allow neither the British Government nor the Amir to encroach upon their country, to compose their internal differences and to give up raiding, so as to deprive Government of a convenient excuse for occupying Mahsud's country.

دغه اهم لیک را غونډه شوي، محسودو ته واورلے شو
چې ملا پونده دخپل وطن خلکو ته ډېرې ګټور نصیحتونه
کړي وو، ده ورته ویلي وو چې تاسو په خپل قوم کښې اتفاق
ساتئ، هیڅ یې برطانیه حکومت یا امیر ته اجازت مه ورکوئ

چې دوئ ستاسو وطن لاندې کړي، تاسو دخپلو مینځو کښې اختلافات او بې اتفاقي ختمې کړئ، ډاکې ماکې مه کوئ، ددې سره به تاسو دحکومت نه هغه پلمه یا بهانه لرې کړئ چې دوئ ستاسو دوطن دنیولو په تکل کښې دي.

ځائې: د ډهلي ارشیف نمبر فارن دیپارتمنټ سکشن ایف پرو سیلانک ۶۸- ۷۹- ۷۰ کښې محفوظ دے.

یو بل ځای لیکي :

Mulla Powinda's character cannot be judged by any standards current amongst Englishmen. By these he must be set down quite simply in Lord Curzon's phrase as a "first class scoundrel". But by those who have made allowances for the environment in which he lived, he cannot be denied some tribute of admiration as a determined and astute, though not altogether single-minded, patriot and champion of his tribe's independence. All officers who ever actually met him will agree that his forceful character, striking appearances and persuasive eloquence made a deep impression on those with whom he came into personal contact. A man who, without any inherited advantages and without education, could make so large an instalment of frontier history in effect but a series of chapters in his own biography, can have been no little man, and given more malleable metal to work upon than Mahsuds have ever afforded and a more fortunate setting in time and place, he might well have ranked with many who are accounted great men.

ترجمه : موبږه ملا صاحب پونده په موجوده انګریزی معیار باندې نشو ناپ کولے ، که چیرې په دې ئې ناپ کوو، نو ساده خبره ده ، هغه د لارډ کرزن دوینا مطابق اول نمبر بد معاش دے. مګر په حقیقت کښې هغه افسران چې دوئ ورسره طماس کښې راغلي یا ملوؤ شوي وی ، دوئ بتول پدې -

اتفاق لري چې د ده جوت اخلاق ځلنداو با اثره ښکاره کیدل او شخصیت یې په دوئ باندې بغیر اثر نه دي پاتې شوي، دوئ ټول ځینې متاثره وو، چې څوک په ربښتیا ورسره بن دې راغلي دي.

یوسړئ چې میراثي یعنې خانداني ملاتړ نه لري یا په بله معنیٰ په خپل سرئ شروع کوي، دچا ورسره امداد نه وي، او تعلیم هم نه لري، او بیا هم د سرحد په تاریخ کښې دخپل ژوند متعلق دومره اوږن ده با بونز جوړ کړي دا دځروکومي سړي کار نه دے، او په محسودو کښې داسې خلك ډېرکم پیدا شوي دي، او د دې نه مخکښې یې مثال نشته، خوش قسمتي، نه دے په سم وخت اوسم ځائ راځرګند شوے وُ، او د دې حق لري چې دلویو خلکو په قطار کښې حساب شي.»

د ملا صاحب مرګ د پښتنو د پاره او خاصکر د محسودو او وزیرو د پاره لوی زیان وُ، مګر د دوئ ځوان ځوئ، شهزاده فضل دین هم څه د پلا نه کم نه وُ، دوئ هم د پرنګیانو سره ډېر جنګونه کړیدي، د واسرائ هند دیوفقرې نه د هغه دقهر اندازه لګي:

The Viceroy in a public speech delivered on the 24[th] March announced that "the cup of their ( the Mahsud's ) misdeeds was already overflowing and the

day of retribution only delayed till our pre-occupations elsewhere should be relieved.

ترجمه: وائسرای هند په ۲۴ مارچ ۱۹۱۷ کښې يو عام خطاب کښې وويل:

"چې د محسودو د شيطانت پياله د ډکېدنې نه ډکه ده، د غاړې د موړګې پورې ډکه ده، ځينې نوينې يې، د دوی، غونډونه به موږ تاوکړو، څو که موږ چې کم ځای بنکيل شوي يو، چې را خلاص شو. د دې مقصد اول جنګ عظيم وو.

نو دوی چې را خلاص شول، نو رښتيا هم چې په وزيرستان باندې يې اورجوړ کړو، دومره سختې جګړې وشوې چې د لته بيان کول ځای نه لري نو صرف يو مثال يې ضروري ګڼم چې پر ننګې يې پخپله ليکي:

The advance was opposed by a strong contingent of Wana Wazirs as well as by the Mahsuds in full force, and it was not until the 16th February 1920 that Dwa Toi was reached and then only after such fighting as had never before been seen on the frontier.

فوجي يش قدمي په پوره ټوره سره دوانړه وزيرو او محسودو ايسارړه کړه، او ايله په ۱۶ فروري ۱۹۲۰ کښې - دوانتوئ ته ورسيدو، او دومره سخته جګړه وه چې د سرحد په تاريخ کښې چيرته مخکښې نروه ليد لې شوې.»
دتفصيل دپاره دې پتهان اليف کيرو وګورې »

دغه کښې وزيرمحسود د ځکه دومره سخت جنګيدل چې پاس افغانستان کښې انقلابي او په وطن او په قوم مين غازي امان الله خان دخپل بې خونده نيکه او عياش پلار په ځائ په قدرت راغلے وُ، چې دمحسودو او وزيرو سره يې هرقسم امداد کوو،

بل ډاکټرخان صاحب چونکه ډاکټروُ، دپرنګيانو فوج کښې وُ، چې پرنګيانو دده تبديلي وزيرستان ته وکړه، چې د دپرنګي عسکرو علاج به کوي، نو دې نرپښتون انکار وکړو او ورته يې وويل: چې زه پښتون يم، نه نشم ليدلے چې زما د لاسه روغ سپاهي دې په محسودو او وزيرو پښتنو ډزې کوي. نو دسرکاري نوکرۍ نه يې استعفٰی ورکړه.

دپونده صاحب په مرګ باندې يو نامعلوم محسود شاعرد دغه مصرعه ويلې ده: چې مې په مارو کې بو ندے

درے مسيد په کرځي        لکه نمانځه په بوبرے بوندے

# د باچاخان زېږېدنه ۱۸۹۰ء ماشوموالی او تعلیم

باچاخان پخپله لیکي: « زه په هشنغر په اتمانزو کې، کلي کښې په کال ۱۸۹۰ کښې پیدا شوی یم هغه وخت د پیدایش د نېټې د لیکلو رواج نه وو، او نه څوک په لیک او لوست پوهېدل زما د پیدا کېدو نېټه چا لیکلې نه وه، خو دا چې زه وایم چې په کال ۱۸۹۰ کښې پیدا شوی یم، د دې نه وایم چې خدای دې زما مور وبخښي ما ته ویل چې: « ستا ورور ډاکټر خان صاحب واده چې وُ نو ته دیوولسو کالو وې» او د ډاکټر صاحب واده په دسمبر ۱۹۰۱ کښې شوی دی، نو ځکه زه وایم چې زه په ۱۸۹۰ کښې پیدا شوی یم »

باچاخان څو ۱۸۹۰ کښې پیدا شوی دی، زه ۱۹۲۹ء کښې پیدا شوی یم، مګر زما هم میاشت او ورځ نده معلومه لسم مئ ۱۹۲۹ » دغه لسم مئ په سکول کښې ماسټر په تکل لیکلي دي، صرف زما دومره پته وه چې ۱۹۲۹ کښې زېږېدلی یم. د باچا خان تاریخ پدې ربښتیا دی، چې پښتنو میندو تر کال او څو کلن

معلوم وي، او بل دوئ لرېر رونه او حوبندي هم نه وو، چي موږ يې پکښې ګډه وډه شوې وايي، او بل باچا خان پر سخت په ګران وئ، نو دغه سوال نه پيداکيږي، چې ددې نيا زيين زوئ ستروالے حيثي هيڅ شوے وي. ټولو بې علمه قومونو کښې دغه حال دے، چې څوک دخپل اولاد تاريخ نه ليکي اوڅرنګې يې وليکي، چې دوئ په ليک لوست نه پوهيږي، خو دنشت برابر دي او خاصکر پښتنو کښې. اول خو قبائيلي ټولنه دے، چې دزراعت او مال څناورو سره موکار دے، نو دزراعت او شپني له پاره به دسبق ضرورت نه و، نو ځکه پښتنو تعليم نه نوچو . نه ده کړې، تعليم يې ملا صاحبانو پريښې وي، يورپ کښې هم صرف شاهي کورنيو کښې تاريخونه شروع شوي وو او شرق کښې هم شاهي کورنيو، درباريانو او ښار کښې تعليم يافته خلکو به دا کار کولو، مګر روستو دتعليم عام کيدو سره او د سرکاري نوکريو د ډېروالي په وجه نيته ضروري شوه، او بل فوجي او سول نوکريو کښې دبهرتي کيدو نه نړپښتن پورې د پيدا ايش تاريخ ضروري وئ، همدغسې په سکول کښې، پښتنو کښې نه دربار وئ او نه بيو راکرسی وه . لنډکرکښتي وي، چې ورته د مې ضرورت وئ، دتعليم نه وئ، همدغه وجه ده چې مشرق په مت باندې ډېره بهروسه کوله او يورپ په دماغ باندې، اخير موبره وباالله .

باچا خان پخپله لیکي: «زه د مور و پلار کشر زوی وم، د ټولونه مشر زموږ خور وه، ورپسې عبدالجبار خان «ډاکتر صاحب» و، بیا مې بله خور وه، بیا زه وم».

د ۱۸۹۰ مطابق د باچا خان مور او پلار ډېر روښن فکره خلک وو، چې دوی صرف په خلورو بچو باندې صبر کړی دی، کنې هغه وختونه خو ډېر بد ه، اوس هم پښتانه چې د یوې ښځې نه آټه یا لس ماشومان پیدا نه کړي، نو زړه یې نه صبرېږي، او ځان ورته میرات، میرات ښکاري، دوی په خانداني منصوبه بندۍ باندې د یورپیانو او امریکیانو نه سل کاله مخکښې عمل کړی وو.

باچا خان د مور ډېر نیازبین زوی و، او مور به د ده ته ډېره توجه کوله، او د ده هر فرمایش یې منلو، د دې سره باچا خان یو ضدي ماشوم جوړ شو، خپله خبره به یې هاروماره ځای ته رسوله، چې د غه نمونه عادتونه پدې کښې پاتې شول، دا ځکه چې ده یو ځل د خدمت اراده وکړه، نو مرګ پورې په ټینګ ولاړ و، ماشوموالي کښې یې مور او پلار په عذاب کړي وو، او چې ځوان شو هغه لوبه یې د پرنګیانو سره شروع کړه د ده د ماشوموالي نه د غه عادت جوړ شوی و، چې د دې دې د مینې او توجو مرکز وي، هم د غه نمونه کار تر ډیره دوام ورکړه، چې وروسته د مور و پلار د وفات نه پس دے د ټولې پښتونخوا او هند او د نړۍ د توجو مرکز شو، نو ځکه

ده خیل‌تسکین پدې کښې لیدو چې خدمت بغیر دمزده وکړي،
ده د هیڅ مادي نتمې لاندې خدمت نه دے کړے.

دباچا خان په وخت کښې مدرسې چیرته وې خو ددوئ والد صاحب ډیر رسیدلے انسان ؤ، چې خپل اولاد باندې یې دانګریزیه سبق وویلو. نه یوازې په باچا خان، بلکې ددهٔ نر مخکښې ډاکټرخانصاحب ؤ، په هغه زمانه کښې تعلیم چاختم کولو او خاصکر انګریزي تعلیم خلاف خو ډیر نفرت موجود ؤ، او بیا په عیسوي سکولونو پسې خو دا خبره وه چې څوک پکښې داخل شي، نو د دوئ مذهب ته واوړي، دغه خبرې نن سبا مونږ ته کپ سنکاري، خوسل کاله پخوا دغه فیصله، کول چې په اولاد باندې عیسوي سکول کښې سبق ویل، دټوکې خبره نه ده، او بل دباچا خان والدصاحب خانؤ، نوځکه مولوي صاحبان په سنکاره غلي وو، چې دوئ سره دخپل جیب غم ؤ، بنا غلی بهرام خان پخپله سخي سړے ؤ، نومولوي صاحبانو دغه جرأت نه شو کولے، چې خپل اقتصادي مفادات په خطر کښې واچوي، کنې که دغریب سړي زوئ وے، نو خدائ خبر چې مولوي صاحبانو به څه غویمنه جوړ کړے ؤ. باچا خان پخپله "ځماژوند او جدوجهد" نوکتاب کښې په تفصیل سره لیکلي دي:

"چې مور او پلار په سبق کښېنولم نو دوئ ډیر خوشحاله

وو، شیریني به وویشله، بیا لیکي چې دکلي سکول نه ډاکټرخان صاحب ښېښنو ته دځان سره بوتلم، هلته باچا خان دغریبانو سره ګرځېدو، د ده په زړه کښې د ماشومالي نه نفرت نه وُ، چې دغه عادت ئې مرګه پورې ورسره وُ، نوځکه ورورسته د ده خدمت په انساني بنیاد ونو وُ، د ده په ځکښې انسان انسان وُ، دے فرقه پرست نه وُ، چې ډاکټرخان صاحب په یوولسم جماعت کښې وُ نو باچا خان په شپږم جماعت کښې و، د نورو ماشومانو غوندې د باچا خان هم دلوبو سره شوق وُ، خو د یورپي لوبې نه زیات د ده مشرقي لوبه لمبا خوږه وه، دے لیکي: چې موږ به سیند ته نه پرېښودم، خو په غلا به لاړم دوه ځله هسې خدائے بچ کړم کني سین به وړے وم، خو- خدائے د باچا خان نه کار اخیسته، نو ځکه به خوک پیدا شو او دے به یې بچ کړو، دکور دکندو نه یې دانې اخیستې په اټو کښې یې ځان ته په سامان اخیسته، موږ به نش، دهرڅې په کولې، نو رخه یې نه ورته ویل.

چې لوئے شه، بیا یې د ملکه وکټور یا کندي ته ملا وتړله، موږ خو به دړکې په کولې، مګر ملکې وکټوریا دخپل کندي هند په کلکه حفاظت کولو، پر ګلیانو خپل کندي ته خوک په آسانه نه پرېښنوده، همدغه وجه وه چې باچا خان څو څو ځله جیل ته لاړو، مګر اخر یې دوئے له کندي نه وشړل.

باچاخان ترلسم پورې سبق وئیلي دے ، روسته څو څو ځله کوښښ وکړو، چې کمپل پور، قائدیان علي ګړکښې سبق ته دوام ورکړي . هان تر دې چې لندن ته دتګ اراده یې وکړه ، مګر دخپلې مور فیصله ته یې غاړه کېښوه، پاتې شو، که چیرې لندن ته تلے وے، نوانجینیر شوے به وُ ، نو د برطانیه خدمت به یې کولو، اونن به یې نوم ونشان نه وُ ، مګر خدائ پاک بابا دیواهم میشن دپاره پیداکړے وُ، چې هغه دخدائ دمخلوق خدمت وُ.

# دهغې وخت سیاسي ، اقتصادي او معاشرتي حالات

باچاخان لا درې کلن وُ چې دده هیواداوپه قوم باندې دتش په نوم ډیورنډکرښه تیره شوه، پښتون هیواد او اولس په دوو برخو. پرنګیانو وویشه ، لاندې پښتونخوا کښې پرنګي پخپله وُ ، په کابل کښې یې خپل ایجنټ امیرعبدالرحمٰن کېښنوو ، (۱۲ نومبر ۱۸۹۳ دډیورنډکرښې نیټه)

دپښتنو ټولنه دداسې حالاتو سره مخامخ وه، چې علاج یې مشکل وو،او بیا پرنګیانو لاندې پښتونخوا په څلورو برخو

تقسیم کړه ، یو حصه یې د پولیس او انګریزي قانون لاندې
را وسته ، چې بند و بستي ضلعې یا علاقې ضلعې یې ورته
ویلې . (۱) ضلع پېښور ، (۲) ضلع هزاره ، (۳) ضلع کوهاټ
(٤) ضلع بنو او (۵) ضلع ډېره اسماعیل خان ، بله لویه برخه
یې د برټش بلوچستان په نوم باندې جدا کړه ، او دریمه برخه
یې دقبایلي په نوم جدا کړه او ځان ته یې وساتله ، چې دغه
ایجنسیانې یې جوړې کړې : (۱) ملاکنډ ایجنسي ، (۲) مومندو
ایجنسي ، (۳) خیبر ایجنسي ، (٤) کرم ایجنسي ، (۵) نارت وزیرستان
(٦) جنوبي وزیرستان ، دهرې ضلع شاته یې یوه یا دوه قبایلي
علاقې وساتلې ، دغه ټولې علاقې ترقسما قسم اداري نظامونو
لاندې وې ، روستنۍ ریاستونه پسې ... جوړ کړل
چې هغه دیر ، سوات او چترال وو ، آمب او نورې ځینې ریاستونه
یا په باندې شول ، دغه دواړه ډېر وخت پاتې نه شول ، کوهاټ
او هزاره کښې مدغم شول ، چونکه پرنګیانو ۱۸۹۰ پورې هندوستان
داخل کښې مکمل ګرفت وو ، نو دوئ ټول زور په شمال مغرب
باندې راوړو ، د افغانستان نه خطره نه وه صرف د روس
بند و بست یې کولو ، هند کښې سیاسي جماعتونه نه وو ، که څه
هم کانګرس بنیاد ۱۸۸۵ کښې یو پرنګي ایښې وو ، مګر کانګرس
یا رنړې او سیځنې کښې وو ، مسلمانو ۱۸۵۷ کښې داسې وهل
خوړلي وو ، چې د حکومت نښه ځینې وتې وه ، تش د پرنګي د-

چپلوسۍ نه بغیر بل کار یې نه وُ، سرسید احمدخان دپرنګي هند کښې لوئ ایجنټ په شکل کښې ښکاره شوے وُ، په ټول هند کښې د پرنګي فوجي، اقتصادي، سیاسي او کلتوري مکمله قبضه وه، پښتانه دافغانستان نه جدا کړے شوي وو، د پنجاب سره تړلے شوي وو، دوئ هیڅ مرکزیت نه درلوده پرنګي لاندې خانان، نوابان او باباګان په دوئ باندې سواره کړي وُ، ریاستونو کښې نوابان او ولیان ټولواکُ وو، اودپرنګي دپاره یې هرشي ته سینه ډبوله، پاس قبائلی علاقوکښې قبائلي ملکان وو، چې دوئ به د برطانوي فوج ته لاربښود نه کوله، چې فلانی مجاهد چیرته اوسي، او څرنګې اوسي، د دې بدل کښې به پرنګیانو ورته مراعات ورکول، اومختلفو قبائلي علاقوکښې به یې جنګونه جوړول، چې د پرنګي نه ددوئ مخ اوړیدلے وي. او بل کار د دوئ داوُ چې قبائلي علاقونه به دوئ په لاندې ضلعو باندې ډاکې کولې، چې دغه د پرنګي چل وُ، چې لاندې او باندې پښتنو په منځ کښې به یې نفرت اوکرکه جوړوله، چې ددوئ اتفاق راشي، او بل یې ددې په ذریعه په قبائلي علاقو باندې فوج کشي کوله. درات نه به سرے پراري شو، نوقبائلي علاقوکښې دملك سره به وُ، لاندې پښتانه به یې په عذاب ول، او پرنګي به سترګې په پټې وې، داځکه دغه نمونه خلق زیات تراخلاقي

مجرمان یا د باسکر یعنی اجرتي قاتلان وو. نو په داسې نمونز خلکو باندې پرنګي غوږ نه ګرولو، داځکه چې د پرنګي په مصلحت به دغه کار کېده، او که چیرې داسې څوک به پیدا شو چې د پرنګي یا د دوئ د دلالانو نه بغیر به یې جرم وکړو، نو قبائیلي علاقې څو پر ښ ده، په کابل کښې به پرنګي ورپسې وُو. د لاندې پښتنو ملي خلکو ته د سره اجازت نه وُ، چې خپل عزیزو پښتنو ورونو سره ملاقات وکړي، او یا دوئ ته لاړ شي، کلکتې تر اجازت وُ ورته مګر د چارسدې نه مومندو ته اجازت نه وُ، هغه د پرنګي ایجنټان، د پیر، میا ن او ملا په شکل کښې آزاد قبائیلي علاقو کښې په ګرځېدل، دوئ به وخت په وخت د سمې او غرږ پښتانه د یوبل خلاف استعمالول، او د دوئ په منځ کښې به یې توره شپه ساتله، چې یو بل سره و نه پېژني، د افغانستان د سمې پښتنو رابطه یې د قبائیلو سره په ذریعه تر ډېره حده پورې قطع کړې وه، د دوئ په منځ کښې سیاسي، ملي غورځنګ کرنټ نه تېریدو، داځکه چې قبائیلي سیمې « Non Conductive » کردار ادا کولو، د بنو یا ډېرو پښتنو ته د لندن تګ کښې خطره نه وه، مګر میرانشاه او وانړه ته تګ د خطرو نه ډک وُ. که څه هم وانړه او میرانشاه د دوئ نه سل کیلو میټره لرې وو، او لندن په سمندر پورې یورپ کښې وو، داځکه پرنګي ته دغه خطره وه چې هندي سیاسي غورځنګونه قبائیلي علاقو ته لاړ نه شي، نو ځکه

دوئ دلاندې والا بنده کړي وو، دپاسه والا آزاد وو، د پاسه به چې څوك راكوزيدل هغه به ياد پرنګي ملك وئ، يا غريب مزدور اويا بائيرزان وو، چې خپل پړي، مزري او- څودتان به يې خرڅ كړل، بيا به په منلوه داوښ مار به يې ينوي وئ، بيرته به تلو نو څكه پرنګي ته د ده نه هيڅ سياسي خطره نه وه، د هغې وخت مطابق دلاندې پښتونكښې هيڅ سياسي ګوند يا حركت نه وئ، دوئ د داسې مالړن حكومت سره مخامخ، شوي وو، چې دوئ حق حيران وو، باندې پرنګي وو، او لاندې دپرنګي سره راغلي هندوستانيان وو، چې دوئ دپښتنو په هرڅه قبضه كړې وه. دچپړاسي نه ترتهانيدار اودكچهري وكيل پورې هندوستانيان وو، اوغوړې، غوړې نوكرۍ دپرنګي سره وې، دپښتنو سره نه دپرنګي مينه وه اونه د هندوستاني.

دپښتنو خپله روايتي بتولنه په ماتيدو وه، نورې باندې يا دوئ دپسره نه پوهيدل، دزمكې تقسيم د دوئ پخوا قبائيلي او پښتونوالي په ذريعه وو، چې دوئ يې په چل ول پوهيدل اوس دزمكې تقسيم دپټوارې، كانګوئ، تحصيلدار په لاس ورغلل، چې، دوئ به حق اوحقدار ته نه كتل چې چا به ډېرې پيسې وركړې دهغه په نوم به زمكې وې، پرنګي هم ستركې په پټې كړې وې. نو پښتنو دكاغذ په ذريعه دخپلې زمكې نه چيرته لاس اخيستو، نو دې كښې به جنګونه جوړ شول، مړي به وشول، چې دد ې،

سړي به د تهانیدار، وکیل غوا لګه شوه، دوی به حقدار پهانسي کړ او مجرم به ژوندے ګرځیده، چې څوک به جیل ته لاړل دغه به یې بله ورامه وه، داځکه چې پښتو نوالي کښې خو جیل نه ؤ. دروغې جوړې دوه طریقې وې، یا به یې د مړي پوره «قیمت» ورکړ شو، یا به بدل ؤ، او س دریمه لویه جیل هم پکښې پرنګي را وستو، چې پښتانو ې دخدائ په قهر ککړ کړل، د مقدمې دوران کښې بر رشوتونه وو، چې مقدمه به شروع شوله نو نه به تهانیدار پښتو وله نه وکیل او نه مجسټریټ، پښتون به حق بق کچې و کښې ولاړ ؤ او ناروی یا خپلوان به یې ورته قید او یا پهانسي کړو، نو ده به خپله بې وسي د تشدد په زور ځای ته رسوله، چې هغه به پرنګے یا هندوستانیان نه وو، بلکې خپل هغه پښتون دښمن به ؤ، چې دده ناروئ یا وروړ به یې وژلې وه، نو دوئ به دخپل شتمنۍ نه خلاص شول، بیا به د پنډیټوب دپاره بمبۍ یا کلکتې ته روان وو، دوئ کښې تجارت نه ؤ، تعلیم نه ؤ، کلیوال ساده ژوند ؤ، د پاسه داورګاډي، دکارخانې، د موټر او لارې یورپي تهذیب په سور شوے ؤ، چې دوئ خو پرېږده، د هندوستاني سړي یې علاج نه ؤ.

دوئ پرنګي ته یو اړخ ته حیران وو چې دومره ترقي یې کړې ده، بل اړخ ته یې نفرت ځینې کولو چې دوئ سړي یې

ظلمونه کول، دوئ خام مال، پنجابي سیکهـ هندو او پنجابي مسلمان د پرنګي دکارخانې له پاره اخیستو، او دوئ باندې به بیې د پرنګي دکارخانې جوړ مال خرخولو، دوئ تر د خپل خام مال ګټه اخیستې شوه، نه د پرنګي دتیار مال نه دې دواړو باندې هندوستاني قبضه کړې وه، او بلکلي پرکلي به د پنجابیانو دوکانونه وو، د پښتنو په اقتصاد باندې داسې پراته وو لکه ژورې، دوئ به پښتنو تر ویل چې پتهان سړه تله بده ښکاري، ځوپک ورسره ښه ښکاري، خان به د لوږې مړکېده، مګر کاروبار یې سپک ګڼو. او داپته او درګئ نه وُ ورته، چې د اقتصاد په دور کښې ښکیل شوے دے چې پرنګئ نن که مستي کوي، خو د تجارت په زور یې کوي، مګر د پښتون دماغ کښې هندوستانیانو دغه هوا ورد ننه کړې وه، چې خان ګنوے کښې سپا نړسي ښه نه ښکاري، دوئ هوښیار وو، که چیرې پښتون کاروباري شوے وے، نو د دوئ کاروبار ټپ کېدو، پښتون دشته خاوند کېدو، د مرګئ ژوبلې نه یې فکر بل اړخ ته بدلیدو نو دوئ دې کښې خپل اقتصادي مرګئ لیدو. نو ځکه یې پښتون د تجارت نه لرې ساتلو د پاره دغه نموند خیرې ورته کولې.

د یو قوم ژوند پدې په مخ وړاندې ځي، چې هغه

تعلیم تجارت کوي، د تعلیم سره ده کښې پوهه راځي چې د مذهبي او سیاسي ګنډکپانو نه دوئ ځان ساتلی شي، ښه او بد کښې ورته فرق معلومیږي، که چیرې یو قوم لوستی نوي نو د دغه نمونې ګنډکپانو ډیرې وي، موږه پښتون قوم تل دغو ګنډکپانو د خپلو شومو غرایضو د پاره استعمال کړي. یو دوئ موږه په مغل، سیکه او بیا وروستو په پرنګي ځنځ کړي یوو، او ساده خلکو د پاره به دوئ همیشه د اسلام پاک نوم استعمالولو، دا ځکه چې موږ کښې جهیل وُ، تعلیم نه وُ، او ټول ورځې پورې موږه په دې موږ ي تیندکونه خوړو. اوبل تجارت نه وو، زموږ پر اقتصاد پردیو قبضه کړې وه. نو ځکه زموږ ټول ځای په ځای ولاړو.

تورو تیارو کښې ډوب وُ، او زموږ اقتصاد ډېر پسماندہ وو «PRIMITIVE» یعنې صرف زراعت او رمې وې، چې زراعت کښې به جګړه همیشه د همسایه قبیلې سره راتلې، او د کورنۍ د ننه د تره ځامنو سره چې موږ ورته تربوران وایو، نو اقتصادي پسماندګي په وجه زموږ یو ډله هم په خپل کور کښې وے د رمې د پاره څرځمکې پکار وې، چې د دے باندې به همیشه پښتانه سره په جنګ و، نو موږ کښې به هروخت بې اتفاقي وه، د تربورۍ په مرض اخته وو، که چیرې موږه تجارت کولے، او دکانې وټې یا ذریعې مو د زراعت او رمې نه علاوه نورې خپلې کړې وے، نو زموږ دغه کورنۍ

ځنګړې به تر ډېره حده کمې شوې وائ، داځکه چې دکان یا دمنډۍ دپاره ضروري نه ده چې خاځا د پې دپښتون سره پوله ولګي، کېدای شي چې همسایه دی د بنګال هندو یا د تجارت پېشه ورد عاشي، نو که څنګ راځي هم، کم ان کم دخپلو کورو والو سره به دې نه راځي، چونکه موږ قبائلي ټوټه درلوده، نو اقتصاد موهم قبائیلي و، چې څوک تعلیم نه کوي، هغه ښار کښې ټونډ هم نه شي کولی، ولې پداه چې ښارې ټونډ په کاروبار اوکسب باندې روان وي، او چې څوک ښاري ټونډ نه لري، هغه د تهذیب د نقطه نظره مخ په وړاندې نه شي تللی، اوکلیوالي تهذیب او ټ به همیشه د ښاري تهذیب نه ماتې خوري که څه هم قبائیلي ټوند او خلک په فوجي لحاظ بها در وي، مګر دوئ ربښتوني او ساده وي، ښاري خلک پېرزره شاله او دخولې نه پاسته وي، او کیلوال خلک په خوله شاله او په زړه کښې مهربان وي، هله غروجه وه چې دبا چا خان د ځوانۍ په وخت او روسته هم د پښتنو ټولنه ډېره ګډوډه وه، دخلکو ټوند محفوظ نه و، داځکه چې دوئ نه پښتونوالی بحیث قانون یعنې جرګه یی سیستم پرېنکي لرې کړو، او خپل سرکاري جرګه سیستم یې په دوئ باندې په زور ور وتاپه د دوئ جمهوري جرګه یې په ډیکټېټرشپ بدله کړه او تش نوم یې د جرګې په کښنود، داځکه چې پرېنکي د دې په ذریعه خپل، دښمنان ټکول غوښتل، د دې سره ټولنیز مرضونو زیات شول

کم نه شول، پولیس به دخپلې ګټې د پاره دومره په زوره او بلې دپاره نورهم دې مرضونو ته ملن وهله. چې باچا خان پخپله لیکي: چې یوې بلې ته پرنګي ته دعاکړې وه، چې خدای دې تباهېدار کړه، داګه چې کلیوال خلکو د پاره خو واشراېي هند دخپلي تباهې تباهېدار و، او د موقع افسر، دموقع افسر پورې یوه خبره رایاده شوه، یو ځل څوک پاکستانی وزیر وانړ ته راغلی و، په هوایي ډګر پولیټیکل ایجنټ ورته ملکانان د سترې مشي د پاره ولاړ وو او دوی ته یې دکلاڼو منۍ (هارونه) ورکړي وو چې وزیر ته به یې اچوي، وزیر چې راغلو نو ملکانو منۍ وراچول چې دې کښې یو ملك د وزیر په ځلې کمشنر ته مني ورپرغاړه کړه، پولیټیکل ایجنټ پټ تومبلي وه، چې غلط شوې، دغه وزیر صاحب نه دی. ملك ځواب ورکړې و، چې بنه یې پیژنم، خو وزیر به نن وي سبا به نه وي، دغه بل یعنې کمشنر د موقع افسر دی، نو ځکه مې دغه کار وکړو، چې خوشحال وي.

باچا خان رستو خپل سیاسي ژوند کښې زیاته توجه معاشرتي مرضونو ختمولو ته ورکړې وه، چې ورمعلوم وو چې دغه بنیادي کار دې، ددې ګډوډي په وجه پښتنو کور د تشبیه دکور جوړ شوی و، پرنګي او هندوستاني نورو ملن ورته وهله، میلو کښې به جګړې وې، په زمکو به مرګونه

وو، چې پښتون به څه کړل، د تهانیدار، وکیل او کچهرو دوا به شول، دے به دخپل تشدد په وجه بربنډ پاتې شوے وُ، باچاخان څرګندولیکي: چې د دې سره پښتنو کښې دروغ او چغل خوري مرضونه راغلل چې څخکښې په دې پیانه نه وو، یعنې دباچا خان په حُوا نه کښې پښتون قوم سیاست نه درلوده، نه یې اقتصاد وُ، او معاشرتي توګه نور پهوړ سره مخامخ وو، او لنډه خبره داده چې د مرضونو جاله جوړه شوې وه.

# د باچاخان اولنۍ هلې ځلې او اول ځل قید

## (۱۹۱۰ء - ۱۹۱۹ء)

دغه خبره اوس معلومه خبره ده چې باچاخان د سکول په زمانه کښې د انسانانو په منځ کښې فرق نه کولو، چې د کوم مذهب، رنګ یا نسل نه تعلق لري، او بل دے په خپله منی چې دے خپل سکول د هیډ ماسټر نه ډیر متاثره شوے وُ. چې دیو پردي قوم سړي د هندوستانیانو خدمت ترملا تړلے وه، او خپلو هندوستانیانو کښې دغه نمونه جذبه نه وه، دغه فکر او سوچ په خپله ډیر لوی قدم دے چې یو ماشوم یا هلک کوي، او دغه فرق ایستلی شي ځکه چې دده د عمر تقاضه خو دغه وه چې خپلې لوبې یې کولے. دغه نمونه پخو پخو خبرو ته یې د سړي پام هم نه وے، مګر خبره داسې نه وه. باچاخان که څه هم هلک وُ مګر پلار یې خبره یې فکر او سوچ کولو، نو ځکه ده کښې د ابتدا نه د خدمت کولو شوق پیدا شوے وُ. او چې څوک خدمت کوي هغه خلک خود غرضه نه شي کیدے چې خود غرضه نه وي نو داسې نمونه خلکو کښې جرأت وي او دوئ د کلک نه کلک او د لوئ نه لوئ قوت خلاف راپورته کیدا سے

شي، هدغه وجه وه، چې بارانی کاکا باچاخان گرم کړے وُ چې فوج کښې د هندوستاني او پرنګي فرق نشته. مګر باچا خان چې ولیدل چې داسې نه ده، نو دهغې وخت مطابق دېره لویه عهده ته یې لته ورکړه، د خپلو خپلوانو پیغورونه یې هم په ځان واخیستل، مګر د ذلت ژوند او منصبداري یې قبوله نه کړه، دغه پخپله د یو سوخ کریکټر دلیل دے ګنې په ځوانئ کښې څوک داسې خبرې په غوږو واوري او په بل یې اوباسي، مګر باچا خان داسې نه وُ، بلکې د خپل قوم بې عزتي یې نه شوه برداشت کولے.
( Resistance ) بغړي پکښې راوښي شو، دا ځکه چې د ده دپاره تور او سپین ټول یو شان انسانان وو، چې ده ولیدل چې پرنګي فرق پکښې کوي، نو نتیجه یې دا شوه چې ده دغه فوجي عهدې ته لته ورکړه او ژور سوچ کښې لاړو، د غلامۍ او بادارۍ په مسئله یې سوچ او غور شروع کړو، مګر د سے ډېر ځوان وُ، نو ځکه ده ته ډېره تجربه او مطالعه پکار وه، چې د هندوستان او خپل پښتونو ټولنه وڅیړي، ځان ښه په پوه کړي، او داسې کارونه په یو سرهم نه شي، هدغه تلاش وُ چې باچا خان یې ورځ په ورځ - خپل ځان ته راکش کولو، دوخت سره یې سترګې غړید لے ورځ په ورځ او کال په کال ورته مرضونه جوتېدل، نو د داسې

خلکو په تلاش کښې شو، چې هغه خلک هم زر ورمونډل شول، چې دوئ هم دده په شان سوچ درلوده، چې هغه حاجي صاحب د ترنګزو، او ورسره نور ملګري وو، چې د باچا خان د سفر ملګري شول، که څه هم اول سر کښې باچا ددوئ د سفر ملګرے شو او رو سته باچا خان دغه میشن عروج ته ورساوه. باچا خان ابتدائي دور کښې د مخفی صاحب نه ډیر متاثر شوے دے، نو ځکه یې دخپل کتاب (زما ژوند او جهد وجهد) دپاره یې د مخفي صاحب نظم خوښ کړے دے، مخفي صاحب دخپلې نوکرې په وجه پرنګے ډیر بد یې نه پیژندلے ؤ، نو ځکه دده عقیده پخه وه، د پښتون ملت، سره یې مینه درلوده، همدغه مینه باچا خان هم درلوده باچا خان لیکي: (نوے میدان تازه افکار روښنفکرو سره تعلق) مخفي صاحب، مولانا عبدالعزیز، مولوی فضل ربي او مولوی تاج محمد صاحب، دغه خلور یاران دده دابتدائ سیاسي اومعاشرتي و دې ذمه وار بریښي، دغه ټول پښتانه وو، ښه تعلیم یافته خلک وو، دیني او نیاوي تعلیم یې کړے ؤ، دوئ خبر خلک وو، دغه د باچا خان خوش قسمتي وه، چې دے ددا سو خلکو په لاس ورغئ، چې دوی د باچا خان نه داسې ملغلره جوړه کړه، چې نه صرف په باچا خان په جهان کښې نمودار شو، بلکې دده په ذریعه دوئ هم تاریخ کښې

روښانه شول باچاخان پخپله د دوی متعلق لیکي: ( زما تعلق د فضل محمود مخفي صاحب، مولوي عبدالعزیز د پکلي، مولوي فضل ربي صاحب او مولوی تاج محمد خان صاحب د کودر د دارالعلوم مهتمم سره پیدا شو، مولوی تاج محمد صاحب د بغداد ادے وُ، د بی-اے - A - B تعلیم یې وُ، او مذهبي تعلیم پرې د پاسه وُ، په اسلامیه های سکول پېښور کښې سکنډ ماسټر وُ، مولوی صاحب فضل ربي د پکلي وُ، د دیوبند سند یافته وُ، په ریښتینو معنو کښې عالم او قام پرست سړے وُ، مولوی عبدالعزیز صاحب زما اشنا او د سبق د ملګري عبدالحلیم ورور وُ، په بوپال کښې یې تعلیم کړے وُ، دا تمان زود لوی ملا صاحب د خاندان وُ، او فضل محمود مخفي صاحب د چارسدې وُ، میټرک پاس او انقلابي شاعر وُ، ( دوی په ما کښې قومي جذبه بیداره کړه ) باچاخان کښې دغه جذبه له پخوا نه وه، مګر د دوی سره د تعلق په وجه یې پولورئ واخیست، هغه دیرنګي خلاف دیو اوږد جهد وجهد اغاز او پیل وُ، چې د دوی په ذریعه د باچاخان پیژندګلوي د دیوبند مکتب فکر ضد سامراج - عالمانو سره جوړه شوه، چې شیخ الهند محمود الحسن صاحب او عبدالله سندهي غوندې عالمان او قوم پرسته خلک وو، یا په بله معنی د سید جمال الدین افغاني د هغې سیاست او کړه برکت وُ، چې ده په ټولسمه پیړۍ کښې د طاغوتي قوتو خلاف

کړے وُ، مصر او ترکې کښې، ایران او هندوستان کښې پانِ
اسلام د پارة خلك روزلي وو، هم دغه وجه وه چې هندي
مسلمانان په دوه ډلو تقسیم شول، چې یوه د پرنګي ډله
وه، چې د دوی مشر سر سید احمد خان وُ، او د دوی مرکز
علي ګړه وُ، دغه بله ډله چې روحاني مشر یې سید جمال الدین
افغاني وُ، چې روستو هند کښې د دیوبند مکتب فکر په
شکل کښې راښکاره شول، چې دوئ اصلي مسلمانان او ضد
پرنګي خلك وو، د علي ګړه مکتب فکر مسلمانانو خیال وُ، چې د
پرنګي په چپلوسه کښې مو ګټه ده. د دیوبند مکتب فکر علما نو
مرام د پرنګي خلاف ژباني عملي او مادي جهاد لاړه وه، او
دې لاره کښې چې څوك و رسره ملګرے کیدو، دوئ یې مذهب
عقیده، او دین ته نه کتل، هم دغه وجه وه چې دوئ هندوستان
کښې هندوستاني قوم پرست مسلمانان وو، او خارجي سیاست
کښې د پانِ اسلام طرفدار وُ، خو غټ مقصد د دوئ مسلمان
ملت هند کښې او اسیا افریقه کښې د پرنګي او فرانسوي یا په بله
ژبه دیورپي سامراج نه آزادول، چې مصر او ترکې او ایران،
کښې د دوئ د سوچ خلك وو، د سر سید احمد خان سیاست،
بنیاد په فرقه پرستۍ باندې پروت وُ، دوئ د هندو او مسلمان،
مسله دومره اهم کړې وه، چې د خارجي دښمن پرنګي خلاف
یې هیڅ هم نه ویل. بلکې هغه کار یې کولو چې پرنګي پرې خوشحاله

کیدو، چونکه پرنګي اول هندوته اهمیت ورکړے وُ، نوهند-
وانو زر په تعلیمي اواقتصادي لحاظ ترقي وکړه، اودپرنګي
دپاره خطره شوه، چونکه مسلمانانو نږبې حکومت او واکُ ا-
اخیستې وُ، نو دوئ یې اول سر کښې ښه وه بول، د
حکومت نشه یې حُیني وایسته، چې هندوان بیدا ریدل، نو
مسلمانان یې پسې راپیدا کړل، داځکه چې اوس د مسلمان ورته
ضرورت وُ، نو سرسید احمد خان دخپل استاد پرنګي
په خواهشاتو ښه پوهیده، نو ځکه یې فرقه واري را
وخیسته، او د دوئ دتعلیم او سیاست غټ مقصد داسې وُ،
چې مسلمانان د هندوانو نه هله ژغورلے شو، چې پرنګے موجود
وي، که چیرې پرنګے لاړو نو هندوان به له مونږ نه دزړو کالو
بدل واخلي، نو د دوئ مکتب فکر او د یوبند مکتب فکر کښې د زمکې
او اسمان فرق وُ، یوه ته پرنګے دوست او نجات د هنده ښکاریده
او هغه بل ته پرنګے د مسلمان قوم اول نمبر دښمن ښکاریده،
نو باچاخان ملګري هم د دیوبند مکتب هم فکره وو، باچاخان
هسې هم قوم پرست وُ، او چې څه کمی وُ هغه دغو کسانو
پوره کړ، چې رو ستو د باچاخان ټول سیاست ژوند د د بې
چاپیر ګرځي، که چیرې باچاخان د سر سید احمد خان او علي
ګړ مکتب فکر په جال کښې ګیر شوے وے. نو نن سبا باچاخان
دجناح لیاقت علي خان دې په ډله کښې وُ، او دے به ضد استعمار

نه وُ ، بلکې يوېل صاحبزاده عبدالقيوم په ځينې جوړ شوے ،
وے ، چې هغه هم اسلاميه کالج جوړ کړو ، چې ورته
د صوبه سرحد سرسيد وايي ، چې د روس کيپل دو يار وُ ،
مګر بيا هم دومره بې خونده نه وُ ، لکه سرسيد احمد خان ، بيا
هم چې نه څه د پښتون ضدِ استعمار وينه پکښې وه ، چې سبه
مثال يې ۱۹۲۰ کښې خدای خدمتګار د پرنګي د خطرناکي ادارې
نه خبر ول و ، نو ځکه باچا خان د ديوبند د عالمانو سره کلکه رابطه
وساتله ، د د وی د ياره قبائيلي علاقو ته لاړو ، چې د پرنګي
خلاف يو جنګي مرکز جوړ کړي ، دا ځکه چې سلسله پېړه
بلاربه ستوې وه ، نو اول چې يې اول جنګ عظيم په شکل کښې
پيدا شو ، نو د هند قوم پرست عالمان د دې جريان نه خبر
وو ، نو دوی غوښتل چې دغه په مناسب وخت وي ، چې
په پرنګي ګزار وشي ، هم دغه وجه وه چې لوی مجاهد
حاجي صاحب ترنګزو اول بنير ته د جهاد په غرض ۱۹۱٤
کښې لاړو ، بيا د مومندو وطن ته لاړ و ، چې د پرنګيانو
د ياره سر در د جوړ شو ، او ډېرې غزاګانې يې وکړې ،
باچا خان چونکه لا ډېر ځوان وُ ، نو دے هغه معراج
ته نه وُ رسيدلے ، چې خپل سياسي ګوند جوړ کړي
يا خپله لار واخلي ، نو ده ځکه اول سر کښې تعليم يافته خلکو
او پيرانو ، مولويانو پسې منډې ووهلې ، چې دوی وار په

واړ وړ معلوم شول، نو رو، رو ورته په خپل ځان باور کول،
ورنه ضروري بشکاره شول، مګر داول دریم وال جنګ په وجه دغه
خبرې پاتې شوې، او بل حاجي صاحب قبایلي علاقو ته تللی
و، او پرنګیانو هم سختي جوړه کړې وه، چې پښتانه راپورته
نشي، مګر باچا خان دخپلو ملګرو چې دوئ قبایلي علاقو کښې
وو، اقتصادي مدد کولو، د دریوال جنګ نتیجه د پرنګي په حق
کښې وخته، ترکې خلافت ماتې وخوړه، عرب د پرنګیانو او-
فرانسویانو په لاس وراغلل، او په روس کښې اشتراکي انقلاب
راغئ، زاري روس ختم شو، او ځل د پاره د مزدورانو او
کسانانو مشر لینن په مسکو کښې په قدرت ور سېباو، چې د
دې سره د سرمایدارو او سامراج ملکونو د پاره په فوجي توګه
او په نظریاتي توګه سیاک پیدا شو، د افغانستان د روس سره
سرحد یعنې برید محفوظ شو، او س افغانستان کښې د بدلون
د پاره لاره ورځ په ورځ هواریده.

# دریم افغاني پرنګي جنګ
# (۱۹۱۹ ع)

اول جنګ عظیم کښې روسان، پرنګیان، فرنسویان او
امریکنیان او ورسره جاپان، اټلي او نور واړه واړه هیوادونه
یوې غاړې ته وو، او بلې غاړې ته ترکیه عثمانیه خلافت،

استریا هنګري سلطنت، او جرمن سلطنت». اول جنګ یا جنګ عظیم کښې د افغانستان پوزیشن داسې و چې خارجه سیاست یې د پرنګي سره و، امیر حبیب الله خان د امیر عبدالرحمن خان زوی، او امیر امان الله خان پلار ۱۹۰۱ نه په قدرت و دے یو عیاش او کاهل . امیر و، د جنګ نه زیات یې د زیاتو شرابو بنځو او ښکار سره یې مینه وه، د ټوپک په ځای به ورسره کیمره او بنه وتلی فوټوګرافر و، نو دده په دربار کښې دا نمونه خلک وو، چې ځینې د امیر صاحب طرفدار وو، د غیرجانبدار سیاست روېه یې غوره کوله. دوی بشمول امیر صاحب سره هم خیال د بے طرفه سیاست پلویان وو، چې افغانستان تر دجنګ نه زیاته بې طرفی کښې ګټه ده، بله ډله د قوم پرستو وه، چې د دوی خیال و چې په پرنګي اوس د ګزار کولو وخت راغلے دے، په قوم پرستو کښې زیات تره هغه افغانان وو، چې د دوی پلرونو د امیر عبدالرحمن خان د ظلم او ستومانۍ نه هیواد پریښی و، څوک هند ته، څوک ترکې ته تلي وو، دد وی اولاد و نو د نوې زمانې مطابق تعلیمونه وکړل، د جهان نه و پرخبر وو، چې څه وخت ۱۹۰۷ کښې امیر حبیب الله خان عامه معافي اعلان کړه، نو دغه نوی تعلیم یافته افغانان د خارج نه بیرته افغانستان ته راغلل، چې د دې افغانانو کښې طرزي صاحب هم و، د طرزي صاحب پلار ۱۸۸۰ کښې د امیر عبدالرحمن خان د ظلم

او مرګ ژوبلې نه هند ته تښتیدلے ؤ، بیا بغداد ترکې ته تلی ؤ، او اخیر د مشق شام ترکې عثمانیه کښې اباد شوے ؤ، نو هغه وخت لا لوئ ضد سامراج سید جمال الدین ژوندے ؤ، نو د طرزي صاحب پلار ورسره لید لې کتلې کیدې او طرزي صاحب په دې زمانه کښې هلک ؤ. خو د لوئ افغان سید جمال الدین خوی یې قبول کړ، محمود طرزي صاحب د نوې زمانې سبق په دمشق او استمبول کښې وویلو، نو د یورپ د تاریخ او معاشرتیا ژوند سره ښه بلد شو، هم د غسې نور هم افغانان. نو د قوم پرستې ولې مشري په کابل کښې طرزي صاحب کوله، د دوئ د « Young Turk » او هندي قوم پرستو سره یې پخه رابطه وه، او حاجي ترنګ زے صاحب خو د دوئ خاص ملګرے ؤ، چونکه ترکان او جرمنیان د جنګ اتحادیان وو، نو ترکان د دې قوم پرستو افغانانو په ذریعه کوښښ وکړو چې افغانستان د ترکې په حمایت د پرنګې خلاف د جهاد اعلان وکړي، مګر دربار کښې د پرنګې ولې ګوند ډیر زورور وه، نو قوم پرست پدې بر نه شول، چې امیر صاحب د پرنګې خلاف راپورته کړي، او بل په ۱۹۱۵ کښې د جرمنې یو وفد کابل ته راغلے ؤ، چې ورسره هندي قوم پرست هم وو، چې هغو کښې پرتاب سنګه مشهور ؤ، د غه هندي انقلابیان برلن جرمنې کښې وو، او بل د جرمن حکومت هغه پښتانه سپاهیان چې د پرنګې

په فوج کښې وو، بیا د فرانس په محاذ قیدیان شول ، د پرتاب سنګه او د جرمنیانو سره یو ځای افغانستان ته ولیږل، د دوی خیال و چې دغه خلك به دا افغانستان نه د هند برطانوي حکومت خلاف وجنګیږي نو د پرنګیانو د پاره به هندکښې هله ګوله جوړه کړي نو دیورپ په محاذ به په جرمنیانو او ترکانو دباو کم شي ، دغې وفد یو خاص ملیک چې قیصر وسیم ویلیم د وسیم له اړخه افغاني امیر ته یوړو، دوی اول ترکې ته راغلي وو ، بیا د ډېرو مصیبتونو نه پس هرات ته افغانستان ته راغلي وو، دهرات نه افغانستان حکومت ډېر په احترام سره کابل ته راوستي وو چې څه وخت پرنګیان خبر شول، چې جرمنیانو ترکابل پورې ګوتې راوړ دې کړې دي، نو دوی هندکښې ډېر وارخطا شول، دخپلې خزانې خوله یې خلاصې کړې، افغاني دربار کښې یې خپل پلویان ښه مضبوط کړل ، او افغاني امير یې خبردار کړو، چې ښې نتیجې به نه وي، دغه اول ځل و چې الماني وفد افغانستان ته راغلے و، او دجرمني حکومت او افغان حکومت ترمنځ اوله باقاعده خبرې اورابطه وه ، ترابسه پورې خو پرنګي ته صرف د روس نه خطره وه ، اوجرمنیان هم شول، دوی خپلې چالاکۍ او دوکې په کار واچولې ، افغاني امير يې د دوی خلاف د جنګ نه لرې وساتلو ، امیر صاحب دجرمنیانو او هندي مشرانو قدر وکړو، مګر کوم شي پسې چې دوی

وا غلي وو هغه مقصد یې ورپوره نه کړو، نو پدې یو قسم مایوسي خوره شوه، د دې وفد یو غړی جرمنی ټیجرلیکي: چې زموږ سره کوم د سرو زرو مارکونه وو هغه هندي انقلابیانو ډېر په چالاکۍ سره زموږ نه هضم کړل، چې پرتاب سنګه یې سرلښکر و، دوی تش زموږ د مارکونو تر انقلابیات شوي وو، د ښېښو خوشحالي څرګنده وي، چې دوی رښتوني خلك دي، د وی کینې هندي خوږونه نښته، هم په دغه وجه چې د جنګ د ختمیدو د یو کال نه پس انقلابي افغانانو امیر حبیب الله خان په لغمان کښې قتل کړو، او دده په ځای انقلابي امان الله خان امیر شو، او س افغانستان باندې د قوم پرستو او دنو ی زماني تعلیم یافته افغانانو قبضه شوه، چې دوی کښې وتلی افغان محمود طرزي صاحب و، چې د غازي امان الله خان خسر هم و، یعنې د ملکه ثریا پلار و.

اوس حالات داسې جوړ شوي وو، چې زاري روس ختم شوی و، ۱۹۱۷ د اکتوبر انقلاب شوی و، دوی د زاري سامراجي پر ځای د اولسونو د حقوق د خپل بنیادي سیاست اعلان کړي وو، نو هغه زوړ حال نه و، د افغانستان بريد د روس محفوظ و، د لینن او د دوی د ملګرو ښکاره علان و چې دوی د شرق د قومونو د سامراج خلاف ملاتړ کوي، او بل بنه وخت دغه و چې هند کښې بې قراري وه، پرنګیانو چې کومې وعدې کړې

وې دجنګ دکتهلو وروسته یې دپام نه وغورځولې، پدې
باندې هند کښې بې آرامي خوره شوه، حاجي صاحب ترنګزو
دجنګ عظیم په دوران کښې دپرنګیانو خلاف غزاګانې کړې وې
او خپل لښکر سره قبائیلو کښې ناست و، اوبل داچې په کابل کښې
یې دقوم پرستو سره یې نزدې رابطه وه، باچا خان او دوئ
ملګري هم دخپل عمر او تجربې مطابق لګیا وو، او بل هندې
عسکر چې دجنګ نه واپس شول، نو دوئ نوې نوې تجربې
کړې وې، قبائیلي پښتنو کښې خو هسې هم د پرنګي خلاف
لوئ نفرت موجود و، بس د پښتنو دپاره دیو لیډر ضرورت
و، چې دوئ پرې راغونډ شي، هغه خداې دوئ ته دغازي
امان الله خان په شکل کښې ورکړو.

غازي امان الله خان د ګندومک تړون معاهده یک طرفه
ماته کړه، دافغانستان دخودمختیارۍ فرمان یې جاري کړ
همدې سره ۵ دمئ ۱۹۱۹ کښې دریم پرنګي او افغاني جنګ شروع
شو، افغانانو له درې محاذو په پرنګي راغلل، خیبر، کرم وزیرستان
او بولان، دخیبر په محاذ لنډي کوتل سره جوخت چارباغ سره
سخت جنګ شروع شو، چې دتوپو ګرزار په پېښور کښې اوریدے
شو، په لاندې پښتنو باندې پرنګي مارشلا «یعني فوجي قانون»
ولګوله، چې باچا خان یې هم قید کړو، باچا خان پخپله
لیکي: چې جیل پېښور کښې یو افغان و چې دتوپې اوازونه به یې

او ریدل، نو جذبه کښې به راغئ، لاس به یې د نوري پرشان
حبوړ کړ، د نغمه آوان به یې کولو، چې کش که کش.
په خیبر محاذ باندې افغاني جنرال ماتې وخوړه، دا
ځکه چې دوئ د حاجي صاحب ترنګ زو مشوره نه منلې
حاجي صاحب ورته وئیلي وُ چې زه به د مومند وله ارخه
حمله وکړم. تاسې نیغ په خیبر راشئ یو ځائ بر حمله کوو
مګر افغاني جنرال سرزوري کړې وه د حاجی صاحب نه
بغیر یې حمله کړې وه، چې حاجی صاحب ترڅو مدد ته
رارسیدو افغاني جنرال تښتیدلے وُ، مګر په جنوبي محاذ
باندې افغانانو لوېره کامیابي وکړه، د جنرال نادرخان
فوجونه لا خوست کښې وو، چې ټل کښې د اپریدو ملیشې بغاوت
وکړو، ټل یې قبضه کړو، مقامي بنګښو وزیرو اوختکو ورسره
ملګري وو، روسته نادرخان چیغې جوړې کړې، چې ټل
ما قبضه کړو، د ټل پښتنو تښته نادرخان ته قبضه کښې ورکړو.
فوجي فیصله یې دافغاني عسکرو د راتګ نه مخکښې شوې وه.
په وزیرستان کښې خو داسې حالات جوړ شو، چې محسودو
په دریو ورځو کښې پرنګي ته شکست ورکړو، سروبکي. وانا.
سپیلا توئ، تانائ، ګومل یې آزاده کړه، بلکې دومره ګډوډه
سرې پرنګي تیښته کړې وه، چې هرڅه ځینې پاتې وو، خپل
سرونه یې خلاصول، مګر محسود وریسې وو، د بلوچستان

فورټ سنډيمن پورې يې اخيستي وو. ټول پرنګي ريکارډ د محسودو په لاس ورغئ او پرنګي يې تر آباسين پورې وشړلو، محسودو په دېره غازي خان باندې حملې وکړې. دلته زه د پرنګي د خولې ليکم چې دوئ څومره وار خطا وو.

Where records exist, they are so voluminous, as in large measure to defeat their own object, and in South Waziristan they do not exist, they destroyed 1919.

دغه پرنګي پخپله منلې ده چې دغه حال وُ.

A few petty offences, the acts of spoilt children, took place in the early part of April, but otherwise all was quiet, and on the 24th April the new Political Agent returned to Wana from Sarwakai after fixing the 17th May as the date on which the next Mahsud allowance jirga was to begin at that place. For the rest of the month his peace was only disturbed by repeated cuttings of the telegraph line, a sign to which no importance was attributed, and it was not until the 5th May, the day before war was declared, that he learned of the imminence of serious trouble. On the 9th May Afghan propaganda, in the form of letters and messages addressed to prominent Mahsuds and Wazirs, including Wazir officers of the two local militias, began. Some distribution of Mahsud's allowances took place on the appointed dates, but attendance was very meagre and it was found impossible to get any pending cases settled. The Mahsud's situation was clearly rocky and the Political Agent accordingly himself remained at Sarwakai to watch it, and sent his Indian Assistant, Khan Bahadur Muhammad Yar Khan, to Wana to keep an eye on the Wazirs. By the 25th events had elsewhere developed so unfavourably that the militia posts in the Upper Tochi were evacuated. On learning of this Political Agent, in virtue of the discretion vested in him by the Chief Commissioner to be exercised in such a contingency, ordered the evacuation of all militia posts in his Agency. This was carried out on the night of the 26th. The garrison of Sarwakai and the lower Gumal posts were successfully, except for numerous Afridi and Wazir desertions, withdrawn to Murtaza; but at Wana and the upper posts, of which the garrison were to retreat across the Gumal into the Zhob Agency, the treachery of the same and other trans-border elements in the crops caused disaster. Four British officers and the Indian Assistant lost their lives; two British officers were wounded; the militia practically ceased to exist; 1,200 rifles and 700,000 rounds of ammunition fell into the hands of the tribesmen and the forces of disorder were carried in pursuit of the gallant remnant, which still held together, far into Baluchistan. In this affair only individual Mahsuds took part. It occurred outside Mahsud's country , and so, beyond paying a tribute to the magnificient courage and endurance displayed by the Commandant, Major Russel, and those who stood by him, it is not necessary to enter into details. So far as the Mahsud tribe was concerned, the immediate result of the evacuation was to bring a lashkar under Fazal Din down to attack Jandola (held by regulars) and to start the ball of border depredations rolling with a zip far beyond all previous performances. Jandola was relieved without difficulty on the 9th June, but further military action was needed to restore the situation. This at the time it was not possible to take, and the hot weather passed in a series of petty and inconclusive, through often fiercely contested, actions between the troops and other forces collected along the district borders and Mahsud and Wazir raiding parties.

اوس زه دلته د خپل پلار د خولې لیکم: ما ته پلار ویئیل

چې زموږ د کلي یو سړے وُ، چې نوم یې زیراجان وُ، په

سرویکي کښې د فوجیانو د باغ مالي وُ، زیراجان د سحر

دلمونځ سره راغے، د خلویښتو رغزی نه یې سیرې جوړې

کړې، چې پرنګي د سرویکي نه تښتید لي دي، ټول سامانونه یې

پریښي دے، نو چې تور محسود خبرین دي، چې موږه سنه

سنه سامان سمبال کړے وي، پلار مې ویل؛ چې ددې سره

په کلي چیغه ګډه شوه، سنځې نر، ماشومانو هر یوه سرویکي

ته منډې وهلې، پلار مې ویل؛ چې ما ته دومره یاد دي چې موږ

زه په غیږ کښې اخیستے وم. زما ورور اصل خان چې ما نه مشر وُ

خو هلك وُ، محکښې د نورو هلکانو سره رسیدلے وُ، په نورو،

ګټو وټو نه پوهیده، دوه کمټرې یې نیولې وې، نورو خلکو

غنم، جوار، بسترې، کرسۍ، صندقان، او غولکانې، خره، کچرې

او نور څخاله سمبال کړې وه، ډیرو خلکو د قعلا کړکۍ او دروازې

وبستې وې، پلار مې ویل؛ چې زیراخان اول خپل ډیر سامان

سمبال کړے وُ، بیا یې کلي خبر کړے وُ، دغه سرویکي صندقان

ما په خپله په ۱۹۶۵ کښې لیدلي وو، چې د زیراخان ورور میراجان

کره وو، خو په هغې وخت زه د دې په پس منظر نه پوهیدم

یوه عادي واقع را ته معلومیده.

یو بل سړے ؤ چې نوم یې کلا دادی ؤ، زه په شپږم جماعت کښې وم، ده موږ ته دس ویکی خبره کوله، چې موږ خبر شو، چې پرنګی تښتیدلے دے، نو د محسودو لښکر په بیره پسې ورغئ، دوئ چې بلو چستان ته اوښتل، موږه په برید وکړ، ځائ په ځائ به لاس په لاس جنګ کېده خو چې کوم پرنګي به ټوپک راکړو موږ به نه وژلو، چې چا به ټوپک نه راکاوه، موږ به وژلو، ویلې یې پرنګیانا که څه هم زموږه دښمنان وو، مګر بهادر خلك وو، موږ به ورسره ټوکې کولې چې تا هم پرنګے مړکړے یا ټوپک وړے دے؟ ده به ټوکې کولې، چې ما پدې جنګ کښې نه ټوپک یوړو اونه مې پرنګے مړکړو، زما سرا داوه چې ستا سو نیا «یعنې دده میرمن» د شپږ و میاشتو دپاره بائیکاټ کړے وم. دغه دېر خوږ سړی ؤ دده عمر به اندازاً هغه وخت ۷۵ کاله ؤ.

هدغه حال د ټولو پښتنو ؤ دوئ دپرنګي خلاف ډېر په سینه جذبه سره وجنګېدل، دچترال نه تر بولان پورې دسمې وواوکه دغره پښتون ؤ، د غازي په چیغه یې عمل کړے ؤ، مګر افغانستان یو ورکوټی ملك ؤ، داوږ دجنګ توان یې نه درلوده، که څه هم دوئ لاندې پښتونخوا ازاده نه کړه، مګر دافغانستان بایللے حیثیت یې وګټلو، کوم چې

ګندومکۍ کښې امیر یعقوب خان دلاس لیک په وجه خارجه‌سیاست ۲
او واک بایللی ؤ، او وروسته امیرعبدالرحمن خان افغانستان
غلام کړ، مګر کله نه کله ددوسانو په کور کښې هم نران
پیدا کیږي، کومه بې غیرتي یې چې نیکه کړې وه، هغه‌یې
لمسي پوره کړه، افغانستان او افغان ملت ته یې آزادي وګټله
دوی چې په عرضي‌جنګ بندے سره راضي شول، نو
ډېر خلک په خپه شول، داځکه چې دقبائیلو اولاندې‌پښتنو
دغه ته وه چې اوس به دوئ آزادیږي، خاصکر وزیرستان
کښې ډېره مایوسي خوره شوه. دمحسودو او وزیرویو وفد
کابل ته لاړو، آمیر امان الله‌خان سره یې لیدلي وو، هغوته
ډېره تسلي ورکړې وه، مګر حقیقت بل څه ؤ، دوئ چې
واپس راغلل، ددوئ په وطن پرنګي دهوا نه ګوله باري، بمباري،
کوله، چې دغه ددوئ دپاره بالکل دحیرانتیا اونوے فوجي‌عذاب
ؤ، یوځل بیا یې دهند فوج په وزیرستان ورسم کړے ؤ
که څه هم افغان امیر پرنګي ته سخت احتجاجونه وکړل، مګر
پرنګي خپل بدل له وزیرستان نه‌واخیستو.

دوزیرستان په تاریخ کښې جنګونه شوي دي، هاسيْ
تنګی او باروپه تنګی کښې دومره سخت جنګ وشوچې پرنګیان
یې بخپله حیران کړل، دسرې غرمې نه یې توره شپه جوړه
کړې وه. دلته بیا پرنګی لیکي:

د دې نه معلومېږي چې د پرنګیا نو محسود بدې شول، او کله نه کله یې ښه ورسره بیان کړي دي، خو حقیقت د غه دے چې دوی ډېر په عذاب وو، د ۱۹۱۹-افغاني دریم جنګ نه تر ۱۹۴۷ پورې پرنګي په وزیرستان متواتره بمبارۍ کړیده، او خپل بدل یې ښه اخیستے دے.

هم د غه شان افغاني حکومت خپل استقلال واخیستو، خو لا تدې پښتانه د غسې ترنن ورځې پورې پاتې شول، هم د غه وجه وه چې پرنګي د دریم جنګ نه پس قبائیلي علاقو کښې پخې چونړې جوړې کړې، وزیرستان یې ټول فوجي کیمپ کړو، میرانشاه وانه لدها، رزمک کښې یې فوجونه میشته کړل، او س دوه خطرې وې، یوه د آزاد افغانستان او بله د سوشلستي روس نه. نو ځکه د پښتنو نر لنډي کوتل ته په بیړه بیړه پرنګي د اورګاډي لار جوړه کړه، او امان الله خان د پرنګي په سترګو کښې اغزی و، نو هند کښې یې د خلافت په نوم خلک ولمسول چې هجرت وکړي، او ورکوټ او غریب افغانستان نوے نوے، حکومت ته مسئلې جوړې کړې، د افغانستان د پرنګیا نو سره د جنګبندۍ په وجه چې کومه مایوسي هندي او خاصکر پښتنو کښې خوره شوې وه، هغه نه دلته د بدر شومیا د اکبرشاه تاثرات بیا نه وو.

«د آزادۍ تلاش» د کتاب نوم، لیکوال اکبرشاه بدرشي.

## « په جبل سراج باندې شين تندر »

پدې شان په جبل سراج کښې ورځې تیریدې، مونږ دوه قواعدو له به راتو چا میلمستیا کړې وه، اوله به مو څوک میلمانه وو هرخوا خوشحالي وه. د جبل سراج ښه موسم خپل اثر ورځ په ورځ ښودلو، په دوېمه او درېمه به جلسې وې، مونږ پوه وچې د هندوستان قانوني قیود په مونه نږه نشته، چې څه مو په زړه وو هغه مو په خوله وو، تقریرونو د موسیقۍ کار کولو، آزادي لویۍ نعمت دے، او بیا د هغه خلکو دپاره چې ازادي یې نه وې لیدلې او ناڅاپه یې ومومي، مونږ ځان بې زنځیره محسوس کړو، او ځکه ډېر خوشحاله وو، خو افسوس چې ده زړ پوره تر شوه، زمونږ په خیال کښې چې ... مستقبل کوم تصویر وُ، هغه پاتې نه شو، زمونږ په زړونو کښې څه وو، او راپېښ څه شول، مونږه په زړه کښې څه کړل او څه ربیل او «امان افغان» دکابل اخبار راتر جولۍ کښې څه راواچول، دامان افغان خبر اثر دومره زیات وُ، چې زه کله یې هرڅومره په تحریر کښې راولمه نه شي راتلے.

دې خبر مهاجر وچت کړل، پیاده یې روان کړل، ورتې تږي یې دافغانستان په غرونو او میرو سرکړل، ترکستانه یې روس ته ورسول، د قفقاز په غرونو یې پیاده اناطول ته ورواړول او بیرته یې مصیبت ته ده خو هوښیار وطن ته راستون کړل.

هغه خبر دا ؤ :

«د ښمونږ او د انګریزانو ترمنځ عارضي صلح وشوه، د راولپینډۍ په مقام به اوس زمونږ او د انګریزانو د نمایندګانو ترمنځ ګفت و شنید کیږي، غیور افغان قوم به دخپلې توري میوه ژر حاصله کړي».

دا خبر نه ؤ تندر ؤ چې د جبل سراج دخوشحالۍ نه ډکې فضا باندې راپریوتو، د هر مهاجر مخ دغصې نه تک سور شو، یو پکښې اووے: حکومت افغانستان پښتون قوم سره دوهکه وکړه، بل پرې چیغه ووکړه «اسلام سره یې ورانکړه څه؟» یو بل پرې اواز وکړ چې اوس په افغانستان او هندوستان کښې څه فرق پاتې شو، او بچیله یې اواز وکړو هیڅ.»

ددې بیان نه معلومیږي چې کوزو پښتنو او هندوستانیانو کوم توقعات د افغانستان سره تړلي وو، دغه ټول جذباتي وو، او د حقیقت په ځاے په خواهشاتو او هوائي خیالاتو ولاړ وو، دوئ ته پته نه وه چې د افغانستان حکومت سره نه پیسې وې او نه اصلحه، کوم کار چې امان الله خان کړے ؤ، هغه ایشیا کښې چا نه ؤ کړے، مګر حقیقت دا ؤ چې دومره قوت هم نه و، چې هندیې هم آزاد کړے وے، دوستو حالاتو نو ثابته کړه چې خپل کور یې د پرنګي ددلالانو نه

ړکړ وو ، په قلاړ یې نه پرېښوده .

دریم افغاني پرنګي جنګ د صلح او لوظنامې مطابق افغانستان یو آزاد او خپلواکه هیواد شو ، هغه تړون لوظنامه ختمه شوه ، چې کومه چې د ۱۸۷۹ د ګندمک د معاهدې ، په وجه د افغانانو غاړه کېښې وه ، د دوی خارجه سیاست د پرنګیانو په لاس کېښې وو .

اګست ۱۹۱۹ کښې صلح په پنډۍ کښې وشوه ، د راولپنډۍ د روغې شرطونه دغه وو ؛

(۱) امیر امان الله خان د افغانستان خود مختیاره بادشاه تسلیم شو .

(۲) امیر افغانستان ته د تاج برطانیه سالانه پنشن ، بند شو . امان الله خان د دې کامیابه په وجه په پښتنو کښې ډېر مقبول شو ، او هر دریم او څلورم هلك نوم امان الله خان کېښودل شو . افغاني دریم جنګ د نیا ته او خاصکر هندوستاني قوم ته لاره وښودله ، چې جرأت وي ، نو ورکوټي قوم هم آزادي تر لاسه کولې شي ، هم د دې جنګ اثرات په هندوستان پرې وتل ، ګاندهي جي د کانګرس نه د سفارش کوند په ځائې د آزادۍ غورځنګ جوړ کړو ، چې روستو یې هند آزاد کړو ، او بل فایده لاندې پښتنو ته دغه وه چې راتلونکي وخت دپاره خان افغا

باچا خان په سبه حځوانۍ کښې په سیاسي سرو تودوپوه شو، د عمل ډګر ته یې راووتو، او ځېنو سترګو یې ولیدل او تجربې یې وکړې، چې د پرنګي نه آزادي کټل د خوګرموګرمو تقریرونو په ذریعه ګرانه ده، دغه جنګ او جهد و جهد اوږد او صبرناک او د سرې سینې کاردے هم دغه وجه وه چې باچا خان یوځل بیا خپله سیاسي رفاعي کار شروع کړ، نو نه پښیمانه شو او نه روسلق شو، او نه بې صبر شو، او په تاریخي لحاظ یې د غازي امان الله خان او حاجی ترنګزو، غورځنګ یې مخ په وړاندې یوړو، چې په ۱۹۴۷ کښې د پرنګي بستره د هند نه ګول شوه چې کومه خپیره پرنګي دریم افغاني پرنګي جنګ کښې خوړلې وه، نو ۲۸ کاله کښې نه صرف هندځینې پاتې شو، بلکې ټوله نړۍ کښې وریسې غوغا شوه او ځپله جزیره ورننوتو.

# د خلافت تحریک او باچا خان

باچا خان خپله د خلافت متعلق لیکي: "کتاب زما ژوند او جد و جهد". په دې ورځو کښې د ترکانو په ټول وطن د اتحادیانو قبضه وه، مصطفیٰ کمال او د هغه ملګري د دوئ برخلاف جنګ شروع کړے وُ، په هندوستان کښې د خلافت د پاره مسلمانانو

یو لوئ ریبی تیبش (تحریک) شروع کړے وُ، ځای په ځائ
یې کیمټي جوړې کړې وې، جلسې جلوسونه به کېدل.

د هندوستان مسلمانان عجب خلك وو، په جنګ کښې ټولو نه زیات د پرنګیانو امداد دوئ کړے و، د دوئ مشرانو ورله برتی وکړې وې، ملایانو، زبرګانو او مذهبي پېشوایانو د پرنګي په طرفدارۍ د ترکو برخلاف فتویٰ ورکړې وه خلافت دوئ تباکړے وُ، که دوئ دا فکر مخکښې کړے واے؛ ډېره فایده به یې وررسولې وه، خو دښت نه داهم نبه وو.

د دهلي د خلافت د کیمټې د جلسې متعلق لیکی:

"۱۹۲۰ کال په نیمایي د خلافت کیمټي له طرفه په دهلي کښې دیو جلسې اعلان وشو او ورسره د دې خبرې اعلان هم وشو، چې هغه خلك به په دې جلسه کښې شریکیږي چې کفن به یې په سر تړلے وي، نوزه هم په دې جلسه کښې شریک شوم. ډېره لویه جلسه وه د هندوستان د هرې برخې مسلمانان ورله راغلي وو، عزیز هندي یو جذباتي نوجوان هلك وُ هغه په جلسه کښې د هجرت کولو تجویز وړاندې کول غوښتل داکثرو مشرانو دا رایه نه وه، هغو ډېر پوه کړو چې اوس د دې تجویز دوړاندې کېدو موقع نه ده، خو هغه منع نه شو، او خپل تجویز یې وړاندې کړو، مسلمانان خو یو جذباتي قوم دے، دې ته یې و نه کتل، چې د دې نتیجه به څه وي

وړاندې کېدو سره يې تجوين پاس کړاو، د هجرت خبر
چې په ملك کښې خور شو، پښتنو ته ورو ورو، وړې
وړې قافلې راروانې شوې، پښتنو کښې د دوئ د امداد،
او آرام د پاره د هجرت کمېټي جوړه شوه. دا قافلې چې له هندو-
ستان نه راتللې په ستېشنو به يې خلکو ډېر تا ورده استقبالونه
کول او په پښتنو کښې به يې جلوسونه وتل، پرنګيانو خوا ول
د هجرت سخت مخالفت وکړو، ځکه چې هغه ځان د پاره دا ډېر
خطرناک کار ګڼلو، ولې چې پوه شو چې خلك به هيڅ شان
نه منع کېږي. نو بيا يې داکوښښ وو. چې څومره کېدای
شي هغومره ډېر خلك په هجرت لاړ شي، پښتانه خو د نورو
خلکو په شان نه وو، هغوئ چې دا تماشه ليده، ډېر اثر يې
پرې وکړو، ملايانو به هم وعظونه کول، چې هجرت فرض دے
او که چا هجرت ونه کړو ښځه به يې طلاقيږي، داسې حالت په
ملك کښې پيدا شول، چې بې د هجرت نه بلې خبرې اورېدو ته
څوك تيار نه وو، د حکومت له خوا هم قسم قسم او از يې خوربلكه
ترا او ښځې هجرت ته تيار شول.»

باچاخان د هجرت مطابق ليکي:

«چې چا به هجرت نه کولو خلکو به ورته په بد نظر
کتل، نو ما ديوې جلسې انتظام وکړ، زموږ په کلي کښې
لويه جلسه جوړه شوه ډېر خلك پکښې راجمع شوي وو

په جلسه کښې مې داووے، چې تا سولېز صبر وکړئ. زه به خو کسان کابل ته ولېږم چې هغه موږ خپل چشم دیده حالت راوړي او موږ په حالاتو خبر اوپوه شو، نو بیا به دهجرت په باره کښې فیصله کوو، ما چې دا تجویز پیش کړو، زموږ دکلي عادل شاه نومي یو پیرو هغه سخت مخالفت وکړو، وے ویل موږه خپلې ښځې ګوره کانو ته نه شو پرېښودلے، که ته هجرت ته تیار نه یې مه ځه، خو نور مه منع کوه، موږ که خدای ته منظور وه، وې سبا وختي روانیږو، اور په هندوستان کښې ولګیده او وسوځیده ښیستوخو، که بره وه که کوزه تالاوالا شوه، اوکروړو ته روپیه نقصان وشو، خصوصاً چې دسنده دخلکو قافله چې د جونیجو صاحب په مشرۍ کښې پیښور ته راورسیده په ښیستنو کښې اور ولګیدو، نر او ښځې په هجرت روان شول، دا خو محمد علي او شوکت علي امان الله خان ته دا پیغام لیږلے وُ، چې ته د هجرت دمنلو علان وکړه، چې په پرنګیانو باندې ددې خبرې اثر پریوځي، او زموږ دخلافت تحریک ته پکښې فایده ورسیږي.

اخیر زه هم مجبور شوم دقوم په ملګرتیا دیوورکوټې قافلې سره چې ټول ځوانان وو، دشوقدر او موصندو په لار پیاده افغانستان ته روان شو».

همدارنګه یوبل ځاے لیکي: خوورځې وروسته هاشم خان کابل۔

ته زما د تللو بند و بست وکړو، موږ د جلال آباد نه کابل ته د خوګیانو دغلي په لاره روان شو، په کندمک کښې عادل شاه پیر د خپلو ښځو نرو ملګرو سره په مخه راغلل، چې واپس وطن ته راروان وو، ما ورته وویل: پیر صاحب دا ښځې مو بیرته کورګانو ته روانې کړې دي؟ ده راته وویل: چې څه وکړو، هلته هم د ښځو له لاسه تنګ وو، چې څنګ هجرت وکړئ، او دلته هم ښځو تنګ کړو، چې په دې ملک کښې ګوزاره ګرانه ده بیرته یې روان کړي یوو».

باچاخان د خلافت تحریک او د پرنګیانو د جاسوسانو او ښتنو بې صبرۍ او دغازي امان الله خان متعلق په خپل قلم داسې لیکي:

«موږ چې کابل ته راورسیدو د لاهورۍ دروازې سره ډیرې ونې ولاړې وې، مهاجرینو دلته اړولي وو، موږ هم د دوئ سره یوځائ واړول، زموږ دپاره حکومت بیل انتظام کړے وو، خو زه د عامو مهاجرینو نه، نه بیلیدم، په کابل کښې د ټول هندوستان یوه ښیاړس کسیزه کیمټي وه، چې زه او رضاخان ارباب هم دهغې ممبران وو، ددې کیمټۍ په ذریعه به د مهاجرینو ارتباط دافغانستان د حکومت سره و، څه وخت چې دمهاجرینو دقافلو تعداد ډیر شو زړو ته ورسیدو، حکومت

کمیټې ته ویل : چې افغانستان خویو ورکوټے ملك دے ، دا دومره خلك پکښې ځائیدائے نه شي ، تاسو مهرباني وکړئ دا هجرت بند کړئ ، نو موږ عباس خان ولیږو ، چې دا خبره هلته پښتنو ته ورسوي ، هغه تر جلال آباد پورې لاړو ، او دا خبر یې پښتنو ته ورساوه ،،

امان الله خان موږ ته وویل : چې زه د پرنګي د جنګ زور نه لرم ، که تاسې ورسره په کومه طریقه جنګ کولے شئ او خپل ملك آزادولے شئ ، زه تاسو سره مرسته ضرور یې کوم ځکه پرنګے تور مار دے ، هیڅ اعتبار پرې نشته ، چې زما خوا کښې پروت دے ، زه تر یې په دا ډېره زړه خوب نه شم کولے دا ویره راسره وي چې اوس به مې خوري ،،

هغه موږ ته دوه لارې مخکښې کړې ، وې ویل : که نوکري کوئ موږ به ستاسو ځوانان بهرتي کړو ، بیلې پلټنې به درته جوړې کړو ، تربیت به درکړو ، که مو  د انګریز سره جنګ کولے شو وبه یې کړئ ، که ځکې عواړئ نو په کنډاوز او مزار شریف کښې موږ ځمکې لرو ، هغه به درکړو ، تاسو خپله یوه کالونۍ جوړه کړئ او خپل انتظام په خپله ځان له وکړئ. په کومه سیمه کښې چې موږ یې تاسې ته درکوو په هغې کښې به ټول واك اختیار ستاسې خپل وي ، او که د بیرون حکومتونو سره تعلقات ساتئ هم ساتلے یې شئ ، مهاجرینو

ته یې وویل، چې که تاسې نوکري غواړئ هم او که څمکې غواړئ
هم او که تجارت غواړئ هم درسره امداد کوم. موږ به
راغلو خپلو ملګرو سره به موسلا مشوره وکړو، د ټولو مهاجرینو
په اتفاق به مو دا خبره غوره کړې چې بس موږ ته دي،
عسکري ترنینګ راکړل شي، موږ برتې کیږو، موږ به
پلټنو تشکیل هم جوړ کړو، موږ به را پاڅیدو چې حکومت
سره خبره فیصله کړو، چې ز موږ د پاره انتظام وکړي
نو د پرنګیانو مخبرانو «جاسوسانو» ته چې هجرت کښې راغلي وو
موقع په لاس ورغله، یو مخبر به یکښې پاڅیدو او ویل به
یې، چې موږ خو په څمکې پسې نه وو، راغلي نه نوکرۍ
پسې راغلي وو، موږ په جهاد پسې راغلي وو، چې زموږ
د هجرت غرض نه تر سره کیږي او افغانستان د پرنګیانو
سره جنګ نه کوي، نو نور موږ ه دلته څه کوو، زه خو
بیرته ځم. هغه پسې به یو بل مخبر پاڅیده هغه به ووے
چې بالکل ټیک خبره ده، زه هم ځم، چې دے بر پاڅیده
یو ټوله به ورپسې پاڅیده، دغسې به په ټوله کښې ماتې
ګډه شوه، یو کس ماپسې رامنډه کړه، چې ته ده حکومت
سره خبرې مه کوه، یو ځل را شه. چې بیرته به راغلم
ټول به تللي وو، بیا ما دوئ ته دا خبره وړاندې کړه، چې
راځئ چې دا څمکې واخلو، او زه هم درسره ځم، مګر دوئ

دې ته هم تيار نه شول».

څرنګه چې پښتانه په را تلوکښې ګړندي وو، د غسې پر واپس تلوکښې هم ګړندي وو، نو د غه شان مهاجرين بيرته ورووړ ستنيدل، ډېر لږ کسان پاتې شول، هغوئ په افغانستانکښې استوګنه غوره کړه، چا نوکري واخيستې چا ځمکې.

دغه شان هجرت ناکام شو، دهندوستان مسلمانانو او خصوصاً پښتنو ته ددې هجرت ډېر تاوان ورسيد افغانستان ته يې هم نقصان وشو،».

دامان الله خان په ورکولو پسې پرنګيانو له هم دې، وخت نه ملا وتړله، فايده يې يوازې انګريز ته ورسيده.

زما څه ملګري تاشکند ته لاړل، چې روس به موږ سره د هند په ازادولو کښې مرسته وکړي، زه په کابل کښې ديو څو ملګرو سره پاتې شوم، يوه ورځ زه دامان الله خان ملاقات ته تللى وم، ډېرې خبرې مې ورسره وشوې، په خبرو خبرو کښې مې ورته داووے، تاله ترکي درځي، فارسي درځي او نورې ژبې هم درځي، خو خپله ژبه نه درځي، زما خبرې په هغه باندې ډېر اثر وکړو، او وعده يې راسره وکړه چې زده کوم يې، کله چې له افغانستان نه وايستل شو، زه بمبۍ ته وراغلم، نو هلته يې ماسره پښتو کښې خبرې وکړې.

دغه شان مې محمود طرزي صاحب سره چې دافغانستان

ونیرخارجه اوډېرلائق سړے ؤ، په یوه لویه میلمستیا چې دمهاجرینو دپاره کړې وه، دڅېبحث راغۍ یو سړي ورنه پوښتنه وکړه، داڅنګه افغانستان دے، په افغاني (پښتو) پکښې نه شته، طرزي صاحب وویل، چې پارسي زموږ دملک ژبه ده، نوما ورته وویل چې طرزي صاحب پښتو خو دافغانستان ملي ژبه ده، او د اکثریت ژبه ده، په ټوله دنیا کښې داکثریت ژبه هم سرکاري وي، هم دفتري وي، هم تعلیمي وي، .

دغه ؤ دباچاخان دلاس لیکلې داستان . چې دې دخلافت تحریک متعلق ګنړورې خبرې وې چې ددې پس منظر باندې سړۍ ښه پوهیدے شي، چې خلافت تحریک یوجذباتي بغیر څه خاص سوچ سوچ منصوبې نه شروع شوے ؤ، دیوه ځوان هلک په تجویز ټول مسلمانان راوپاریدل، او هجرت یې شروع کړو، دغه پته ورته نه وه چې مسله ترکې کښې ده موږ ه هندوستان نه افغانستان ته ځو، پکار داسې ووچې دوئ باندې ترکان یاخلافت دومره ګران ؤ، دباچاخان دخولې خبره نو پرنګي په حق کښې یې فتوی نه وی ورکړے، اوخپل بچي یې دپرنګي دپاره نه وے قربان کړے، دوئ اول خلافت پرنګۍ کړو، بیا یې جوړولو، بیا یې پخپله جنګۍ نه کولو، په افغانستان یې جنګۍ کولو، افغانستان . مشرانو چې کوم طاقت ؤ، هغه دوئ،

د هندي خلافت مشرانو په بغیر چې ۱۹۱۹ کښې د پرنګي خلاف وجنګېده، خپله آزادي یې واخیسته، نور توان یې نه وو.
مګر دد ې سره د باچا خان تجربه وشوه، چې جذباتي او بغیر سوچ شوې منصوبې یا تحریکځ هم دغه حال وي چې رو سته دده په سیاسي ژوند کښې ډېر رول لرلو، او بل ورته افغانستان معلوم شو، چې تش نوم دے، نور غریب او په فوجي توګه یو کمزورے هیواد دے، نو ځکه باچا خان خپل ځان او لاندې پښتونخوا کښې د موجوده حالاتو مطابق خپل سیاسي کار شروع کړو، بغیر د دې نه چې د کابل په طمه ناست وي، چې هندوستان به آزادوي، او بل ورته د ژبې متعلق معلومه شوه، چې دوئ ځانو ته افغانان وايي، مګر پښتو ژبې ته یې شا اړولې ده، نو ده دغه نوټ کړه خپل سیاسي ژوند کښې یې خپله پښتو ژبې ته یو مرکزي رول ورکړو.
دغه د باچا خان د پاره چې لاځوان و ډېرې ګټورې تجربې وې او د خیالي جهادې او لیندې او غشو د جنګ نه شلې پېړۍ حقیقتو ته راکوز شو. او د پرنګي خلاف یې یوه نه ستړې کیدونکې او نه ټکلاکیدونکې مبارزه شروع کړه چې میوه یې نن ورځې پورې موږ ه خوړو.
نو پخپله دسمبر ۱۹۹۲ کښې ترکې ته د سیل د پاره، تلے وم، موږ ه یو ګروپ کښې سره یو ځای شو او ترک،

د سيلانيانو د دفترلخوا په مختلفو تاريخي او اثار قديمه ښارونو
باندې بې وګرځولو، د ترکې مشهور ښاران طاليه چې د
دسمندر بحر روم په غاړه پروت دے، ورته د تورستومکه
وايي، نه موخپل ګرځنده سفر شروع کړو، اول موداتنيک
دوخت زاړه ښارونه وکتل، بيا استنبول، بورسا او نور
ښارونه وکتل، نو دې دوران کښې ماته خلافت مومنټ،
رايادشو، ما د ترکې ترجمان سره په دې باب ډېرې خبرې
وکړې، دے ډېر خبر سړے وُ، ده راته ويل: خلافت
تش په نوم پاتې وُ، اخلاقي لحاظه خليفه او دده درباريان
ټول بداخلاقه او عياش خلک وو، ده وويل: چې ۱۴۵۲
کښې عثماني خليفه ګانو موجوده استنبول قبضه کړيدے
مونږه د يورپ سره جوخت يو، يورپ کوم ځائ ته رسيدلے
او مونږ کوم ځای ولاړ يو چې مونږ او جهان خو ډېر بړده
چې د سړي نوب ټو پک هم نه شو جوړولی، دغه ټول زمونږ
د خليفه ګانو بې غورې او عياشي وه، دوئ تش ښځو او
شرابو پسې ګرځيدل، نو داسې " INSTITUNION " بيرته
جوړول کم عقلي ده، دو يل: مصطفیٰ کمال مونږه د
مذهبي نيار حوړو، نه خلاص کړو، هم ددې ترجمان
د خبرو سره ځما هم اتفاق دے، چې اخيري وخت نو
کښې خليفه تش په نوم پاتې وُ، دوئ خپل قوم ته نه اقتصادي

ترقي ورکړه او نه سا ئښي ، د ترکې خلیفه ګان تر اول جنګ عظیم پورې د پرنګیانو او فرانسویانو ملګري وو، دا، ځکه چې تر دې وخته پورې د دوی خلاف بالکان او ایشیا کښې روس، او اسټریا مخالف وو، پرنګیان او فرانسویان په دې سره راضي وو، چې روس او اسټریا دې مضبوط نه شي. نو نو دوی به دخپل مفادو دپاره همیشه ترکې سره کمک کوله، او بل پرنګیان په خپل هند باندې ډاریدل، نو هرځای کښې چې به روس ته عذاب جوړیده دوی به یې کمک کولو، تر دې پورې چې ۱۹۰۲ کښې دجاپان سره د روس خلاف معاهده وکړه هم دغه وجه وه چې ۱۹۰٤ - او ۱۹۰۵ - سمندري جنګونو، کښې جاپانیانو مشرقي بعید کښې روسان وډبول، او د پرنګیانو ټټر په یخ شو، داځکه چې دوی سره خطره وه، چې روس په هند را شي، نو دوی د ترکانو سره ډېر ښه تعلقات وو، تر دې حده پورې چې ترکان همیشه د پرنګیانو او افغانانو، جګړو، کښې د پرنګي ملاتړ کاوه، داځکه چې پرنګي به چیغې جوړې کړې وی، چې امیر شیر علي خان د روس ملګرې دے او د روس او ترک خو ډېره پخوانۍ بدي وه، مګر د دې دغه مطلب نه ؤ، چې ګنې ترکان د پرنګیانو د تروډ زامن وو، خو دهغې وخت جیو پولټیکل تقاضی داسې وه، د ۱۹۰٤ - ۱۹۰۵ - د جنګ نه پس روس خپله توله توجو

بالکان ته را واړوله، سلاویش قومونه څوک د استریا او څوک د ترکې لاندې وو، یو بل یورپي طاقت جرمني جوړ یدو، نو د جرمني د ویرې نه روس، او فرانس سره نږدې شول، بیا فرانس په کوښښ روس او برطانیه سره نږدې شول، په ۱۹۰۷ کښې یې معاهده سره وکړه، د هند د نیولو خطره ورکه شوه، او س روس، بالکاني سیاست کښې سلاویش قومونه د ترکو، خلاف راپورته کول، ۱۹۱۲- ۱۹۱۳ کښې بالکان د یو ړرو ړیپو شوه، مګر دلته د استریا سلطنت لاندې هم سلاویش و، نو ځکه بالکان کښې پخواني دوستان روس او استریا سره دښمنان شول، او پخواني دښمنان ترک او استریا د مشترکې مسلې په وجه سره ملګري شول چې د دوئ ملګرے جرمنئ هم شو، چونکه پخوا د پرنګیا نو او فرانسویانو مفاد پدې کښې وو چې ترک د روس خلاف ټینګ او ملاتړ کړي، او س یې فایده دې کښې وه چې ترک ختم کړي، هرچا ته دا معلومه ده، چې اګست ۱۹۱٤ کښې اول جنګ عظیم شروع شو چې خلافت ترکي، هنګري، استریا سلطنت، او جرمن سلطنت ماتې وخوړله، روس دلنین په وجه بالکل بله لاره ونیوله، پرنګیانو او فرانسویانو د عثمانیه خلافت حصې سره تقسیم کړې، عرب یې اول پدې طمه راپورته کړل، چې دوئ ته به واک ورکاوو.

روستویې وړ سره دهوکه او کړه، شام، لبنان فرانس، قبضه کړل، اردن، فلسطین او عراق برطانیه ورځینې وا خسته، دغه اوسنی ترکیه هم ختمه وه. پر دې باندې اټلی، یونان قبضه کړې وه، خلیفه او دده درباریان په دې راضي وو، چې دوی ته صرف استنبول خوا شاه علاقې ورکړې وې، نور ترکی قوم تیار و، دپاسه یې ارمنیا پر راسوره کړې وه، ترکی ورکې وو، خلیفه دخپل ارام تیرولو دپاره دې ته هم تیار و مګر مصطفی کمال، عصمت انونو، دملي مجلس نر بغاوت وکړو، اناطولیه ته پټ په پټه راغلل، د ګوریلا جنګ یې شروع کړو، خلیفه خو د اتحادیانو ایجنټ جوړ شوے و، د مصطفی کمال خلاف یې دنیولو حکم جاري کړو، مولویانو شیخ اسلام اوپیرانو فتوی ورکړې چې قتل یې روا دے، داځکه چې ده دخلیفه دوخت د حکم نه انکار کړے دے، مګر ترکی قوم دومره بې علمه نه و، لکه مونږه پښتانه، چې امان الله غوندې پر وطن مین بادشاه یې دپښتنو د بې علمی په وجه دوطن پرنګیانو او ملایانو وه‌شړلو، ترکې خلیفه دجنګ او ماتې پس هم دعیش وعشرت نه لاس وا نه خیسته، د ۲۰۰ کلنو او نوې ښځه یې ۱۹ کلنه وه چې نون ت نومیده «NOLAT» چونکه ترکې د جنګ عظیم په وجه نړیلې و، فوج یې

کلا ودوی، اسلحه او ذرائع يې قبضه شوي وې، ددوی اتحاديانو
جرمني او اسټريا ختم شوي وو، چې د اسلحې مدد يې ورکړې
وامې، نو مصطفی کمال په تش لاس د اتحاديانو خلاف را
پورته شو، اناطوليه ته چې راغی، نو سړيي وو، سړی نه
وو، توکيان څوک قيدي وو، څوک شهيدان، او ډير تعداد
يې معذور وو، عيبي شوي وو، نو د ده په لښکر کښې ترکي ښځې
او پيغلې برتې شوې، دوي د اسې په بهادرۍ سره وجنګيدې
چې دنيا يې حيرانه کړه، د دې ترجمان راته خبره کوله چې
دوی يعنې ترکي ښځې به په تش لاس د يونانيانو په مورچو
ورختې، خاصکر هغه کونډې ښځې چې ددوی خاوندان
شهيدان شوي وو، نو دوی د خپلو خاوندانو مشن مخ
په وړاندې وړو، دوی سره ټبران، توړې، لکړې، کوتک
او کاڼي وو، او د دښمن باندې ورتلې، د قومې جذبې
نه د اسې ډکې وې، چې يونانيان به يې ښنتې ته اړ کړل
اتلې نو به وو يستله د دې ترجمان راته وويل: چې خيرالدين
نومې وُ چې نو ر به دې څه تنکوم، خو دغه وګڼه چې دغه
موجوده تورکيه، جمهوريت مونږه ته ترکو ښځو او پيغلو
ګټلې دے، نو ځکه مصطفی کمال دوی ته د ومره آزادي او
حقوق ورکړل، چې مصطفی کمال به په جار وويل: چې زما
ترکه ځوانان څوک مړه او څوک ورک وو، مګر زما لښکر ترکي

پیغلي وې، او دوئ دغه ملي غرور پرځاے کړ.

اوبل مصطفی کمال سره یو تکړه جنرال عصمت ؤ، چې د یونانیانو تر دانونو په مقام فیصله کن شکست ورکړ، اوداسې حال ؤ چې ډیر یونانیان مړ شول، ځینې ئې وندې سمندر ته ولویدل، ځینو لمبې وهلې وړې وړې یوناني جزیرو ته ور سیدل، نو ورو ستو عصمت د انونو ... په نوم مشهور شو.

مصطفٰی کمال ورو ورو د موجوده ترکې نه یونانیان، اټلایان، آرمنیان، پرنګیان، اوفرانسویان ټول واړه په واړه شوګ ییې وشړل او ځینې یې لوظنامې ته تیار کړل، نو ۲٤ جولای ۱۹۲۳- کښې یوه لوظنامه سره وکړه چې د لوزان په نوم مشهوره ده د دې معاهدې، مطابق د موجوده ترکې سرحدونه وټاکل شول او ومنل شول، او مصطفٰی کمال خلافت ړنګ اعلان کړو، اوترکي جمهوریت یې اعلان کړو، خلیفه اخیر ABDUL MAJID یورپ ته لاړو، مصطفٰی کمال پخپله هم یو قابل جنرال ؤ، مګر ځینې نور بهرني عوامل وو، چې د ده سره یې ملګرتیا وکړه، چې هغه د افغانستان آزادي وه، چې پرنګیان یې ورخطا کړل، ایران کښې حالات ګډوډ وو، قاچاریانو د سلطنت اخري سلګۍ وې، ټول ایران کښې د غلو او ډاکمارانو غوبلې وې، هندوستان پخپله راپورته شوے ؤ، اوبل د پرنګیانو هغه مقصد پوره شوے ؤ یعني دوی ترکیه ټکړې ټکړې کړې وه، د عراق د حکومت دنوم لاندې

يې د ترکانو نه د کردانو، حصې علاقې بيلې کړې، پدې وجه چې کيرکوک کښې تېل وو، هغو د وى د عراق بادشاه ته ورکړے، داځکه چې ۱۹۰۸ کښې نه پس تېل دجهانى فوجي او اقتصادي سياست کښې کال په کال، اهم کيدل، دموصل او سُليمانيه کُردان ترننه ورځې پورې د عراق ترجع لاندې دى، او بل غټ ټکئ د مصطفىٰ کمال د برې چې سبب شو، هغه دلينن سوشلستى انقلاب وُ چې مغرب يې ورخطا کړے وُ، او سرکښي د دوئ خيال وُ چې ناکام به شي، مګر ۲۴-۱۹۲۳ پورې سوَى فوج کامياب شو، نو مغربي سامراجي طاقتونه وارخطا شول، چې اذربائي جان او ارمنيه او جارجيا په لاس ترکي ته او بيا مشرقى اُسطىٰ ته راکوز نه شي، نه چې مصطفىٰ کمال بر او متيا ټپوله دوي به غلي وو. داځکه چې روسي انقلاب نه وو نو مصطفىٰ کمال يو په لاکهه بنه وُ، نو دوئ مجبور شول چې دلوزان معاهده د ترکي سره لاس ليک کړي.

مصطفىٰ کمال د مذهبي سياست نه لاس وا خيسته، خلافت يې رنګ کړو، او مذهب او سياست يې سره جدا کړل، او جديد سيکولر ترکي جمهوريت بنيا د يې کښېنود، د عربي پرځاے يې ترکي ژبه په لاطني، رومي، توريو باندې وا ړوله، عربي توريو کښې ليکل بند شول، د ښځې او نر حقوق يې برابر اعلان کړل، ټول جماعتونه او مذهبي ځايونه يې د رياست په قبضه کښې وکړل

يعني ترکي جمهوريت د اسلام په واک کښې نه ؤ، بلکې اسلام يې د رياست تر واک لاندې کړو، په عربي کښې يې اذان بند کړو په ترکي ترجمه شو، مګر په ۱۹۵۰ کښې بيرته اذان په عربي کښې شو،.

دغه ټول ردِعمل د عربو د اول جنګ عظيم په وخت غدارۍ په وجه ؤ، چې مصطفیٰ کمال او ترکانو د عربو نه نفرت کولو کوټ پتلون د ترکۍ د قوم لباس شو، چادرې او پردې يې ختمې کړې، ښځې بربنډ مخ ګرځيدے شوې، تعليم يې په نر او ښځه لازمي کړو، خپل سياست يې د بل چا د کورنۍ چارو کښې ګوتې نه وهلو په سنت کښېنود، د استنبول په ځائے يې انقره په اناطوليه کښې بوے، ناستون، جوړ کړو، د ترکۍ فوج، سياست او زراعت يې جديد کړو، او ترکو ورته د ډيرې مينې او عزت نه اتاترک خطاب ورکړو „ يعني د ترکانو پلار "، ده خپل ټول عمر کښې واده ونه کړې، ټول ژوند يې د ترکي قوم د خدمت له پاره وقف کړې ؤ، تر ۱۹۳۷ پورې ژوندے ؤ، ترکانو باندې تر نن ورځې پورې ډېر ګران دے، او ډېر قدر يې کوي دده په ژوند باندې څو ځله حملې وشوې، مګرخدای بچ کړے دے، يوه خطرناکه حمله د مياں اکبرشاه بدرشي د بيان مطابق داسې شوې وه:-

په مصطفیٰ کمال پادشاه د بم حمله: „ بل ملګرے چنګيز

ماته دخپل سفرقیصه مختصره شان وکړه، چې څنګه هغوئ
اناطول ته لاړل، او بیرته راغلل، دامهاجرین دچار جوبئ
نه نیغ باکو ته رسیدلي وو. او دد ې ځائ نه دترکوترځا منې
سره پیاده اناطول ته روان شوي وو، چنګیز ووے: «د
قفقاز «کوه قاف» اوارض روم د غرونو منزلي دافغانستان د
دغرونو نه اسانه نه دي، زمونږ شپې په واورو کښې شوې
دے، خودا عذاب پرېږده، نو چې ورسیدو خبر
یې چې له مونږه سره څه سلوک وشو؟ یو ذلیل هندوستاني
چې د وطن غدار وُ، او د انګریز ایجنټ وُ، نوم یې په ځان،
مصطفیٰ صغیر ایښی وُ، او دې ذلیل اسان د انګریز په ویته
د ترکو محبوب رهنما مصطفیٰ کمال، یا شاه دوژلو کوښښ کړے
وُ، دا ید نصیب اسان زمونږ د رسیدو نه وړاندې دخپل عمل
په وجه جهنم ته رسولے شوے وُ، پداسې منخوس وخت
کښې مونږه اناطول ته ورسیدو، چې هغوئ خبر شول چې
هندوستانیان اناطول ته راغلي دي، او وایې چې مونږه
د ترکو د امداد دپاره راغلي یو، نو مونږ ترېې جواب
راکړو، چې زمونږ دهندوستانیانو د امداد نه توبه ده
مونږ ترېې د نفرت او حقارت په نظر سره کتل، او حکم یې راکړو
چې په کومه لاره راغلي یئ په هغې بیا پستینه ځئ.»
«کتاب د آزادئ تلاش، صفحه ۲۹۶.»

د دې نه معلومیږي چې هندوستاني هرځایٔ د پرنګي دپاره
مردار نه مړدار کان ته ملا تړلې وه، هم د دوئ په وجه اشیا
غلامه وه دغه حال د هندوستان د ټولو مسلمانانو نه و، مګر
ترکانو پکښې داصلي اوکچه فرق نه شو کولے. مګر بل اړخ ته
داسې ملي ځوانان هم وو، لکه اکبرشاه میاں چې دوئ په رښتیا
د پرنګي دښمنان وو، یو د پښتنو پښتون چې غالباً نوم یې -
عبدالرحمٰن خان و، د مصطفیٰ کمال ډېر اعتباري ملګرے و، او
یو قسم سکرټري یې و، مګر دغه پښتانه وو، او هندي مسلمانان
پخپله غلامان وو، دخپلې غلامۍ علاج یې نه کولو، او ترکو
دآزادۍ پسې روان وو، چې دغه پخپله یو دبل ضد دي
یکار خلافت تحریک ته دغه و، چې دوئ هندکښې دهندوستان
اولس که هغه هندو سیکھ یا عیسیان او مسلمانان وو، یو ځائ
کړے وے، بیا یې آزادي اخیستې وے، دخلافت مومینټ
دومره جنون پیدا کړے و چې مصطفیٰ صغیر (هندوستانی)
په مصطفیٰ کمال یا شاه باندې بم غورځاوي، او دپرنګي
خدمت کوي، هم هغه دباچا خان خبره، چې دوئ اول
دخلافت او ترکو خلاف فتوے ورکولې اوخپل اولادونه
یې بهرتي کول، پرنګے یې مضبوط کړو، چې ترکان یې ختم
کړل اوس هندوستانیانو ته خلافت وریاد شو، نو دغه
ټول تحریک بې منطقه و، هیڅ پلان شوے نه و، هم د دې تحریک

دمرګ ته اوختميدی، وجه وه، خپلی منطقی نتيجې ته ورسيدو
خو هندوستان کښې غريب مسلمانان يې په عذاب کړل ،
افغانستان يې کمزورے کړو، چې پرنګي خپل سپي غازي
امان الله خان پسې خوشې کړل، چې ۱۹۲۹ کښې يې هجرت ته مجبور
کړو.

# د باچا خان تعلیمي او اصلاحي هلې ځلې

باچا خان پخپله لیکي:

« دافغانستان او آزاد قبایلو حالت مې چې ولیدلو (۱۵) پنځلس کاله مې په هندوستان قبائیلو او افغانستان کښې، غرزې پرزې وکړې، نو په دې نتیجه ورسیدم، چې انقلاب د منلو کار او دومره اسان چین نه دے. انقلاب دسړي سینې کار دے، انقلاب علم او پوهه غواړي. انقلاب عالمان او پوهان غواړي چې پوهې سره قام وروزي او، انقلاب ته یې اماده کړي، دانقلاب دپاره داشخاصو ضرورت دے، ته ګوره چې مونږ جذباتي ملګري په څومره جوش، راوتلي وو، بتول لا پل خواره شول، نو کیناستم دځان سره مې ښه فکر وکړ، زه په دې نتیجه ورسیدم، چې زمونږ د قام نه تجارت خواته توجه شته، نه د صنعت خواته نه د زراعت خواته او نه د تعلیم خواته. دبلې خوا په رسمونو رواجونو کښې ترغوږونو پورې ډوب دے، په خانزجنګیو، اخته دي داسې قام انقلاب نه شي کولے، او دا قام د دې بلا ګانو نه خلاصول

پکار دي چې سیاسي شعور پکښې پیدا شي ، او دا کار یوه پر امنه فضا غواړي ، تر د غه وخته پورې په دې عقیده وم چې دا ټول کارونه انقلاب غواړي ، تشدد راته دانقلاب برخه ښکارېده ، خو تجربې نه وروسته راته معلومه شوه چې د جنګ په وخت کښې آسونه ، نه تیارېږي نو ځکه مې اراده وکړه ، چې خپل کلي ته واپس کېږم د عدم تشدد په بنا به کار کوم ، اول به دانقلابي اشخاصو د تعلیم او تربیت دپاره قومي مدرسې جوړوم ، نو ځکه اتمانزو ته راغلم .

زه چې د چرته بېرته راغلم ، د هغو مدرسو دېرته جارې کولو ، کوښښ مې کولو چې پرنګیانو د جنګ په زمانه کښې بندې کړې وې ».

د باچا خان د دې بیان نه دوه شیان جوتېږي یو دغه چې باچا خان پدې اوس پوره پوره پوه شوے وُچې دغه کارونه په منډو او بې صبرۍ نه کېږي او دده خبرې نه دے یو سیاسي بالغ ځوان معلومېږي ، دا ځکه چې دے حقیقت پسند شوے دے ، او د قوم په مرضونو او د هغې په علاجونو سرسرې نه بلکې ژور سوچ کوې .

دویمه تبدیلي چې پکښې ښکارې هغه دغه ده چې دا یې د پلار بابا یا پیر یا مشر نوم نه اخلي ، بلکې ځان ته مخاطب دے ، دغه په سیاسي ژوندکښې لوئ بدلون دے ،

چې څوک احساس قامه واري وکړي او بيايې په بل چا نه واچوي بلکې پخپله ملاور تړيي، دغه نوی سوچ د پخې ارادې څښتن کوي چې دغه د پر عزم ژوند بنيادي ستنې دي. دلته موږ وينو چې باچا خان اول د خپل قوم مرضونه پيژندلي دي، او بيايې د هغې دلرې کولو ـ کوښښونه په ګوته کړيدي. يعنې باچاخان په دې رسيدلے دے چې دغه کار په زور نه کيږي، بلکې عدم تشدد او ميني او ورور ولي د لارې نه کيږي. دغه هغه تبديلي وه، چې د باچاخان د پنځلس کالو د تجربو نچوړ وُ.

نو په ټولو مرضونو کښې باچا خان اول ګزار په بې علمي وکړو، دوئ ته پته وه چې جاهل قوم د ټولو مرضونو جاله وي، تر څو پورې چې قوم په علمي توګه روزلے شوے نه وي دغه نورې خبرې عبث دي. نو ځکه باچا خان که څه هم د اول جنګ عظيم نه مخکښې يې په مدرسو جوړولو پيل کړے وُ، چې دوئ د مولدکانو نه د پيچ کيدو، د پاڼ د حاجي صاحب ترنګزو د سرپرستئ لاندې کار کولو، مګر د حاجي صاحب د تګ نه پس دغه کار صرف او صرف باچا خان ته پاتې وُ. او س ده پخه اراده کړې وه، چې دغه کار به کوم، نو باچا خان ۱۹۲۱ کښې د اتمانزو هائی سکول، بنياد کېښود، د دې متعلق باچا خان

پخپله لیکي:

« موږ په ۱۹۲۱ کال کښې د دوستانو په امداد پراتازو کښې د آزاد سکول بنیاد کښېښوده، چې په دې سکول کښې، قاضي عطاء الله خان، میان احمدشاه، حاجي عبدالغفارخان محمد عباس خان، عبدالاکبرخان اکبر، تاج محمد خان، عبد الله شاه، او خادم محمد اکبر ښاماګري وو.»

د اصلاح الدفاغنه متعلق لیکي:

« د مدرسي تر جوړنګ موږ د پښتنو د غلطو رسمونو او رواجونو د اصلاح کولو، د تشدد تر د منع کولو، او یکښې د میني او محبت د پیدا کولو په عرض د اصلاح الدفاغنه په نامه یو انجمن جوړ کړو، چې د دې انجمن ممبران دا کسان وو:

«۱» محمد عباس خان، ۲- صدر عبدالغفار خان « دوا ړه د اتمانزو » حاجي محمد اکرم خان د خان ما یئ، ٤- جمعدار نور محمد خان د ترنګزو، ۵- محمد زرین خان د ترنګزو ٦- عبدالاکبر خان د عمرزو، ۷- غلام محی الدین خان د تنګي ۸- فخر قوم میان صاحب، ۹- میان جعفرشاه د زیارت، ۱۰- فضل اکرم د نرې قلا- ۱۱- فضل ربي د بدرګی ۱۲- میان احمدشاه د قاضي خیلو ۱۳ میان عبدالله شاه، ١٤- خادم محمد اکبر د چارسدې ۱۵- تاج محمد خان د چارسدې، ۱٦- مولانا شاه رسول د

امازوگړي، ۱۷ - شاد محمد خان، دمیرنو، ۱۸- شیربهادرخان دکوټ پاڼي، ۱۹- جلیل خان د جلیل ۲۰- خوشحال خان دباریکاب ۲۱- شاه پسندخان دچارغلی، ۲۲- امیرممتازخان دسوات، ۲۳- پیرسید محمد جان خان د بنون ۲۴- محمد رمضان خان د ډیرو، ۲۵- حکیم عبدالسلام د هریپور، ۲۶- میان صاحب د پکلئ، ۲۷- قاضي عطاء الله جان دمردان، ۲۸- ثمین جان خان دمحب بانډې، ۲۹- علي اصغرخان وکیل د هزارې، ۳۰- افندي صاحب دملاکنډ، ۳۱ یوملګرے دګوډرحمزه خان[ ] داصلاح الدفاغنه د تنظیم غنبټولې او منظموالي پته دد یملګرو یا دممبرانو نه جوړېږي ده، چې دې کښې صرف دیوکلي یا یوې ضلع خلک ندي راجمع شوي، بلکې د هغه وخت دپښتونخوا صوبې ټول په قوم او وطن مین خلک را جمع شوي وو، چې د هزارې نه تر ډیره پورې دغه تنظیم خور وو، او ډېرا هم شخصیات پکښې راجمع وو، دمثال په توګه د بنون مشهور سیاسي او سماجي لیډر پیر سید محمد جان خان، چې دے صرف په بنون کښې مشهور نه و، بلکې، دخپلې ضلع او صوبې نه بهر هم هند کښې مشهور و، چې څه وخت دخلافت په وخت کښې ټول هندوستان باندې پرنګي یوه توره تیاره خوره کړې وه، نودغه ترپښتون را پاڅیدلے و، او د ټول هند دپاڼ د امید یوه شمع جوړه شوې وه، دلته زه د مشهور مسلمان لیډر، صحافي

اولیکوال، او لوی انقلابي شاعر مولانا ظفرعلي خان یو نظم چې او دو ته به کېنې یې بیرسټر محمد جان باندې لیکلی دے وړاندې کوم:

(زمیندار اخبار)

ہے تجھے اے ہمنشین وہ دن بھی ہیں یاد
کہ پھٹ پڑنے کو ھم پر آسمان تھا
خلافت پارہ پارہ ہو چکی تھی
نشان اسلامیوں کا بے نشان تھا
اندھیرے میں بھٹکتے پھر رہے تھے
مصیبت میں ہمارا کارواں تھا

نکل کر دل سے رک جاتی ھے فریاد
کہ جس کو دیکھئے وہ بے زبان تھا
غرض اس ابتلا میں ہر طرف سے
ھماری غیرتوں کا امتحان تھا

کیا اُس وقت جس نے سب کو بیدار
وہ ایک بیدار طالع نوجوان تھا
خدا نے کی عطا جس کو یہ توفیق
اکیلا اِیک محمد جان خان[1] تھا

[1] بیرسٹر محمد جان خان

د اخیستو ځای: بنوں وزیرستان تاریخ. لیکونکی ډګمل ایوب خان سیفي

دا دې نه معلومېږي چې باچاخان د پښتونخوا ټول محب وطن خلک په دې تنظیم کښې را جمع کړي وو، او هر یو ممبر یې پر خپل خپل ځای لوی لوی خلک وو، غټه لویې یې داوه چې د دوی سوچ او فکر کښې یوالے ؤ، د خپل قوم او وطن سره یې مینه وه، د پرنګي د حلوی د تال نه یې نفرت کولو، خو که سرے ور ته ځیر شي نو د پښتنو د بدبختۍ او تقسیم اندازه به ور ته ولګي، چې د هزارې ممبر پکښې شته، د پېرو والا پکښې شته، خود مومند، خیبر، کرم او وزیرستان څوک نشته پکښې. د دې دا مطلب نه دے، چې دوی نه پکښې شاملول، بلکې د هغه وخت سیاسي او سماجي حالاتو جبر ؤ، چې د ټولو سره د پښتنو سره کار کولے شو، مګر د جم اپریدي ته اجازت نه ؤ، دا ځکه چې پرنګي موږ ته په قسما قسم تنظیمي تاکونو کښې ویشلي او ساتلي وو، د اصلاح الافغانیه تنظیم غټ مقصد دغه ؤ چې د پښتنو نه غلط رواجونه او رسمونه ورک کړي، او کمال دغه دے، چې دوی ټول یې یوه خوله وو، چې دغه کار به موږ د تشدد د لارې نه بلکې د عدم تشدد د لارې کاوه، چې پښتون قوم مترانو کښې دغه نمونه بدلون نیکمرغي وه، د دوی غوښتل چې پښتون ته یو صحت مند او عزت دار مقام ور کړي، مګر د دوی دښمنان هم کم نه وو، چې سرکښې یې پرنګے ؤ، او ورسره دلالان، نو دوی سره نه دومره ذرائع وو او نه دولت،

چې د پرنګي غونډې د بلې تنخواګانې یې ور کړې وې ،
مګر چې یو ځل په قوم کښې احساس پیدا شي ، نو داسې
ښونه خلك بیا پیدا شي چې ، د وګړو دولت او عهدې نه
زیات ملي خدمت ته اهمیت ور کوي ، هم داسې یو زړه پېښتون
متعلق چې د بنو د باچا خان لیکي :

« زمونږ په سکول کښې استاذان کم وو ، نو ما به په
خپله هم هلکانو ته درس ور کولو ، بلکه دا وه چې مونږ
دومره روپیه نه لرلې چې استاذانو ته مو ورکړې -
تنخواګانې ور کړې وای ، په لاهور کښې د خلافت
کانفرنس و ، مونږ ورغلي وُو ، د بنو د میرا خیل
کلي امیر مختار خان هم دې کانفرنس ته راغلی و ، د
هغه سره مو ملاقات وشو ، هغه خپل دوه زامن چې په
اسلامیه کالج کښې یې ( B . A ) بي . اې کښې تعلیم کولو
او د ترك موالات په وجه یې پرېښې و ، زمونږ سکول
ته یې د استاذۍ له پاره راوبخښل ، د مشر نوم امیر ممتاز
خان و ، او د کشر نوم مقصود جان و ، مقصود جان زمونږ
د سکول اول هیډ ماسټر و او کله چې دے د وباره تعلیم د پاره
کالج ته لاړ ، امیر ممتاز د ده په ځاے هیډ ماسټر شو » .

د دې نه څرګنده شوه چې څوك د قوم خدمت بې
غرضه کوي لکه باچا خان چې ورته ملا تړلې وه ، نو خدای

يې غيبي مدد کوي، چې پښتانه غونډې په روپه مين قوم کښې خدائي ورته داسې خلک پيدا کړي. لکه امير مختار خان دېنون، چې ده خپل ژامنې دپښتون قوم د رونلو دپاره وقف کړل او بل طرف ژامنې يې دومره وفادار وو، چې دخپل بناغلي پلار حکم يې سر په سترګو منلو، داځکه چې دوئ ته انداژه وه چې باچاخان داځکه چې کوي دځانه دپاره يې نه کوي، بلکې د ټول قوم دپاره يې کوي، او دوئ ته احساس وشو چې، بايد خپله ونډه مونږ هم پکښې ترسره کړو، که چيرې دوئ د هغې وخت مطابق دملي کار په ځاے دپرنګي نوکري ته سترګې خړې کړې وائ، نو نن به يې نوم نښان نه و، او س دوئ دپښتون تاريخ کښې داسې ور داخل دي چې هيڅ قوت يې نه شي ويستلے، چې د آزاد هاى سکول ذکر شروع کيږي، نو دوئ به سم ورسره ياديږي، داځکه چې دوئ خپله ځواني، عقل او تعليم دقوم په خدمت کښې پيش کړو، او د پرنګي بابو ګرئ ته يې لته ورکړه. نن هغه پرنګے او بابو دواړه ورک دي، مګر دوئ ژوندي دي، او ترڅو پورې چې پښتون قوم وي د دوئ ذکر به په يو شکل او يا په بل شکل کيږي.

دغه د هغه خدمت جذبه ده چې د دې نمونه خلکو، په ذريعه قومونه د ذلالت نه راوچتيږي، د ترقۍ

او عزت اړخ ته روانېږي.

د باچا خان ارزو دغه وه، چې پښتون بچي ته داسې تعلیم ورکړي، چې یو اړخ ته د زمانې نوې تعلیم ورکړي او بل اړخ ته د خپل تاریخ ثقافت او رواج نه بېګانه نشي، نو ځکه باچا خان د تعلیم مرکزي نقطه جدید مغربي تعلیم جمع مشرقي او اسلامي اقتدارو، چې ده دغه غبرګه مبارزه پرېو وخت کوله، د باچا خان او د دوئ ملګریو د لاسه جوړ شوې سکولونو، کښې داسې خلک ورون ل شول، چې روستو نه صرف دوئ ملي کاروان دپاره مددګار ثابت شول، بلکې دوئ پښتو ژبه داسې غني کړه، چې موږ ه په فخر کولای شو، دې مدرسو داسې شاعران، لیکوالان او ډرامه نګاران او مصوران پیدا کړل چې نن هم د پښتون قوم دپاره د ویاړ مقام دے، او دوئ ژبې ته ترقي ورکړه، د روښاني تحریک نه پس دغه دوم کوښښ و، چې پښتو ژبې ته ځینې لویه فائده ورسیده، او بل باچا خان غوښتل چې پښتون قوم کښې د تعلیم په ذریعه رڼا او پوهه خوره کړي، چې د مذهبي او سیاسي تیار خورونه قوم بچ کړي، باچا خان لیدل چې پرنګیان یو موټی خلک ور، چې هندوستان با نده یې حکومت کولو، دا ځکه چې دوئ دعلم د رڼا نه مستفید وو، د ښو او بدو په فرق پوهیدل، د خپل قوم د ګټې او نقصان درک ورته

لګیږو داځکه چې دوې تعلیم یافته وو، نو ورکوټی قوم دخپل علم په وجه په ټول جهان سور ؤ.

نو باباغوښتل چې قوم تعلیم یافته کړي اوبل داچې باچا خان غوښتل چې دتعلیم په وجه په قوم کښې مینه اتفاق او ورورولي راولي، اوخپلې مسئلې د ټوپک دشپیلۍ په ځائے د بحث او مباحثې له لارې حل کړي، نو باچا خان د پاره د ټولو مرضونو د لرې کولو د پاره تعلیم اولنۍ شرط ؤ. دے غوښتل چې داسې قوم جوړ کړي چې ګټه کولای شي او بیا یې ساتلے هم شي، پښتون قوم د ساتلو میړنی نو ؤ، داځکه چې د بې علمۍ په وجه به تیار خوړو سره خپل منځ کښې وجنګول او تیارې بادشاهي به ځینې پاتې شوې، چې دغوریانو نه راواخله تر امان الله خان پورې تاریخي ثبوتونه پراته وو. چې پښتون قوم دخپلې بې علمۍ په وجه هرڅه بایللي ؤو نو ځکه باچا خان او ددوئ دفکر ملګریو دغه بنیادي مرض او کمزورې یعنې بې علمي باندې ګزار وکړو، چې دغه نمونه کارونه د مذهبي مشرانو او سیاسي واکدارانو په حق کښې نه ؤ، نو ځکه ملا، پیر، خان، نواب او ددوئ استاد پرنګي لاس سره یو کړو، ددې ملي خلکو ارمانونه یې شنډ کول، داځکه چې دغه نمونه کار په قوم کښې رڼا خوروله، او خلک د خیرخوا و یې د

، خوا په فرق پوهیدل د جهالت توره شپه یې په رڼا ورځ بدله کړه، نو دغه ټول د پرنګي او ددوئ مقامي مذهبي او دنیاوي انلړیوالانو دپاره زهر وه.
او بله دا چې غلا د شپې دا پرخه ښه کیږي، دورځې غلا، مشکله وي. او ویده قوم کښې د تیاره خورو مزې وي.
قوم چې ویښ شي، ددوئ ځائ نه وي، چونکه باچاخان او ددوئ ملګریو قوم ویښولو، نو دغلو دپاره دوئ، خطرناک وو، نو ځکه دوئ په ګډه ددوئ خلاف، پروپیګنډې شروع کړې چې باچاخان قوم ته غلط سړے معرفي کړي، چونکه پښتون قوم بې علمه وُ، ددا سې قومونو نفسات زیاتره په مذهبي افسانو په بنیاد ولاړ وي، دوئ غوږ ته نه ګوري سپې پسې منډې وهي چونکه پرنګي د نوې زمانې تعلیم یافته قوم وُ، او دهر قوم نفسات به یې مطالعه کول او دهغوئ دنفسیاتو مطابق به یې پروپیګنډه کوله، د باچاخان دمدرسې خلاف د خپلو مذهبي انلړیوالانو په ذریعه دغه نمونه خبرې کولې:

« سبق دمدرسې وایي      دپاره د پیسې وائي
جنت کښې به یې ځائ نه وي      په دوزخ کښې به غوټې وائي

دد ې نه معلومیږي چې پرنګي څومره زهریله،

پروپیګنډه کوله، په ملایانو باندې خو دشین آسمان تندروُ، دا ځکه چې دوئ حق ترنن ورځې پورې پراسلام نه پوه شول او نه ځان پوهول پر عواړيي، دوئ اسلام، دخپلې خپېتې دپاره ذریعه ګرځولې وه، او دے ډېرنګي دپاره پدې وجه تندروُ چې که چیري پښتانه تعلیمیافته شي، نو دوئ منظم کیدل، نو باچا خان تعلیمي سیاست په یو وخت د ملا او پرنګي په ضد وُ، نو ځکه دواړو ورته ځان جوړ کړو، دهرقسم مشکلاتو دپیدا کولو کوښښ یې کولو چې پښتون قوم جاهل وساتي چې ددوئ ورکښې مزې وي، باچا خان به په جار پښتنو ته ویل چې یوه ورځ به پرنګي ضرور ځي، تاسې دنن نه په بچو تعلیم شروع کړئ، چې قابل شي، که یوآس تاسو تر څوک درکړي، او په سورلئ یې نه پوهیږئ نو ددې آس نه څه فایده، اول سورلي زده کول پکار دي، دغسې په ساده ساده ژبه او ددوئ دپوهې اوماحول مطابق پښتنوته مثالونه ورکول چې دوئ دتعلیم په اهمیت اوقدر پوه شي، ده به ورته ویل، داچې نن څوک دآزادئ په آس سورلئ کوي او مزې ورکښې دي، او بقول هندوستان باندې حکومت کوي دا دعلم برکت دے. او داسې نور مثالونه به یې ورکول. دا زه دځانه نه لیکم، بلکې باچا خان ددې متعلق لیکي،

«چې پر نګي موږ خدمت ته نه پرېښودو، زموږ دمدرسې کار يې ايسار ولو، او زموږ استاذان يې اول دار ول، چې په دې به ونه شول، دويم چل يې ورسره دغه کووچې دوئ ته به يې د پرو پېسو لالېچ ورکو، مقصود جان به اتمانزو ته تلو، نو پوليسو ډېر په عذاب کړے وو، خودغه داسې نر پښتون وو، چې د پوليسو په ويرولو يې د قوم د خدمت نه لاس نه اخيستو، نو دې حده پرنګے ورسېد و چې، باچا خان ته يې خپل والد صاحب لمسولے وو،باچا خان د دې متعلق داسې ليکي؛

«زما دورور نه پرنګي سره ويره پيداشوه سرهلټن ګرانټ زموږ دصوبې چيف کمشنر وو، هغه زما باباځان ته وغوښته او ورته يې وويل، چې دا زوئ دې څه کارونه کوي؟ هتول خلك غلي ناست دي او دے لګيا دے مدرسې جوړوي، او دروے کوي زموږ پر خلاف خلك لمسوي منع يې کړه، دده سکرېټر سعدالله خان دعمرزو خان وو، هغه مې بابا ته ويلي وو چې، ته ګوره چيف کمشنر ستا څومره، احترام کوي، چې څومره ستا مني هغومره د چا نه منی، ته دده دخوشحالی دپاره خپل زوئ منع کولے قدرې نه شې؟ بابا مې راغے زه يې کېښنولم، وانه يې وويل: زويه ددې کارونو نه لاس واخله، ځان دې په مصيبت اخته کړے دے.

سرکار هم خپه کیږي چې، نور څوک نه کوي، ته یې څه کوې؟
ما ورته وویل: چې ښه ده بابا چې ته وایې مه یې کوه نوبیا
کوم، ډېرو خلکو خولمونځ پریښې دے زه به یې هم پرېږدم.
خو ته به بیا ماته نه وایې چې لمونځ کوه ولې نه کوې؟ بابا مې
راته وویل چې لمونځ خو فرض دے، ماوویے بابا دا علم
خو هم فرض دے۔ بابا مې وویل: ښه نو څه کوه، او بیا
چیف کمشنر ته ورغے او ورته یې وویل، چې صاحب مونږ
ستا سو د خوشالیه دپاره خپل دین نه شو پرېښودلے»۔
ددې نه صافه جوته شوه، چې پرنګے د باچا خان
د کړو وړو نه څومره په عذاب وُ، چې د پلار او زوئ په
منځ کښې د پښتون راوستلو نه یې سترګه نه کوله، د پلار
او زوئ په منځ کښې دښمني او زړه بدګي یې جوړوله
خو باچا خان خپل پلار ډېر ښه پېژانده چې پرنګي ور ته
حقیقت نه دے ویلے، چې باچا خان ورته حقیقت بېنکاره
کړو، نو بیا یې پرنګي ته پاک ځواب ورکړو، چې مونږ
مذهب ته شو پرېښودلے، دا ځکه چې باچا خان د
خپل پلار په طبعیت ډېر ښه پوهیده، چې دے یو رښتني
او سوچه پښتون او مسلمان دے، چې څه وخت ورته د
مذهب خبره وړاندې کړه، بابا فوراً د زوئ طرف
ته شو، دغه هم د باچا خان کمال وُ، چې ده ته خپلوان،

عزیزان او عموماً پښتانه معلوم وو، چې دوئ څه نفسیات لري. نوځکه باچاخان پدې پوهشو، چې والد صاحب یې خپه نه شو زړه بدے نه شو، بلکې په کلکه یې ملګرے شو، چې داسې نمونه کاروونه نیکه اولاد کوي. چې د پرنګي ټول چلونه ناکام شول، نو بیا یې سوچ وکړو چې د دې به څه علاج وي، دوئ ملایان، خانان او نور دې چې خپل پلاریې ورته ولمساوه، چې دغه هرڅه ناکام شول پرنګي باچاخان ته د یوې بلې سزا پلان جوړ کړو، نو پرنګي به ضرور د خپلو جاسوسانو، په ذریعه د باچاخان ۱۹۱۰ نه کړه وړه ریکارډ کړي وي، او پدې به رسیدلي وي چې د دې سړي علاج داوس نه پکار دے، نو دوئ دفعه ٤٠ سرحدي یا. F.C.R کښې دسمبر ۱۹۲۱ کښې ګرفتار کړو، او غلیظترین کوټه کښې یې واچوه چې انسان خو پرین ده چې یو څناور به پخپله مرضۍ نه وو ورننوتی. دغه غیرمهذبه سلوک د مهذب توب دعوی کونکي پرنګي ځکه وکړه چې باچاخان دخپل قوم خدمت کولو نور هیڅ قصور یې نه وُ، که څه هم د دوئ د نیولو یې ورته نورې بهانې جوړې کړې، مګر هرڅوک پوهیده چې د دوئ قصور صرف دغه وُ، چې د دوئ ټول انجمن اصلاحِ افغانه ممبران وو او د قوم خدمت یې کوه دوئ لس کسان وو، چې پرنګي ګرفتار کړي وو.

بیا ر وستو هغه نور رها شوي وو ، مگر باچا خان ته یې درې کاله قید ور کړے وُ ، او عبدالقیوم سواتي یې هم درې کاله قید کړو، دغه سزا صرف او صرف د خپل قوم سره د مینې او محبت په وجه پرنګي ورکړه ـ مگر باچا خان د دا سې او سپنې نه جوړ نه وُ چې دوئ به سم کړے وے ، جیل او مصیبتونو نور هم فولا دي کړو، د جیل د ننه قسما قسم تکلیفونه ورکړل، د میچنې د اړول نه راوا خله تر سخت "isolatian" پورې مصیبتونو پر تیر شول ، باچا خان پخپله کتاب زما ژوند ـ او جهدو جهد کښې تفصیلاً لیکلي دي ، چې هغه کښې د جیل دا روغانو نه راوا خلـه د پښتنو قید یا نو پـر چې جنبې پکښې دي ، نورو پښتنو د خپلو اولادونو سره په ارام ژوند کولو ، باچا خان د ګلالو غوندې، چې پریښي وُ، د پښتنو قوم د پا ره یې جیل کښې د پرنګي میچنې اړولې ، د دې، جیل په دوران کښې باچا خان د خپلې ګرانې مور د مرګ خبر واوریدو ، چې لږ سوچ وکړې سړے او خپل ځان د باچا خان په ځا ے شمار کړي ، سرګوندې تر د ننه کړي ، نو بیا سړي تر درک لګي چې باچا خان د پاره به دغه خبر د تندر نه کم نه وي ، دا ځکه چې مور پلار بیا بیا نه وي ، یو ځل وي ، مگر دے کلکز ړي پرنګی د خپلې مور جنازې ته هم آزاد نکړو ، چې څومره دوئ ظلم

کولو، د ومرۍ د باچا خان اراده مضبوطیدله، پرنګي ورته بار بار پیشکش کړے وُ چې مدرسې نه لاس واخله، موږ به تا آزاد کړو، باچا خان دغه ټول ترغیبات په سختۍ سره رد کړل.

باچا خان د جیل په دوران کښې د غلام قوم په ژوند او حیثیت باندې خبرې کوي، او دے یو واقعه لیکي،

« سحر وختي یو نمبردار راغے، زه یې د چکۍ نزېهر کړم، او چکړتر یې بو تلم، هغلته نور قیدیان جوړه جوړه ناست وو، او زه یې هم هغوئ سره کښېنولم، زه یې هم د بل قیدي سره جوړه کړم، او موږ ته د خوځېدواو یاد و دریدو قدرې اجازت هم نه وُ، دا ځاے ډېر مزیدار وُ، او ګیرچاپیره ترې ډېرې ونې ولاړې وې، او هریوې ونې سره یو ګدیله ولاړه وه، او یو یو سړے ورته بیُت په لاس ولاړ وُ، او په ډېر زور سره به یې هغه ګدیله وهله ددې په لیدو زه حیران شوم ولې چې ما دا قیصه چرته په نورو جیلخانو کښې نه وه لیدلې، د ملګرو قیدیانو نه راته معلومه شوه چې دا قیدیان دي، او بیتونه وهلو چل زده کوي چې د ضرورت په وخت کښې دې، قیدیان په سنه شان په بیتونو وهلے شي، پدې کښې ګورو ګوره «پرنګے» قیدي یې د بے ځائ نه راوست، د هغه د جامو

نه دا نه معلومیده چې ګنې قیدے دے ، بنه پتلون، بنه کوټ او بنه ټوپۍ ( HAT ) په سر وه، هغه یې نه زمونږ په شان جوړه کړې وه ، او نه یې کښېنولو ، هغه خپله تیلائي کوله چې په دې کښې داروغه راغے لیکن دے ګوره د داروغه هیڅ پروا ونه کړه ، داروغه صاحب د ټولو نه اول دهغه په ټیکټ د سختت وکړو، دهغه د رخصت کیدو نه پس معلومه شوه چې دا یو ګوره دے، او په زنا کښې قیدشوے دے. لیکن باوجود د دې قسم ذلیل او ظالمانه جرم دهغه د سړیتوب جامې د سړیتوب خوراکا او د سړیتوب سلوک وو ، او مونږ چې د خپل قوم ، ملک او د اسلام په خدمت کښې بې ګناه قید یو ، او هیڅ جرم مو کړے نه وو ، نو مونږ سره د دې قسم سلوک وو ، چې انسان خو پرېږده شاید چې څناورو سره به هم چا کړے نه وي.»

د غلام قومونو او غلامه ذهن دغه سزا وي چې هندستانیانو باندې رانازله وه، دغه خو د غلامۍ دور وو ، او په بنګاره پرنګے ناست وو، حکومت یې لولو، دهند او پاکستان خلک دومره ذهني غلامان شوي دي، چې تر ننه ورځې پورې جیل او بهر دفترو کښې دخپل وطني بې عزتي کوي او سترګې پرې راوباسي ، چې یو یورپي یا امریکنی ورپیښ شي، نو هغه د ذهني غلامۍ اثر وي.

« please please » ورته شروع کړي. دې
شي ته زما دېر خيال وي، چې کله هوايي اډو باندې دپوليس
يا کستم سره مخامخ شي، نو سړي ته پته لګي، اکثره داسې کيږي
چې پاکستاني او خارجي په يو جهاز کښې سواره وي چې راولپنډۍ
يا کراچۍ باندې جهاز کوز شي. نو پاکستاني پوليس ورور-
سره بد سلوک کوي او په معمولي معمولي خبرو سترګې پړاوباسي
يا پاسپورت کښې هسې ګوتې وهي، چرته تلے وي، ولې تلے وے
ويزه دې کوم ځاے ده، ددې دپاره چې يو ښل ديرش
والره رشوت ترلاسه جوړه کړي، او په ناجايزه تنګول کوي
او همدغه حال دکسټم والو دے، همدغه حال د P.I.A دعملې
دے، چې خارجي يعنې سپين پوستکي څه وغواړي، نو دوئ په
يوه پښه ورته راشي او ورته please. Please شروع
کړي، خو چې پاکستانے څه وغواړي ورځينې په درې
څلور ځله خو اورې نه، دپوليس والا چې په قطار کښې
سپين وويني نو دکرسۍ نه راپورته شي، please Please
« come farward » چې څرنګې انګريزي يې
نه ده کړې وي ورسره يې ووايي بيايې نو لـه ورځ طبيعت
خوشال وي چې د صاحب سره يې خبرې کړي دي، او دخپل
ملك والا سره چې پيښ شي، نو په تندي يې دولس هره وخت
بجاؤ وي، همدغه پاکستانے يا هندوستانے افسر چې يورپ ته لاړ

شي یا امریکې تر لاس شي، نو دوئ ورته د سپي په نظر هم نه ګوري، دغه یورپیان اکثره د چرسو، د ناجائزې اسلحې، د اثار قدیمه شیانو او بتانو غله وي، مګر زموږ افسران ورته جي جي کوي، چې د غلامی بدترین شکل دے، نو بیا چیا خان خپل وخت ژاړي، موږ ته اوسه پورې ترخلاص نه یو.

# د باچاخان رهايي، "فخر افغان" لقب

# او

# د حج سفر

باچاخان خپل درې دوزخي کاله تېر کړل داسې ظلمونه يې د پښتون قوم دپاره وزغمل، که بل څوک وے توبه به يې ايستے وے، مګر باچاخان په پوندو سترګو دې ميدان ته ټوپ نه وهلے، هرڅه يې په شعوري طور باندې سوچ اوغور کړے ؤ، چې د پرنګي دسرو زرو مرغه (هند) اخيستل څه د ټوکې خبره نه وه. اخير کار باچاخان ۱۹۲٤ کښې د زندان نه رها شو.

باچاخان ليکي:

"تکنه غرمه وه، مونږ کلي ته ورسيدو، زه چې آزاد سکول ته نږدې شوم، هلته د سکول يو هلک وپيژندم، هغه په منډه لاړ چيغې يې کړې، چې باچاخان راغے. ددې په اوريدو ټول هلکان سره داستاذانو سړک ته راوزغليدل، په سړک باندې يو ځاے شو هلکانو چيغې کړې او يو شور جوړ شو، يو ساعت کښې

ټول جمع شول او نه يې دغه شان په مينځ کښې کېر مدرسې
ته بوتلـم، او دا به يې په شريکه وے چې «فخر افغانه
په خير راغلې».

هم په دې نمونه باچا خان فخر افغان شو، د قـوم
د پاره ده دومره تکليفونه برداشت کړي وو، د دې،
حـقدار و، او د باچا خان ملګريو ډېر مناسب خطاب
ورته خوښ کړے و،

د دې نه معلـومېږي چې د پرنګي ټول چالسونه
ناکام شـوي وو، د دې خيال و چې دې درې کاله
دوزخي جيل تېر کړي اول خو به دے توبه اوباسي که
دا نه وه د خلکو نه به هـير شي، مګر حقيقت بل شے وختو
نه بابا نو به کار شو، او نه قوم هـير کړو، تش باچاخان
جيل ته تلے و، او س د پرنګي د پاره فخر افغان شو، د دې
اور يدو سره به ضرور چيف کمشنر ورخطا شوے وي.
چې زمونږ څـه خيال اوحـُني حـوړ څـه شول، هـا ن،
يو کارکښې پرنګيان کاميا ب شول، چې باچا خان اجواديځوا
سترګې وغړولـې، مګر خپله خوښه او مينه تاکه موږ پر نظـر
نه ورتلـه، دغه به دباچا خان د پاره سخت وخت و، که څه
هم په ظاهره به يې اظهار نه وي کړے، مګر چې څـه
وخت دشپې يې سر په شيرک دننه کړے وي، نو خـپل

زړه به يې سپک کړے وي.

باچاخان د رهائي نه پس په آرام نه و ناست، شپه او ورځ يې يوه کړے وه، باچاخان خپلې دورې شروع کړې، کلي په کلي او کلي په کلي په پښتنو پسې ګرځيدو، د مدرسې کار يې نور هم ګړندے کړ، ده ته پته وه چې پرنګے به دوئ په ارام نه پريږدي، نو ده د وخت نه فايده اخيسته، چې ډېر کار وکړي، مګر پښتون قوم روايتي مرض يعنې بې اتفاقي او خود غرضي او حسد نه د دوئ اصلاحي تنظيم پېچ نه شو، يا خو دغه اصلاحي تنظيم ډله بازه وران کړے و، او يا خو پرنګے کامياب شوے و، بهرحال چې څه وجه وه، مګر انجمن کښې داسې خلک پيدا شول چې دوئ په بارکښې کانړه لړکي شول، د باچا خان د پاره يې مصيبت جوړ ولوه د دې قسما قسم وجې کيدائ شي.

باچاخان په خپله ليکي:

"څه وخت چې زما دوره ختمه شوه او زه کلي ته راغلم يوه ورځ زه عباس خان جداکړم، او ماته يې ووېل، چې داکاکاخيل ميا معروف ډېر خطرناک سړے دے، نن ورځې دغه داکو بنسبنن دے، چې ما او تا کښې بې اتفاقي پيدا کړي او دغه يو څو خبرې يې ماته وکړې، چې زه دغې بيانول نه غواړم. دغه خبرې په رښتيا سره ډېرې خرابې وې، ماته

نورو خلکو هم د میاں معروف صاحب ډېرې قصې کړې
وې، او که عباس خان او مقصود جان په منځ کښې چې زمونږ
د هائي سکول هیډ ماسټرو چې دا څه ناچاقي پیدا شوې
وه، هغه هم د ده کارګزاري وه، ماته داهم معلومه شوه
چې دے زمونږ انجمن په ممبرانو کښې جنبې پیدا کول
غواړي.»

میاں معروف، باچا خان یې نوم نه اخلي، خو وايي چې
زمونږ په تنظیم کښې انسپکټر و، د ده د مخالفت دوه وجې
کیدا ے شي، یوه دغه چې تر زمکه لاندې به د پرنګي سړ
لاس وي، او تنظیم د دښنه نه وراتول غواړي، یا بله وجه
یې دغه کیدا ے شي، چې د ده خیال و چې دے ډېر تعلیم
یافته دے، او دو مره مشهور ندے، لکه باچا خان،
(یعنې حسد)، ما ته د پرنګي د دلالۍ نه زیات راتر دده حسد
او د پیښتنو نره بیمار ي ښکاري، هر څه چې و خوميا
صاحب د انجمن د یاره د خیر په ځا ے ښر ثابت کیدو،
دا ځکه چې د تنظیم د ملګریو په منځ کښې یې بې اتفاقي او
ترخوالۍ راوستل، د صحتمند ذهن او محب قوم سړي کار نه
و، یا کیدا ے شي چې میا صاحب ذهني بیمار و، د شیطانت
او پیر ے جنبې نه ګزاره نه ورتله، روستو خو خبره تر
دې لاړه چې دانجمن جوړونکي ممبرانو غلطې بلطې خبرې

او پروپیګنډې یې شروع کړې، چې باچاخان یې پرخپل، کتاب «زما ژوند او جهد وجهد» کښې په تفصیل سره ذکر کړے دے،

باچاخان چونکه پښتون وُ او بیا سیاسي سړے وُ، او د قوم مصلح وُ، نو ده ته خپل قوم معلوم وُ چې دده په کار کښې به شکونه د پښتنو په ذهن کښې اچوي، دا ځکه چې باچاخان خپل قوم ښه پیژندلو. ده یو ځل په خپله ماته ویل:

«چې اول ما کار شروع کړو، ملایانو راپسې خبرې شروع کړے، چې دا به نه لري، بیا مې چې دېره وساتله بیا یې خبرې کولې چې دستت برابره نده، یعنې موټا یُ نده، بیا مې ورته موټا ئې کړه».

دد مې نه معلومیږي چې زموږ مذهبي مشران څومره مور داږ دي، نو باچاخان ته تجربه شوې وه، چې ملایان به د پرنګي په لمسه خبرې کوي، چې ده بانډې فرض دے نه یې کوي، نو دغه وخت چې پرنګي یوے نه وه، هر وخت ځني خطره وه، نو باچاخان غنیمت وګڼلو، د حج فرضي د پوره کولو دپاره یې اراده وکړه، اوبل پاچاخان غوښتل چې ورچا ئي دنیا وګوري، د حالاتو نه خبرشي، او بل پرنګي نه صرف هند غلام کړے وُ، بلکې اول جنګ عظیم نه۔

پس عرب هم د دوئ په قبضه ورغلي وو، دفلسطين مطابق.
باچا خان غوښتل، چې صحيح او تازه معلومات تر لاسه کړي
چې هلته پرنګيان، یهوديان او عرب څه کوي، دغه ټولې
خبرې سرئ يو ځاے شوې. نو باچا خان په ۱۹۲۶ کښې د حج
په سفر روان شو.

شريف مکه کورنئ خو دعوئ کوله چې دوئ د رسول
خدا داولاد نه دي، مګر دوئ ټول اول جنګ عظيم کښې د
پرنګيانو ايجنټان وو، او ترکي او اسلامي خلافت يې ختم
کړو، د دوئ د بد معاشئ په وجه عرب دفرانسويانو او
پرنګيانو په لاس ورغلل. د ده ځامنو ته پرنګيانو اُردن
ور کړو، هغه بل يې د عراق په ګدئ کښېنا وو، پلار يې
د مکې مدينې وکدار پاتے شو، چې ور ته به يې شريف مکه
ويل، مګر په ۱۹۲۴ کښې سعوديانو وشړلو، ده خپل زوئ
سره چې د اردن بادشاه وُ پناه واخيسته. د باچا خان بيان دے
چې د سعوديانو په وخت کښې مکه مدينه کښې مکمل امن وُ،
غله غودے ورک وو، دې نه مخکښې د غلو سره دشريف مکه
يعني دا اوسني اردن د بادشاه غور نيکه حصه دار وُ، دغه
حال هرځاے دے. زمونږه پښتونخوا اوهند کښې
هم دغه حال دے، چې نيکه يې ښه سړے تير شوے
وي، مګر لمسي يې دجهان بد اخلاقه او بد معاشان وي.

دوئ دزيان تو په مفت دولت باندې مستي کوي.

بل باچا خان وليدل چې د فلسطين عرب څه کوي او يهوديان څه کوي، د باچا خان خبره چې عرب په د سحر نه تر ماښامه پورې هوټلو او قهوه خانو کښې ناست وو، لوئ لوئ چيلمان يه ورته پرانته وو، تنګ کاريې نه کولو، او يهوديانو هوټلې په غرمه او دوږي خالي وي، خو ماښام به ډکې وې، دوئ به ټوله ورځ کار کولو، د عربو جاځې او ځايونه ګنده وو، مګر د يهوديانو صفايي دجامو او دهوټلو ډېره زياته وه. وايي چې چرته به مې چې اباد ځاے او ښکلے کور وليدو، چې پوښتنه بڼه وکړه، نو د يهودي به وُ، دعربو زمکې شړې پرتې وې، وايي چې مايوځل يو عرب ته وويل، چې که تعليم مونږ شته ستړکې خو موشته، تاسي خپل ځان ولې نه آباده وئ، او زمکې په يهوديانو خرڅوئ، وايي ځواب يې راکړو، چې پرېږده چې يهوديان يې آبادې کړي، اخري صدۍ ته مهدي عليه السلام به راځي، مونږ ته به يې ديهوديانو نه بيرته واخلي، باچا خان خپه کيږي او وايي چې زما خيال و چې مهدي عليه السلام ته ملايانو تش پښتانه ګښېنولي دي، مګر عرب يې هم په طمه کړي دي.

نه کله چې د باچا خان په کتاب کښې دغه دفلسطين

خبري ولولـم نو ډېر ورته حيران شم،چې باچاخان
څومره صحيح مشاهده کړې ده ، چونکه يهوديات
تعليم يافته خلك وو ، د نوې زمانې د هرشي نه خبروو
نو دوئ د فلسطين دابادولو ټوله تاريخي مرحله قلم
کړيده ، داول جنګ عظيم نه تر اسرائيل تر رياست پورې
دوئ سره فلمي ريکارډ دے ،چې کله نه کله دجرمن T.V
باندې يې بنائي تاريخ ورسره وي. چې دغه د۱۹۳۰-۱۹۲۲
مرحله بنائي، نوماته باچاخان څکښې وورېي،او راته
وايي چې ګوره ماچې څه ليکلي دي ربښتيا دي اوکنه
هو به هو دغسې دي، فلمونو کښې عرب بنايي چې خپل
بې غوره ژوند تيروي ، په هوټلو کښې کپ شپ لګوي،لوبې
کوي، او چيلمان څکوي، او ځپن ځپن وي، او يهوديان ټوله
ورځ د خرو په ځير کار کوي، ما بنام خپل خپل kibutz
يعنې مشترکه کليو ته راځي.

باچاخان ټکي په ټکي صحيح لکلي دي، د دې نه معلوميږي
چې باچاخان سره نه صرف د پښتون او هندوستاني او افغاني
غم وُ، بلکې دلوئ افغان سيدجمال الدين غوندې د ټول اسلامي
نړې په غم ککړ وُ ، دلته بيت المقدس کښې څه کومه واقع
وار پېښه شوه، يعني په ډېر لنډ عمر کښې دويم ځل ديارو
کونډه شو، دغه ډېره درد ناکه خبره ده ، مګر دې لوئ

پښتون دغم باوجود دپرنګي خلاف خپل ضد استعمار خوځښ
پرښښودده یلکې دشام لبنان او مصر دوری یې وکړې دعراق
دوره یې وکړه چې پرنګي شیعه او سني یو بل ته دښمنان
کړي وو، هندکښې هندو او مسلمان او عربوکښې او ترک
او عرب او وروسته یې شیعه او سني مسئله جوړه کړه. او
پرنګیان اول خلك دي، چې دوئ په ۱۹۲۲ کښې په کردانو
عراق کښې زهریله ګیس استعمال کړو، چې دغه کار بیا ـ
صدام حسین په ۱۹۸۸ خواو شاه کښې کړے وُ، دوئ ځکه
په کردانو زهریله ګیس استعمال کړے وُ، چې کردانو ددوئ
دایجنټ شافیصل سره عراق کښې اوسیدل نه غوښتل او بل دکردانو
تیل د پرنګیانو پکار وو، نو دوئ کردان مړه کړل او تباه
کړل، مګر د تیلو کوهیان یې پرېښودل. او بل باچاخان
ته داور معلومه شوه چې د پرنګي دکرائې فوج هندو ـ
ستانیانو عربو کښې د پرنګي دپاره څه نه وو کړي، تردې
حده پورې چې په مکه یې ډزې کړې وې، نو دا ټولې
داسې تجربې وې، چې دباچاخان سترګې یې نورې هم
خلاصې کړې، اوس ورته معلومه شوه چې ایشیا دپرنګي
دآلتو انو د پاره هندوستانیانو غلامه کړیده، نو پکار
دي چې د پرنګي اصلي ځائے چې دوئ په ټوپونو وهي
یعنې «هندوستان آزاد کړو، هندوستان منظم کړو، د

دې عزم سره حاجي عبدالغفار خان ، باچا خان فخر افغان
واپس پښتونخوا ته راغې .

# پښتو او د پښتون اخبار

## ښست

### ( مجله - رساله )

د دې متعلق په خپله باچاخان لیکي :

« په جیل خانه کښې ما د خپل قوم په حالاتو په ښه شان سره غور کړے وُ ، زه په دې نتیجه ورسیدم چې په دنیا کښې هیڅ قوم بغیر د خپلې ژبې نه ترقي کولے نه شي ، او په هغوئ کښې علوم او فنون پیدا کیدائے نه شي ما داراده کړې وه چې ضرور به یوه رساله په پښتو کښې د خپل قوم د پوهولو ، د دنیا د حالاتو نه خبرولو او د خپلې ژبې طرف ته د مایل کولو (مخ کولو ) د پاره جاري کوم ، او د دې کوښښ به هم کوم چې انجمن په خپله ژبه د بچو د پاره د ابتدائي تعلیم انتظام وکړي ، حقیقت دا دے چې د غه وخت په پښتو ژبه کښې هیڅ نه وو ، او نه پښتو د چا یاده وه ، او پښتون قوم دومره ناپوهه او نادانه وُ ، چې خپله ژبه ورته سپکه ښکاریده ، او چې کوم قوم ته خپله ژبه سپکه شي ، نو هغه سپک شي ، او چې خپله ژبه

ترې وروکه شي نو ورکه شي » د دې بیان نه صفا جوتیږي،
چې باچا خان څومره ژور سوچ لرلو. دجیل دسختیو
او تکلیفونو باوجود د ده سره یو غم وچې هغه د.
پښتون قوم . او د صحیح تجزیه کړیده،چې یو قوم
ژبه نه لري، هغه به څه ترقي وکړي، ولې پدې چې
ژبه تشه دخبرو اترو دپاره نده، خبرو اترو ترد لیک،
لوست او علم ضرورت نه وي، مګر یو قوم هله ژوندے
پاتې کیدائے شي . چې د ده ژبه د ژوند په هر اړخ حاوي
وي، نو پښتو ژبه د داسې نعمتونو نه محرومه وه
پښتو نه درباري ژبه وه نه تعلیمي. او نه نشریاتي
او اخباري ژبه وه، بلکې د تاریخ په دوران کښې پښتانه
ډیر بادشاهان شوي دي، مګر دوئ خپلې ژبې ته اهمیت
ندے ورکړے، د یو نسل نه پس دوئ بیا ورک شوي
دي، ژبه او ثقافت ځنې تلے دے، دخپل مورني وطن
او خلکو نه بیګانه شوي دي، چې دغه بدبختي ترننه ورځې
پورې روانه ده، د ژبې متعلق باچاخان خوب نه ولیدے
بلکې ده یو منطقي سوچ کولو او روزانه به ورسره مخامخ
کیدو." د امان الله خان سره د دې خبرې د دې دلیل
دے چې باچا خان امان الله خان دې ته تیار کړے وُچې
پښتو ژبه نده کړي . د حبیبه سکول د طالب علمانو سره

د خبرو نه جوتیږي، چې باچا خان ورته ویلي وو، چې تاسو دافغانیت دعوی کوئ، خو افغاني یعنې پښتو نه درځي، او هم داخل هندوستان کښې په هزارها خلک وو، چې دوئ پښتانه وو، مګر خپله ژبه پښتو بې هیره کړې وه، په دې باندې باچاخان غور کولو، چې دغه مرض کوم ځای پوروت دے، ولې په دې چې نن سبا ژبه تشه د ویلو یا پوهولو ذریعه نده، بلکې نن سبا ژبه اقتصاد دے سیاست دے، ثقافت دے، صحافت دے، د پردیے ثقافت خلاف یوړ هال دے.

د پښتنو بدبختي په دې کښې ده، چې دوئ یودا ځاے پراته دي، چې د پارس او هند د ثقافت سره په یو وار مخامخ دي، موږ قبائیلي ژوند لرو، د قبائیلي ژوند اقتصاد هم روسته پاتې وي، پښتون چې څه ګټي، یا په دفاع خرچ کیږي او یا په تاروڼ باندې، موږ په موجوده پښتونخوا کښې داسې ښار نه لرو، چې موږه ورته په پوره پوره معنیٰ د ثقافت غولئ وواېو. داځکه چې که کابل دے، که پېښور دے، که کوهاټ دے که ډېره اسماعیل خان، که کوټه، که هرات، مګر نن سبا لېږ لږ پېښور داسې اړخ ته روان دے، چې امید کیداے شي، چې دغه به زموږ د ثقافت مرکز وګرځي، او قندهار

هم بد نه دے، خو فتند هار یا ندې ډېر کار پکار دے، ـ
چونکه زموږ په ښارونوکښې پر دي ثقافتونو ژوند
کوي، او پښتانه ورته په کليوکښې پراته دي، هميشه کليوال
ثقافت د ښاري ثقافت نه ماتې خوري ، داځکه چې ښاري
ژوند د کليوال ژوند نه ځنګښې وي، نو چې څوک د کليوالي
ژوند نه ښاري ژوند ته اوړي، نو هغه کليوال خصلتونه
پرېږدي، او ښاري چلن زده کوي ، د مثال په توګه
د کلي ژوند په زراعت يا په څناورو ساتلو پاندې ولاړ
وي، او سخت ژوند دے ، کليوال ژوند کښې سندرغاړي
رباب، نقاش، ژوند نه تيريږي، داځکه چې کليوال ژوند
کښې دوئ نه کر او نه کشت کولے شي ، او نه شپانه توب
کولے شي، نو کليوال ژوند کښې چې څوک دغه کارونه
نه شي کولے، نو دده ژوند تريخ دے ، کليوال ته ولته کښې
بې کاري دے که چيرې کليوال ورونه کښې څوک داسې
روږ وپيدا شي چې سندرې وايئ يا رباب ږغوي نو داسې
ورور اول خپل ورور نه قبلوي ، او بل کليوال ژوند کښې
مسخره کيږي ، چونکه دوئ د کليوال ژوند د تقاضو په پيمانه
پوره نه وي، نو دوئ ته بله لاره پاتې نه شي ، بغير د دې
نه چې ښار ته لاړ شي ، او د خپل فن په ذريعه ژوند وکړي .
که چيرې د غه کليوال ، سندرغاړے يا فنکار داسې ښار

تەلا ړ شي ، چې د ده ژبه پکښې ويلا کېږي ، نو د ے کليوال پاتې نه شي ، ـه ښا ري ژ وند اختيار کړي ، مګر په ژبني او ثقافتي توګه د ے او د ده اولاد محفوظ پا تې شي ، مګـر د پښتـنو مسئلـه بالکل جيدا ده ، موچې د کليوال ژوند نرېه ښار و کښې پناه ا خلو نو نه صرف کليوال خوئ دلاسه ورکوو بلکې خپله ژ به او خوی حصلت هم ، دا ځکه چې کليوال ـ ژ وند پښتـو ن د ے او ښا ري ژند غير پښتو ن د ے .
« پارسيبا ن يا هندي » همدغه وجه ده چې څو مرہ هنرمندان د ژ و ند هر ا ړخ کښې پيد ا کيږي ، نو دوی يا فارسی ثقافت کښې رنګ شي او يا هندي ، موږه بيا هغه سټرل خلك پا تې شو ، دغه سلسله د معلوم تاريخ نه راروانه ده ، مو نږه کښې د سړيتو ب خلك او عالما ن د دغو دوو ثقافتونو ښکار کيږي ، پښتـنو دېرې لوئ لوئ يا د شاه هاۍ ، هند او پا رس کښې جو ړې کړې ، دوئ په فوجي توګـه هند او پا رس با ندې هميشه بر شوي دي ، مګر په ثقا فتي توګه هند او پا رس موږه نغښتي يو ، دغه دلائل لري ، با د شا ها ی صرف په جنګ جد ل نه کيږي ، اول سر کښې فوجي رول بې ډير وي ، مګر روستو رو رو د تجارت ، تعليم او اقتصا د ته ن يا نه رول لري ، چې دغه د رې وا ړه د ښا ري ژ وند اهمجز د ے ، نو پښتو نا با د شا به تخت

د پښتون په زور واخیسته، څو چې د دفتر، تجارت او اقتصاد خبرو په راغله نو بیا به هندي یا پارسي ته مجبور وو، نو دوئ په اقلیت کښې وو، درباري ژوند باندې به د سندرغاړې نه راواخله او ترکلرکۍ پورې به د هندیانو یا پارسیانو قبضه وه، د پښتون بادشاه ځامن او لونړه به د دوئ دلاسه تربیه شول، او بناري اودرباري ژوند به یې اختیار کړو، چې ددې سره به دوئ نه صرف پښتون خوئ خصلت وبائیلو، بلکه دوئ به ژبه او ثقافت هرڅه وبائیلو، د پښتون بادشاه اولاد به په خپله ژبه نه پوهید ه، او مرحله وار به د خپل قوم او وطن نه پردې شول، داځکه چې د ده پلار دکوم ځائے نه راغلي وُ، هغه قبائیلي ژوندۇ چې درباري ضروریات یې نه شو پوره کولے، نوځکه مونږه هند اوپارس کښې په ورکۀ شو، چې ترننه ورځې پورې دغرکار روان دے، ننه هم څوک کابل او څوک کراچۍ کښې ورکیږي.

دافغانستان ۱۷۴۷ کښې داحمدشاه بابا دلاسه بنسټ کښیښودل زمونږ په تاریخ کښې یوه نادره موقع وه، او احمدشاه بابا خپل ناستونه نه هند اونه پارس کښې وټاکه، بلکې دپښتنو خپل هیواد کښې. دے نه صرف بادشاه وُ، بلکې دخپلې ژبې وتلے شاعروُ، مګر ددوئ ټول عمر په فوجي مهماتو او دافغانستان په ټینګولو کښې تیرشو، ددوئ دوفات نه پس ددوئ زوئ شهزاده تیمورشاه خپل ناستون دقندهار نه کابل ته راوړو، دکابل

د بنار ماحول پښتون ماحول نه وُ، دلته مغلي صوباڼي نوکر
شاهي پراته وُو، چې د دوئ ژبه او ثقافت د پښتون نه جدا وُ،
همدغه وجه وه چې د قندهار کليوال او په ثقافتي توګه روستو
پاتې قبائيلي نوکرشاهي د شهزاده سره کابل ته راغله، نو دوئ
د کابل پارسيبان ثقافت مقابله ونه شوه کولے، دوئ هرڅه وبائيلل
چې نن هم کابل محمدزيان يا سدوزيان په پښتو نه پوهيږي،
په نټاد دي توګه دعوئ د پښتون ګوي، مګر په ثقافتي توګه دوئ
ختم شوي دي، که چرې دوئ په قندهار کښې پاتې شوي وے
نو دغه ممکن وو، چې قندهار نه به يو لوئ د پښتنو بنار جوړ
شوے وے، داځکه چې شاو خوا علاقې ئې پښتنې دي، نو که
پښتون د کليوال ژوند نه منلې وهلې، نو قندهار به د ده
او دده د راتلو نکي نسل لپاره يوه پناه ګاه وه، نو دوئ به په ثقافتي
او ژبني توګه نه ورکيدل، د وخت په تيريدو سره به پښتو ژبه
درباري، او د تعليم او کاروبار ژبه جوړه شوې وه، مګر شهزاده
تيمور خپله کده کابل ته يوړه، چې ورسره پښتون په ثقافتي او
ژبني توګه هرڅه وبائيلل، که څه هم کابليان ټول هر دويم او
دريم نسل کښې ټول پښتانه دي، څوک د جنوب نه او څوک د
مشرق نه راغلي دي. آباد شوي دي او بيا په ژبني او ثقافتي
توګه د دې بنار په نمونه شوي دي، داځکه چې دوئ پرکليوال
وو، او کابل کښې ورته پردئ ژبه او ثقافت وُ، چې دوئ ئې وار

وار ونغښتل ، دغه حال زوړ غزني کښې و ، په لاندې پښتونخوا کښې

پېښور ښار کښې هندکو ویلای شي، په کوهاټ کښې دغه لوبه ده ،

او ډېره اسماعیل خان هم ، ان تر دې چې نو ښار اکوړے

او مردان غونډې ځایو کښې لال کرتي جوړې دي چې پښتانه

پکښې ورکیږي ، چونکه پښتون اولس عموماً ښاري ژوند

نه لري ، نو ځکه دوی نه دفوجي غوبل نه بغیر نور څه ورپاتې

نه دي ، دوی د تجارت ، تعلیم اړخ ته پام نه کوي ، نو ځکه په .

اقتصادي توګه پس مانده دي ، او بل پخوا د ښارونو او کلیو

په منځ کښې تګ راتګ دومره زیات نه و ، لکه چې د ا ن سبا د موټرو

هوائي جهاز اوریل زمانه کښې دي ، پخوا کلیوال ژوند پخپله

پوره و او د ښاریو سره رابطه دومره ګړندۍ او ژوندۍ

نه وه ، دکلي شتمن سړے به په کال کښې یو ځل یا دوه ځل ښار

ته تلو ، او بل په ښارو کښې پر دي خلك وو ، نو دوی به دا-

کو ښښ کولو چې پښتون د ښار ي ژوند سره بلد نشي ، دغه

ملك چې به کلي ته راغے نو د ښار متعلق به یې قسما قسم افوګانې

په غیر شعوري توګه خورولې ، د مثال په توګه کلیوالو خلکو

کښې دغه مشهوره وه ، چې ښار و کښې سړے خواره دي دوی

سړے وژني ، بیا یې حلال کړي ، او ویې خوري ، چې پښتنو

به دغه خبرې واورېدې نو که ښار ته راهم غلل ، خو د سړو خوارو

د ډاره به په منډه-منډه سودا وکړه ، بیا به په منډه کلي ته تلو .

او بل پښتانه به چې مجبورشول، نو دوئ به ښارې ته ورتلل تیرولو ددوئ مجبوری په دري ډوله وه، ځینې به د ترپورانو نه تنګ شول دکلي نه به یې کډه وکړه، ښار ته به لاړل .چونکه دوئ کلیوال وو، نو دوئ کسبګر نه وو، او ښار کښې به یې شلهله مزدوري کوله، دکلي سره به یې رابطه قطع شوله، اولاد به یې دپړ دي ثقافت په ماحول کښې لوئ شول. نو ددوئ نه به خپله ژبه لاړه، چې تن هم په پېښور کښې داسې ډېرخلك دي. چې دوئ هندکو وایي خونسلاً دوئ پښتانه دي، ددوئ نیکونه دکلیو نه راغلي او آباد شوي دي، مګر دوئ یو پردي ثقافتاما حول کښې ګیر وو، نو ددوئ نسل نن هندکو وائي، او بل به دغربت دوجې نه د کلیو نه ښاریو ته راغلل، دوئ به داسې مزدوري کوله چې هغه به نه وُ ایکښې لکه پنډ یتوب، چوکیداري یا بهشي توب اویا دختې کار، چې دے به په شرمیدوُ، نو دکلیوالو سره به یې رابطه قطع کړه چې څوك ورپورې ونه خاندي چې فلانی کابل یا پېښور یا دهلي کښې پنډیتوب کوي، نو د خپل ثقافت سره درابطي نشتوالي په وجه به رو رو ورك شو، او بله وجه به دغه وه، چې چیرې به یې بدي وشوه اویا به یې پړ د ی پیغله وتښتوله نو دے به داسې ځاے ته لاړو چې چا ته به یې درك نه و، د خپلې ویرې به ده رابطه دخپل ټاټوبي سره قطع اوپریکړه، نو دے به هم ورك شو، پدې نمونه به غریب پښتون ورکیده،

دا ځکه چې دده ژبه نه داخبار په شکل وه، نه دکتاب په شکل او نه د مدرسې په شکل کښې وه، هغه دویلو دځائے نه دے بې ځائې شوے وُ، نو ځکه به دده داولادونرخپلوژبه پښتو ورکه شوه د هندي یا پارسي ژبې خاوندان به شول چې دغه سلسله ترنن ورځې پورې روانه ده، دنورو ژبو په مقابله کښې په پښتوکښې فلم نه شته، پښتوکښې اخبار نه شته، پښتو کښې نور د معيار کتابونه نه شته، بلکې غټه وجه يې دغه ده چې پښتو ذریعه تعلیم نده، نو پښتانه پخپله د پښتو په لوست او ليکل نه پوهيږي، بلکې پښتو د ژوندي ژوندلويدلې ده داځکه چې پښتوکښې نن سبا اقتصاد نه شته، داځکه چې نن ورځې پورې لاندې پښتوخوا کښې اقتصاد په انګريزي او اردوکښې دے، د سرپيتوب نوکري ټولې د انګريزۍ ژبې مرهون منت دي، اوچې څه پاتې شي هغه داردو دي، نو اخباري، ريډيوي او T.V ژوند باندې اردو او انګريزي ژبې قبضه کړې ده، او پښتون مجبور دے چې دغه دواړه زده کړي، ګنې نوکر کيدا ے نه شي، پښتو نه ذريعه تعليم ده، او نه ددے زده کول دنوکرۍ دپاره شرط ده، هلته غرچه ده چې پښتون تعليم يافته عربي، پارسي، اردو او انګريزي کښې خوليکې کولے شي، مګر خپله ژبه کښې نه، که څوک څه په پښتوکښې ليکي دغه نمونه خلك د زړه زور کوي.

او دوئ بې کچه قوم پرست وُی، مګر عام عادي پښتون هیڅ پروا یې نه کړي، داځکه چې دده نوکري بغیر د پښتو نه روانه وي، که چرې پښتو ژبه لازمي شي، نو دے مجبور دے چې زده یې کړي، پاس افغانستان کښې دغه حال دے، چې په آئین کښې پښتو او فارسي دواړه ملي ژبې دي، مګر عملاً پښتو ته پارسیا نړ نوکرشاهي هیڅ اهمیت نه ورکوي د بدبختۍ خبره دغه ده چې زیاتره دغه پارسي بانه نوکر شاهي نسلاً پښتانه دي، مګر د بیان کړاے شویو مرضونو په وجه دوئ پردو ښادو کښې خپله ژبه او ثقافت بائللے دے نن دوئ په قوم افغانان پاتې دي، مګر په کلتوري او ژبني توګه ایرانیان شوي دي، او ددوئ نه خپل شناخت ورک شوے دے، نو دغه ډله د پښتو سخته مخالفه ده، داځکه چې دوئ ځانو ته افغان وایي، مګر پښتو نه ورځي، پښتون یې پښتون نه قبلوي، او دوئ ته ځانو نه سپک ښکاري چې ځانو ته تاجک، یا هزاره، یا ازبک ووایئ نو دوئ ددې "Identification crises" یعنې کړکیچ سره مخامخ دي، نو دوئ ځکه چې دیو شناخت چې پارسي ژبه ورپاتې ده ددې دفاع د لیونتوب حده پورې کوي، هم دغه حال زمونږ د لاندې پښتو خوا د ورک شوو پښتنو دے، چې نن سباهندکو یا پنجابي او یا اردو وائي، دغه ډېره پیچلې مسئله ده، او غته

وجه یې دغه ده، چې پښتون قوم ویشلی دے، څوک افغانستان
کښې پروت دے، او څوک اولس هند او نن سبا پاکستان کښې پروت
دے، د دیورنډ د کرښې په وجه شل پروت دے، چې دے
نه سیاسي واک لري، نه اقتصادي او نه ژبني.

نو پدې مسلو باندې باچا خان په جیل کښې تفصیلاً او ژور
سوچ کولو، نو دغه ټول مرضونه باچا خان ته وارپه وار
ورحوښیدل، چې څومره یې سوچ پرې کولو، هومره باچا
خان ته تجسوس ورپیدا کیدو، او بیا به یې ددې پر علاجونو
غور کولو، چونکه باچا خان داسې وخت کښې پیدا شوے ؤ
چې دغه پیړه د پروپیګنډه پیړه وه، چې که حکومت ؤ،
او که سیاسي ګوندونه او یا تنظیمونه ددوئ د پاره زبردست
اخبار او رسالې په طور ذریعه تبلیغ وه، چې ددې نه
بغیر دغه ناممکن وو، چې خلکو او جهان ته خپل مرام تکلیف
او فلسفه ورسوي، چونکه باچا خان غوښتل چې قوم ته
خدمت وکړي، او د نوې زمانې په طور یې وکړي
نو باچا خان چې سترګې وغړولې، د پښتون قوم نه
اخبار ؤ، نه رېډيو او نه بله ذریعه وه، او د خپلې ژبې
نه بیګانه وو، نو ځکه ده دوه فیصلې وکړې، چې
یوه دغه وه چې پښتو باید ذریعه تعلیم کړي، او بل ثقافتي
او سیاسي تبلیغ د پاره د پښتو یو اخبار یا رساله راوباسي،

نو دغه دواړه خبرې دیو بل سره تړلې وې، پښتو اخبار یا
رساله په هله کامیابه وي، چې څوک یې لولي، او لولي به یې
هله چې تعلیم یې کړے وي، او دپښتو ژبې لیک لوست وړځي
نو دغو بغیر د مدرسې نه ممکن نه وو، نو ځکه باچا خان،
خپلو دانجمن ملګرو ته دپښتو متعلق وئیلي وو: چې تاسې به
کم ازکم خپلو مدرسو کښې جاري کړئ، او بل باچا خان
ته پته وه چې بغیر دژبې یو ملي تحریک دکامیابیدو سوال
نه پیدا کیږي، داځکه چې ژبه په قوم کښې شاعران، لیکوالان
عالمان روزي، چې بیا رو ستو دوي دقوم رهنمایي کوي
نو دباچا خان سوچ سطحي نه وُ، بلکې ډیر ژور وُ، خو دده
امکانات ډیر محدود وو، داځکه چې پښتون قوم جاهل
وُ، ددوئ دژبې یا اخبار او رسالې نه زیات دټوپک او کارتوس
سره شوق وُ، په داسې خلکو کښې اخبار یا رساله جاري
کول څه دټوکو خبرې نه دي. چونکه باچا خان ځوان وُ او
بل دشتو خاوند وُ، د زړه زور یې ډیر وُ، او پښتون قوم
سره یې مینه وه، نو ځکه دغه ټولو ته یې ملا تړلې وه کښې
دکمزورې عقیدې پښتو ن به پخوا نو به کار شوے وے، او
بل داچې باچا خان دغه ټول مصیبتونه په شعوري توګه منلي
وو، څه په شوق سره یې زغلده باد نه وو ویلي، دغه ټول د
ده ، د هغه کړاونو او تکلیفونو نخوړ و، چې دوئ ۱۹۱۰ نه شروع

کړي وو، مرحله دار دي نتيجې ته رسيدلي وو چې کار کول غواړي، نو دې تولو بلاکانو ته به ورپه غاړه ورمے
او بل باچا خان داخباري زمانې اهميت پوره پوره پېژندلے
وُ، چې دخپل مشن دپاره اخبار دومره ضروري دے. لکه
څومره چې داوسيدو دپاره کور. که څه هم دے پښه خبروُ
چې اخبار په ټوکو نه چليږي، دغه اقتصادي قرباني غواړي،
که څه هم اول سرکښې يې دانجمن خلکو ته ويلي وُو، چې تاسې
يې منظوري راواخلئ، مگر باچا خان ته ورمعلومه شوه
چې دغه کار يخيس ددې نه بل څوک نه کوي، او بل باچاخان
اول سرکښې خلکو ته ويل، چې تاسې نور خرابات کوئ،
نو پکار دي چې ددې په ځائ تاسې دخپل قومي اخبار
ملاتړ وکړئ، مگر دغه اميد يې لاړو خلکو به په روپو
باندې پيسې خرچه کولې، مگر ديوا هم مقصد يعني اخبار-
دپاره يې هيڅ امداد نه کولو داځکه چې روپۍ باندې به
يې نوم کيدو، چې فلانې خان دومره غټه روپۍ کړې وه
نو دے به په کلي کښې نيغ نيغ گرځيدو، او که چيرې يې
اخبار ته چنده ورکړې وايي، نو دومره نه يادېدلو،
نو ځکه داخبار چنده ورته بيکاره ښکاريده، که څه هم
باچا خان ډير پوره کړي وو، چې اصلي کار روپۍ نه ده
بلکې دستاسو قومي اخبار دے، مگر ډيرلږ او بلکې درې

خلور کسان اول سرکښې دې تر تیار شول ، چې باچا خان تر د ړو ډېر کولو په ځای ، د اخبار د پاره پیسې ورکړي.

باچا خان په یوه وخت سیاسي ، سماجي مشروع اخبار یې په غاړه ؤ ، پښتو ژبه یې په غاړه وه یعنې ALL raund ؤ ، پلدې کښې پښتنو په دساباسي په ځای قصې وریسې کولې ، دغه به د پاسه وې. د باچا خان قول دے چې وایې :

پښتو وایه ، پښتو لوله ، پښتو کوه ، او پښتو لیکه او پښتو زده کوه .

د دې نه صافه ظاهره ده ، چې باچا خان د پښتو ژبې دجر ملزم بانې دے . دمخه نه مخکښې نه لاندې او نه باندې افغانستان کښې د پښتو اخبار یا رساله وه ، د باچاخان دخولې خبره ده چې وایې :

« په ۱۹۲۸ کښې مې د پښتون په نوم یو رساله د پښتنو په ژبه کښې دا تمانزو نه جاري کړه ، افسوس خو پدې چې پښتانه دومره لوی قوم او خدای ورله د نعمتونو او دولتونو ډک ملک ورکړے دے ، خو نه د ده خپله ژبه کښې یوه رساله او نه یو اخبار شته . دا د پښتو ژبې اولنۍ رساله ده چې د پښتنو په ملک کښې جاري شوه ، پښتون قوم ډېر خراج دے ، لیکن دې قسم چیزونو باندې پیسې نه لګوي ، او په دې چینونو خرچ کولو سره ناشنا او نابلده دي ، ډېرې پیسې

ما د خپل جیب نه پرې خرچ کړې د دې رسالې د پښتنو په منځ
او مینه کښې یوه نوې ژوند کي پیداکړه ، او دا رساله پر پښتنو
ډېره بنه د لعزیزه شوه ، دا خپل ملك خو پرېږده ، پښتانه
په یورپ ، امریکه او استرلیا کښې د دې نه خبر شو ، نو هغوی
به غوښته او امداد به یې هم ورسره کولو .

اوس د دې بیان نه جوړ شوه ، چې هغه پښتانه چې د
خپل ملك نه ورک وو ، د پولې او وطنې کشالو نه لرې تلي وو ،
او نړیه کښې یې سترګې غړیدلې وې ، نو دوی ډېر په
فخر سره او ویاړ سره خپله ژبه کښې جاري رساله لوسته ، د دې
په ذریعه د دوی رابطه د خپل وطن سره قایمه وه ،

او بل باچاخان په خپله منې چې پښتنو کښې یې بیدارې
راوستې وه ، نو دغه د باچا خان د خپل قوم او ژبې کره تشخیص
و ، او کره علاج یې وه ، نو د دې نه دا اندازه لګي چې د دوی
شخصیت څومره د قوم د نبض نه خبرو ، ده هغه پښتانه چې
پردو وطنو کښې وو ، د دې رسالې په ذریعه خبراو ژبې ،
ټولګه ژوندي وساتل ، او د خپل قوم او وطن نه یې رابطې قطع
نه شوې ، لکه څنګه کښې به وو ، دا څنګه چې اوس دوی ته یورپ
امریکه او سترلیا کښې د خپلې ژبې پښتون رساله رسیده
نو دوی به ضرور د خپل کار او روزګار په ځایو کښې سوروو
قوموښ خلکو ته پښتون رساله ډېر په فخر سره ښودله

چې وګورئ دغه زموږه رساله ده، دې رسالې په پښتون قوم کښې انقلاب راوستو.

باچا خان یوځائے لیکي:

«د پښتنو یې پښتو طرف ته شوق پیدا کړو، او په افغانستان کښې هم ښه لوستل کیده عبدالهادي خان داوی ما ته قیصه کوله چې پښتون اخبار به کابل ته راغے په قومیت (ملت) چې به کوم مظمونونه لیکل شوي وو، هغه به یې موږ لوستل، او د افغانستان په خلکو کښې هم پښتو طرف ته رغبت زیات شو، او په امان الله خان خو یې دومره اثر وشو، چې هغه اعلان وکړو چې خلکو له پکار دي چې پښتو ژبه زده کړي، د دې کاله پس به په دې ملک کښې پښتو تعلیمي او سرکاري ژبه وي، او عبدالهادي خان دا راته هم ووے، چې موږ هم یوه رسالې بنا وکړه، او د هغې نوم مو هم پښتون کېښود، نو امان الله خان راته ووے: چې د پښتو به بس همدا یو پښتون وي نو ما بیا هغې خپلې رسالې له د پښتو ژغ» نوم کېښود، لیکن افسوس چې په ټګیانو دا خبره برداشت نه کړاے شوه، او هغه ووے چې د دې رسالې یو څو نمبري وتې وې، چې افغانستان کښې بغاوت وشو، او امان الله خان لاړو».

د دې نه معلومیږي چې باچا خان نه صرف د دې رسالې په ذریعه لاندې پښتنو کښې انقلاب راوستو، بلکې ویلې افغانانو

یې وینې کړل، که چېرې امان الله خان پاتې شوے وے، نو دغه امکان وُ چې ورکے پښتون او پښتو ژبه به پېرته افغانستان کښې شته شوے وے، مګر پرېږدې ته پته وه چې ژبه د قوم په سیاسي او اقتصادي او کلتوري ژوند کښې کوم کردار لري، نو ځکه دوئ امان الله خان برداشت نه کړے شو، چې دے بغاوت کښې پرېږدې ته علاوه هغه پارسیبان ژبي هم شریک وو چې دوئ نه غوښتل، چې پښتو دې د پارسي ځائے ونیسي، چې زیات تره دغه کلتوري او ژبني ختم شوي پښتنو نسلونه او ولاتو وو، چې دوئ نه خپل شناخت ورکړے وُ، نو دوئ امان الله خان نه بلاګانې جوړې کړې او د کابل او افغانستان نه یې ورکے کړو. بلکې تر ننه ورځې پورې په افغانستان کښې د پارسي تله درنه ده، دوي پښتو ته خپل حق نه ورکوي، دا ځکه چې که چرې پښتو خپل ځائے ونیسي نو دې سره د دوئ موټو پول یعني اجاره داري ختم کېږي، چې دوئ د (جنوبي افریقی) غوندې ژبنې پرستي جوړه کړیده چې ورته (APartheid) وایي.

بل باچاخان ته دغه معلومه وه چې ژبه سیاست دے، نو ځکه یې خپل نظریات او سیاست د پاره پښتون مجله پښتو کښې جاري کړه، د خیراتیا خبره خو داده چې دغه رساله پښتون، کابل یا بل ښار نه جاري نه شوه، بلکې دیو کلي اتمانزو نه جاري شوه. نو د دې تصانه معلومیږي چې زمونږ ښارونه د پردو ثقافتونو

لا سونو کېږي ؤ چې پښتو ن ثقافت به د کلي نه د فارغ کېږي ګکه چې هو ل
نړېدونکي ښوي خیالات د ښارونو نه کليو ته خوريږي ، مګر د لته
خبره بالکل اُلټه وه ، يو کليوال پښتنو ن انقلاب د کلي نه ښار ته وړ کوي
او ژورنالزم او نشر و اشاعت خو خالص د ښار دخلکو کار دے
مګر دلته موږ و وينو چې د پښتنو د ژورنالزم بنسټ ښاري نه
بلکې کليوال دے ، دا ځکه چې موږ په ښار کښې څو کاله نه لو ...
نو ځکه باچا خان زما خيال دے ، چې تاريخ کښې اول ځل د ياغستان د
کلي نه څپاري کړو .
لنډه خبره دا ده چې باچا خان غوښتل چې پښتو او پښتنو
نورو سره سيال کړي . نو ځکه باچا خان د پښتو ژبې ترقۍ او آبادۍ
باندې زور ورکولو ، او غوښتل يې پښتنو قوم دومره بيدار کړي
چې کټه کوے قلم او سمبالوے يې هم شي . او بل باچا خان ته پته
وه چې که چيرې پښتو ژبه د پښتنو په ژوند باندې حاوي شي
نو دے به بيا خپلې ژبې ته کار کوي ، او رو رو به ترقي ورله
ورکوي . او د نورو ژبو سره به يې سيالي کوي . او بل د غه ورمعلوم
وو چې پښتو به په پښتو وديږي ، نو دده سره به زموږ د
شاعرانو او ليکوالانو ډېرې اقتصادي مسلې حل شي . دا ځکه چې
فلم ، ډرامه ، کتابت د ياغ به د پښتنو ضرورت وي ، نو د پښتو
فلمونو بغارې ايکټر په روزګار وي ، ډرامه نګار او ايکټران به
آسوده وي ، د دې سره به پښتنو کا نب نه روزګار پيدا شي ، د

د ژورنالزم په وجه به پښتون اخبار نویس او صحافي په رڼګار شي، ریډیو، T.V کښې به ورته روزګار موقع پیدا شي.
همدا رنګه به د پښتو لیکوالانو او شاعرانو او ډرامه نګارانو ماڼګ زیات شي، او د دوی کتابونه به خلق لولي او خرڅیږي به او که څه هم هغه وخت T.V نه وو، مګر ریډیو، فلم او دتالے بچے دڅ بې په ترقۍ او خورولو کښې ډېر رول درلوده، نو باچا خان پوهیده کښې، صحافت، معاشیت، سیاست، ثقافت او ترقي او بیدارۍ پېر یو وخت لیدل، همدغه وجه ده چې د باچا خان د کړاونو په وجه پښتو ژبه د مرګ نه بچ شوه، که څوکۍ مني او که نه، خوخدائي خدمتګارو تحریک، پښتون او پښتونو دومره خدمت کړے دے، چې سخت ترین مخالف یې هم بغیر تائید نه شي پاتې کیدے. او د دې تحریک چې باچا خان یې مشرو، د خپلې مدرسې په ذریعه پښتو ژبه کښې دومره شاعران او لیکوالان، ډرامه نګاران پیدا کړل چې موږنه د نورو ګاوندیانو قومونو سره په سیالي کولے شو. او دغه صرف او صرف د یو سړي برکت وو، چې هغه باچا خان وو، چې ده خپله خواهشات شاته کړي وو، او صرف او صرف قومي مفادات یې په مخه کړي وو، او تاریخ کښې یې اول ځل د پاره پښتون قوم د اخبار خاوند کړو.

# د خدائی خدمتګارۍ

# بنسټ کېښودل

باچاخان د ۱۹۱۰ نه لګیا و، د خپل عقل، سوچ او پوهې مطابق یې د خپل قوم د پاره کار کولو، او غوښتل یې چې دوی هم ترقي وکړي، خو دوخت د تېرېدو سره ده ټول قسم مراحل تېرول او ورسره یې تجربه جمع کوله، اخر په دې نتیجه ورسېدو چې د داسې کار د پاره یو منظم تحریک، ګوند یا حرکت پکار دے، بغیر د دې نه دغه کار کول ممکن نه دي. یا په بله ژبه باچاخان سیاسي بالغ شوے و، او دیو مشر او د پوخ لیډر ټول خوبیونه پکښې پاخه شوي وو. چې د یو تحریک د مشر یا حرکت د مشر د پاره ضروري وو، دا نجني د ملګرو جګړې او دیوبل سره کېدو نه باچاخان ډېره مودره و، او غوښتل یې چې د دوی نه ځان خلاص کړي، دیو منظم غورځنګ بنسټ کېښیږدي چې هغه خدائی خدمتګار وو.

باچاخان پخپله لیکي،

"مونږه چې د لاهور نه راواپس شو نو په افغانانو کښې -

مړ لویه جلسه وکړو ، زه په جلسه کښې را پاڅیدم او خلکو ته مې
ووے: چې تاسو څنو ویده یئ، او سړي څه کوئ چې د
هندوانو بنځې هم را پیداړې شوې یئ او هغوئ سړو سره
یو ځائے د ملك د آزادۍ دپاره ملا تړلې ده ، او جهد وجهد
کوي، تاسو څنو لږ دې له سرخانه نه وګورئ، څو مړ لوئ سیلاب
را والا دے، او سیلاب بونه همیشه وده قوموونه وړي ، پاڅئ ویښ
شئ، او ملا وتړئ تاسو څنو وګورئ، پرنګیان وایي چې هندوستان
موږنه په توره فتح کړیدے ، دا زموږ دے ، او موږ به
پرې حکومت کوو، او ګټه ورنه بیا نو موږه ده. هندوان پرنګي ته
وایي چې تاسو په زور موږنه ینولي یو، او س چې موږ پوه
شو او متفق شو خپل وطن درنه اخلو دا زموږ وطن دے ،
او س به پرې موږ حکومت کوو ، تاسې ددې نه خبر یئ که نه؟
زه موخبروم چې خبر شئ ، دهندوانو او پرنګیانو پدې جنګ
دے ، چې پرنګي وایي چې هندوستان کښې به بادشاهي
موږ کوو، او هندوان وایي چې دلته به بادشاهي موږ
کوو، او مسلمانان دغفلت په خوب ویده دي ، نو اوس
پښتنو وروڼو ، زه ستاسو نه پوښتنه کوم چې تاسو به
څه کوئ ، تاسو به یئ دوا او ته به دعا کوئ ، او دغلامۍ
او پستۍ نوب څونه به تیروئ. (موږ چې هلکان وو ،
غوزان به موکول ، لویه ذاتره به مو را بنکله او په هغې کښې

به مو غوزان کښېنودل، ګټه او بایلات به د دواړو لوبغاړو وو، یو دریم سړی به دواړو له غوزان راټولول) نو اې پښتنو! تاسو ته وایم، دا د پښتنو ټوب ټوند خوشې وي او که تاسې هم ځان د دې وطن مالکان ګڼئ؟ نو راځئ او ملاوتړئ او دا خپل ملک خپل کړئ».

جلسه به ډېر جوش او خروش ختمه شوه، او په پښتنو زما د تقریر ډېر ښه اثر وشو.

د شپې زموږ د کلي محمد اکبر خان او حجاب ګل، او یو څو نور هلکان زما د لیدو د پاره، زموږ حجرې ته راغلل، او ما سره یې د یو جماعت جوړولو مشوره وکړه، ما هغوئ ته ښه شان پوه کړل، چې دا لوبې ټوکې نه دي، دا ډېر مشکل کار دے، د دې په لار کښې ډېر اغزي دي، په تاسو به زما د تقریر ډېر اثر شوے وي، خو لاړ شئ په دې معامله ښه غور او فکر وکړئ، هغوئ مې رخصت کړل.

بله شپه بیا راغلل، ما ورته وویل: چې ستاسو په ذهن کښې زما هغه تقریر لا اوس هم ناست دے، تاسو د دنیا تاریخ وګورئ په دنیا کښې چې څوک د خدای د مخلوق د خدمت د پاره، پا څېدلي دي، نو په هغو مصیبتونه او تکلیفونه راغلي دي، تاسو بیا په دریم ځل په دې ښه غور او فکر وکړئ، بل شپه بیا راغلل، او راته یې وویل، چې موږ په دې کار ډېر

غوږ او فکر وکړي، موږ د قوم او ملك د خدمت د پاره د هرقسم تکلیفونو، مصیبتونو او قربانیو ته تیار یو. بیا موږ ګیناسو او په دې خبره موغوږ کولو، چې د دې نوې جماعت نوم د ې څه وي، زما دا خیال و چې پښتون کښې د خدمت خیال نشته په دې جماعت موږ یو داسې نوم کښېږدو چې د پښتنو په دماغ کښې د خدای د پاره د خدمت خیال پیدا شي، قسم قسم نومونه پیش شول، خو زموږ خوښ نه شول، د شپې زما په زړه کښې د خدائی خدمتګار نوم راغے «چې سبا له دوئ راغلل، نو ما ورته دا نوم وړاندې کړو، د دوئ هم خوښ شو، او دُعا د خیر پرې وشوه، د دې نوم زموږ په زړونو کښې یو قسم اطمنان پیدا کړو».

د دې وینا نه دا ثابته شوه چې باچا خان د هر قدم د جزباتو په سیلاب کښې نه وُ اخیستی، او ښه ډور سوچ چې پرې کړے وُ، او بیا لو سرو تودو باندې یې ما غزه خلاص کړي وو، د دې نه معلومیږي چې باچا خانږ دې نه تیار نه دے، چې هندې سیاست کښې د پښتو مهم رول ادا کړي، بلکې د جدو جهد اراده یې کړیده، او د هر کار د یو جماعت یا ګوند نه بغیر ممکن نه وُ، د ده په زړه او سوچ کښې پښتون او مسلمان دواړه په یو وخت کښې موجود دي، ګوري چې هندوانو او پرنګیانو د هند په

خو ښه او تر خو باندې سره په جنګ دي، نو موږ ته هم ښکاره دي چې خپله ونډه واخلو. ددې هلکانو سره د باچاخان د سلوک نه اندازه لګي، چې باچاخان په سیاسي توګه پوه او بالغ دے. داسې کارونه نه کوي چې سبا په سړو ما نه وي، نو خپل ملګري یې تیار کښې نه ساتل، بلکې په ډګر یې ورته هغه ټولې پلانې ورجوړولې، چې ددې په سبب به ور پیښیدلې، چې ملګري یې ټینګ شول، او هر مصیبت ته تیار شول، نو بیا باچاخان د ذمه وارلیږو په څیر ددوئ سره دیو ګونډ جوړولو او میدان ته رادننګلو متعلق خبرې شروع کړې. دا ځکه چې باچاخان په دوئ کښې احساس ذمه واري راپیدا کړو، چې دغه نمونه کار دیو لوی مشر کار وي. په خوله باندې احساس ذمه واري ویل ډیر اسان کار دے، مګر عمل کښې احساس ذمه واري سرته رسول له ټولو نه مشکل کار دے، نو باچاخان داسې ملګري لټول چې دوئ ذمه واریانو ته اوږې ورکړي.

او داسې ملګري یې پکار نه وو چې تر ګرم او سبا ورک، او بل باچاخان خپل قوم او وطن په ښه طریقې سره مطالعه کړے وُ، د دوئ نفسیات او ټولنه ورته معلومه وه، چې کوم مشر خپل قوم نه پیژني یا یې سرسري پیژني نو دده هر یو قدم خودکشي او تباهي ده، چونکه باچاخان اوبدو

تجربه درلسوده، چې هند، افغانستان او تر عربو پورې
کرځیدلے وُ، د پښتون او مسلمان تاریخ ورمعلوم وُ،
نو دداسې قدم نه یې ډډه کوله چې سبا په پښیمانوي،
او باچاخان پښتانه مطالعه کړي وو، چې دوئ په مذهب
ډیر مین دي، نو ددوئ د نفسیاتو خیال ساتل پکار دي، چې
داسې نوم دخپل تحریک کښیږدم، چې کم از کم د ملا او
پرنګي نه په شروع کښې کم از کم د مذهب پر نوم
دوهلو نه بچ وم، دا ځکه چې ده تاریخ لوستے وُ،
چې د دین الهي، دین پاني اکبر باچا د پښتنو روښاني
تحریک د ملا اخوند درویزه او پیربابا سیدعلی بونیر تاجکي
په ذریعه تس نس کړے وُ، او پښتانه یې سره جنګولي وو،
او دخپل وخت ملایان خو یې لیدلي وو، چې دلسورو پو
دپاره به یې د پرنګي طرفداري کوله، او د مدرسو دجوړولو
د وخته ورمعلوم وو، چې ملا څه نه کول، دخپلې بزیرې
قصه وریاده شوه، نو ځکه باچا خان د پښتنو دنفسیاتو
مطابق خپل تحریک ته د خدای خدمتګارۍ نوم ورکړو،
که څه هم ددې کرنتي نه وه، چې ملا او پرنګے به یې نه په
عذابوي، مګر ساده او رښتونے پښتون پدې پوهیده،
چې خدای خدمتګاري چې ته وا یي، او بل دې نوم کښې
غټ هوښیارتوب باچاخان دغه کړے دے، چې ده د

تو رو سیاسي مشرانو په څیر خلکو ته ښنه با عونه نه ښودل داځکه چې ده ته پته وه، چې ده غه پوره کول ممکن ندي او بل ده ده جدو جهد دیو داسې قوت خلاف ؤ، چې ټوله نړیه یې خپل استعماري جال کښې راګیره کړې وه، نو ده ملګرتیا کښې خوندونه نه وو، بلکې مصیبتونه وو، نو ځکه یې خلکو ته داسې نوم وړاندې کړو، چې هدې خدمت طمه او ګټه صرف د خداې نه کیده، باچا خان ځان و رځنی خلاص کړے ؤ، که چیرې باچا خان د پارلماني سیاستدانو په څیر وعدې کړې وې، نو پخوا به دے او د ده تحریک ختم شوے ؤ، او خپل ملګریو به ورته بد رد ویل، ولې چې پارلماني سیاست داقتصادي او سیاسي ګټو او عهدو په بنیاد روان وي، چې ده غه پوره نشي نو د ګوند خلک تښتي، داځکه چې ددوئ مقصد خدمت نه وي، بلکې ذاتي ګټې وي، چې دغه دواړه د باچا خان نه زیات د پرنګي په ملګرتیا کښې وو، او بل باچا خان ددې په ذریعه خلکو ته یو داسې Vision ورکړو، چې دوئ ټول عمر په مشغول وو، یو سیاسي تحریک کښې مشکل کار دغه دے چې خلک مسلسل او د اوږده وخت دپاره خوځنګې پیدا او حرکت کښې وساتي، نو باچا خان دداسې تحریک بنسټ کیښودچې ددې په ذریعه مذهبي، ملي او قومي خلکو ته د خپل وس

مطابق دکار او خدمت پلیټ فارم ملو شو، او دغه داسې تحریک ؤ، چې ژوند يې په انتهايي توګه پورې تړلې نه ؤ، که څه هم باچاخان ټول هغه کارونه کول کوم چې یو سیاسي مشر يې کوي، خو د باچاخان سیاست دغه نه ؤ، چې، خلک وزیران کړي، بلکې بنیاد دې ده غوښتل چې د پښتون قوم غلبیل وجود داسې روغ کړي، چې دکېتې کولو او ساتلو قابل شي، چې هغې کښې دباچا خان د مطالعې او تجربې مطابق هغه مرضونه وو چې پښتون پکښې غرق ؤ، دمذهب په نوم پښتون قوم دیوبل سره په جګړه اچول دباچاخان، دپاره څه نوې خبره نه وه، ده په خپلو سترګو ولیدل، چې سوچه پښتون او مسلمان او په وطن مین باچا غازي امان الله خان، کافر پرنګي څرنګې ورک کړو، چې کافر پرنګي دخپلو ملایانو، پیرانو او دلالانو په ذریعه مسلمان باچا يې کافر کړو، او د خپل وطنه يې وشړلو.

دغه داسې تجربه او واقعه وه چې باچاخان ته دکتابونو کتلو ضرورت نه ؤ، نو ورمعلومه شوه چې پښتون قوم په مذهب څومره ژر غولیږي، نو دے دخپل تحریک په، دوران کښې دې نمونو کارونو ته ډېر متوجې ؤ، نو ځکه يې خپل کار داسې روان کړو، چې هم مذهبي وو هم ملي ؤ او هم ضد سامراجي ؤ، چې ددې نوم په ذریعه

ده خپلې ملکرې دملا او د پرنګي نه د مذهب په نوم وهلو نه بچ کړل، او بل دوئ یعني خدائي خدمتګار په، نفسیاتي توګه دومره زړور شول چې چاهم د کفر، فتوئ کم از کم په ظاهره نشوه لګولې، مګر پرنګیانو نور مهرونه هم وو، نش مذهبي مهرنه وُ، چې پرنګیان خبرشول چې مونږه ورته انجمن ورانولو، او دغه سرې مو پنچې کولو، مګر ده راته یوه بله جوړه کړه چې دغه، خدائي خدمتګاري ده، که څه هم باچا خان بنیادي یو . REFORMER و مګر پرنګیا نو پښتنو کښې هرقسم سیاسي یا اصلاحي کارونه د شک په نظر کتل، داځکه چې باچا خان دخپل تحریک په ذریعه قوم کښې اتفاق رورولي مینه، محبت خپلولي راوستو، د دوئ پام یې تعلیم، تجارت او اتفاق ته راړولو، او د کور دیدنه نه یې خلاصول، او په یو مرکز یې راجمع کول نو دغه پرنګي چیرته زغمل ولې پدې چې پرنګې پوه وُ، چې که یو ځل د پښتون د معاشرې نه دغه مرضونه ورک شول، نو بیا به صحتمند شي او طاقتور او منظم به شي، نو نن چې کومه توانائي دوئ دیو بل خلاف استعمالوي، نو دغه سبا زما خلاف، به استعمالیږي، نو دغه کار چې څوک کا کوي، هغه زمونږ دښمن دے، چونکه باچاخان دغه کار کولو، بل یې دخدائي

د پاڅون کولو، نو پرنګیانو ته لوی خطره وه، او بل د خدائی خدمتګاری په ذریعه خلکو کښې وخت په وخت مینه او ورورولي ډیریده، خلک ټولي ټولي په کښې شاملیدل، نو پرنګیان او د دوی دلالان یې ور خطا کړل، نو دوی ورته مذهبي او دنیاوي ( sTamps ) تیار کړل، چې کوم یو به ښه کار کولو، د موقع سره به یې په لګولو، د مثال په توګه باچاخان لیکي؛

« زمونږ د یې خبرو په خلکو ډیر اثر وکړو، او مونږ چې به هرچیرته لاړو، نو ښځې، نر، واړه، زاړه به ټول راسره روان شو، نو ملایانو دا فتوی وکړه چې باچاخان دجال دے، دا دجال په هکله مشهوره وه، چې دے راشي، نو ښځې، نر او ماشومان به ورپسې وي، ملایانو به خلکو ته ویل، چې تاسو نه ګورئ چې نر ښځې زاړه واړه ورپسې دي.»

د دې نه معلومه شوه چې ملا داسې ویلي نه شول چې باچاخان غیر اسلامي کار کوي، داځکه چې دغه غار باچاخان د ملاګانو نه داول سره نه بند کړے وو، نو دوی او پرنګیانو ایجنټانو د پښتون قوم د ذهنیت مطابق په باچاخان باندې د دجال مهر ولګولو، مګر دلته د مولیانو نه دوه غلطي شوي دي، د دجال متعلق مشهوره

ده یوه د غم نچې دجال به په خره سور وي، په یوه سترګه به ړوند وي، او ګوړې به لوانی او هر څه به کولے شي خو صرف خپله ړنده سترګه نشي ښه کولی، چې پښتنو کښې ځوک دجال پیژني نو ورسره د غه قصې هم پیژني.

د باچا خان خواول مور و پلار او کورنۍ مشهور خلک وو، دویم دا چې باچا خان نه په سترګه ړوند و او نه په خره سور وُ، او نه یې ګوړې عوړ ن ولې، که څه هم د ګوړې د علاقې وُ، او نه یې سرې ژوندي کول، د ملایانو غصه پدې باچا خان ته وه، چې باچا خان بیرته ژوندي او سروئے ژوندے کړے وُ، او ړمانو ته یې د سرپیتوب ځائے ورکړے وُ، دوم او ملا همیشه اقتصادي جګړه وي، داځکه چې کومه معاشره کښې تنګ تکوړ وي هلته دوم او هنرمند قدر وي، د خلکو پیسې او مینه نوځه دې خلکو سره وي، نو مولا بې کاره وي، جماعت یې خوشې وي، او خالي پروت وي، ددې سره د زکات، نذرانه، شکرانه، سرسایه او خیرات په کمید و شي، نو دے سوچ کوي، چې دغه نما بازار چا وران کړو. نو ده ته معلومه شي چې خلک ټول ډول او سرنې شوقین دي، چې ددې سره دوم عزتمند او دولتمند دے، نو دنے اول ګزار په ډول او سرنې کوي، او

مذهبي جامه کښې ورته د شیطان کارونه وایي چې پد ې برشي، چې میوزک بند کړي، نو ددې سره دده اقتصادي جګړه په کامیابۍ سره سرته ورسوي، داځکه چې خلک اوس د ګډاو اتڼ په ځائے د جماعت غوښے نو د کړي، چې ددې سره دده جیب ګرم شي.

نو باچا خان د میوزک الات بیرته رواج کړي وو، چې ددې سره د ملا په جیب ګزار وي، نو دوی د پرنګي په خوله او د خپلو مفادو دپاره باچا خان نه دجال جوړا کړو، مګر اوس باچا خان پښتانه دومره پوه کړي وو، چې کم ازکم دومره بیوقوفي خبره ته دوی غوږ و نه نیولو، چې د ملا مهر (ټاپه) بې کاره شوه، نتیجه یې ـ ور ته کړه چې کومه د دوی طمه وه، نو پرنګیانو خپل غیرمذهبي ایجنټان پسې ګرم کړل، چې شاید چې ددې سرې څه علاج وکړي، هغه هم پیدا شول، چې د پرنګي لوی دلال، قلي خان خټک اوس د باچا خان تحریک د تباهۍ لي بعض، بې اتفاقۍ په بنیاد د تبا کولو اراده کړې وه، دده د مور په تاریخ کښې یې لیکلي وو:

چې ددې علاقي خلک به بوټان تر ورکسېږي، دغه علاقي به ځنې پاڼې کیږي، او مومندو ترېې ویلي وو چې که چیرې تاسې خدای خدمتګارۍ کښې شامل نشئ، نو دغه

ځکه به تاسو ته پاتې شي، څو مره د افسوس خبره ده، چې يو پښتون د پرنګي د پاره څومره ذلالت کوي، چې د دې ذلالت نه قلي خان ملا تړلې وه.

باچا خان په خپله ليکي:

په د غه ورځو کښې قلي خان چې د مومندو پوليټکل و، زمونږ مومند ورو ته يې راوغوښتل، او ورته يې وويل: چې په تاريخ کښې ليکلي دي، چې د دې ملک خلک به بې تاجه نه ځي، او دا ملک به تر دې پاتې کيږي، که تاسو د دې ملکرتيا ونکړه او دوئ سره په تحريک (خدای خدمتګاری) کښې شامل نشئ نو دا حکم به سرکار تاسو ته درکړي، زمونږ يو مومند خدای خدمتګار وُ چې دويلي و؛ ويلی د تخت بهائي سره يوه وړوکي بانډه ده، هغه راغئ او ماته يې دا قصه وکړه، په دغه وخت کښې مونږ سره د پرښه مومندان په د غه تحريک کښې وو، هغه چې ماته دا خبره وکړه، نو ما ورته وويل: چې ته د دې علاقې بارسوخه مومندان راوغواړه، او ماته هم خبر وکړه چې زه هم درشم (ودوئ سره دوروولسه او عزيزولسه يو څو خبرې وکړم، او هغه چې ورته قلي خان ويلي دي، د دې په حقيقت يې پوه کړم، نو هغه خپل عزيزان مومندان راوغوښتل او زه يې هم خبر کړم، زه ورغلم ما د دې خپلو ورونو مومندانو

ته او ویل ، چې د پښتنو د ورورولۍ ویش شوے دے او هر چا له خپله خپله حصه ورکړے شوې ده، او س چې تاسو ته قلي خان څه خبرې کوي ، دا په مونږ کښې صرف د نفاق او جګړې پیدا کولو د پاره کوي او د مونږ د ورورولي ګډوډه کوي».

د دې نه ثابته شوه چې پرنګي اول سرکښې ملاکرم کړو، چې د بدجال تا په یې پرې و لګوله، چې د دې کار و نه کړو ، بیا یې دلال قلي خان ختک پسې اچې کړو، چې ده خپله منصوبه په قبائیلي بنیادونو روانه کړه ، مګر باچاخان یو زیرک انسان و ، نو د سامراج د پرکټي دغه سیکم یې د ناکامۍ سره مخامخ کړو،.

مګر د څه وخت نه پس پرنګي ته یوه بله موقع اتفاقي په لاس ورغله چې هغه داسې وه چې وخداے خدمتګارو، ورډی به یې د سپینې خامتې وې، چې د دورې په دوران کښې به زر زر، خیرنیدلې، او بیدې به بنکاریدې ، د وینځلو بندوبست یې هم نه وو ، ولې پلار چې دوئ شپه ورځ یوه کړې وه ،خلکو ته به یې دعوت ورکولو چې دې قومي تحریک کښې شامل شي ، نو دوئ باچاخان ته سوال وکړو ، چې تاسو اجازه راکړې، چې مونږ خپله ورډي رنګ کړو ، چې نور خیرنه او بده نه ښکارېږي

اتفاقاً چل ورله سور رنګ ورکړے ؤ، چې ډېر ښکلے به ښکاریدو، او ځلمي ځلمي خدائي خدمتګار به ډېر ګلالي ښکېږي لیدل کیدل، بس څه وو چې د پرنګي په لاس دخدای خدمتګارو خلاف یوه بله وسله په لاس ورغله، چې هغه روسي بالشویک ؤ، پرنګي پسې پروپیګنډه جوړه کړه، چې دوئ سرخ پوش دي ( Red shirts ) او د روسانو ایجنټان دي، مولویانو به نوره پسې ز یاته کړه، چې سور روسا ئي حنور مور، نه پیژني، نو د دجال نه قلي خان بوټان نه بوتلل، اوس د بوټان په ځائے خدای خدمتګار روسیان شول، باچاخان د سرې ورد یه متعلق لیکي،

"ماخو وړاندې د دې خبرې ذکر کړے دے، چې د خدائي خدمتګارو ورديه د سپینې خامتا وې خدای خدمتګارو ما ته شکایت وکړو چې دا سپینه ورديه په دوره کښې زر خیرنه شي، او د وینځلو هم څه انتظام نه وي، نو ښه به داوي چې موږ ورله څه رنګ ورکړو. نوما ورته ووے چې ورکړئ، نو هغوئ اتفاقاً سور رنګ ورکړو، خدای خدمتګارو ځان له سرې ورديه جوړې کړې، هرخدای خدمتګار به ځان له په خپله خپله وردي جوړوله، دې رنګ د خلکو په زړونو باندې ډېر اثر وکړو، ځکه چې ښکلې ورديې وې،

او زلمي به پکښې ښکلي ښکاريدل، او ټولو خدای خدمتګارانو يوشان رنګ ورکړی، دغه د سرو جامو وجه وه چې پرنګيانو زموږ برخلاف پروپيګنډې شروع کړې، چې دا د بالشويکو تحريک دے، موږ خو هغه وخت ددې نه خبر هم نه وو چې د بالشويکو هم سره وردي وي، داخو يوه اتفاقي خبره وه، ما تر دغه وخته پورې نه د مارکس نه دلينن او نه دګاندهي جي کوم کتاب لوستے ؤ او نه پرې خبر وم».

دې تحريک په پښتنو کښې دومره جوش او خروش پيدا کړے ؤ چې د سمې پښتون خو پرېږده، بلکې قبائيلي پښتانه هم ځينې ډېر متاثر شوي وو، داځکه چې د پښتون په تاريخ کښې دغه اول ځل ؤ چې دوئ خپل ګوند په خپل وطن کښې جوړ کړے ؤ، او مشرئې هم يو پښتون ؤ.

باچا خان هم هاغه کار کړے ؤ چې کوم احمدشاه بابا کړے ؤ، چې احمد شاه بابا اول پښتون ؤ چې ده د پښتون حکومت د پښتون په خاوره کښې جوړ کړو، او باچا خان هم اول پښتون دے، چې پښتون اولس ئې اول ځل د پاره په يو اصلاحي او سياسي تنظيم کښې منظم کړل، نو ځکه دغه د پښتنو د پاره يو تاريخي او نوې پېښه وه.

نو قدرتي وه چې دسمي او غرو دواړه پښتانه ځنې متاثره وو
دلته نه يوه وړه غونډې واقع ليکم ؛ دغه خو تولو ته معلومه
ده چې باچا خان او يا خدائ خدمتګار کلکتې او ډ هلي ته تلئ
شول، مګر جم (جمرود) يا مهمند او يا وزيرستان ته ورته
اجازت نه وُ، نو ځکه قبايلي پښتانه د دې تحريک ذکتې نه
محروم وو، ما ته د خيال اپريدي د درو آدم خيل ستره،
(ګل اکبر ولد مير اکبر) چې خاصه دار وُ ډکښې حوالدار وُ دغه
خبره کوله، « چې يوه ورځ د سرخ پوشو جلوس د پېښور
نه کوهاټ ته پيدل روان وو، سرونې او ړولونې غړول
پدې ورځ زما نوکرې وه، او حوالدار وم خاصه دار وکښې
زما ځواني وه، چې دوئ په سرکا يعنې دره ادم خيل باندې
کوهاټ ته تيريدل، نو په ما باندې ړول او سرونې او
جلوس دومره اثر وکړو، چې ما نه هرڅه هير شول ،
چې زه د پرنګي نوکر يم ، نو دوئ ته مې اول دخوشالۍ اول
ړنې وکړې، او بيا ړول او سورنې ته ښه وګلډيدم، چې
دوئ لاړل زه خپل حالت ته راغلم ، پوه شوم چې کار خو
دې خراب کړو، د کور والا تول را ته غوسه وو، چې کار
دې بنډ وو، چې سرکاري سړے يې چې تا ورته ګډا کا نې
او ړنې کولې، نوکري دې نوکري لاړه ، حکومت به
دې قيد هم کړي، جاسوسانو کوهاټ کښې په منلو تحصلدار

خبر کړے وُ، ما پسې تحصیلدار خبر راولیږلو، چې کوهاټ ته حاضر شه، دغه تحصیلدار د پېښور د ښار وُ، ما ته کوډه پښتو یې ویله یعنې (ښاري ژبه) او د خدای خدمتګار و سخت مخالف وُ، او س ما ئو له شپه کرل ریبل کول. چې سبا به څه ورته وایم، نوکري خو مې تلې ده، قید مې هم په برخه دے. ټوله شپه خوب نه راتلو اخر یو سوچ راغئ چې دځان نه پاګل او بې وقوف جوړ کړم، او په تحصیلدار اولټا دعوی وکړم، سبا چې تحصیل ته وراغلم تحصیلدار په کوټه کښې ورزې پرزې کنځلې کوې او ښاري پښتو کښې وایې (ته ته کانګرسیانو ته که دزې او ګډاګا نې کوې وې، که دځان نه دې غفار خان جوړ کړے وی، که تا ته پته نه وې، که بې وقوفه، تا ته سرکار حولدار وی، که تا ته نوکري هم ختم که سرکار قید کړې)).

ما ځواب ورکړ چې صاحبه ما خو دزې او ګډاګا نې، څه کولې، چې خلق وایې چې خانصاحب په پټه کانګرسي دے، او په دې خوشحالیږي، نو ما د ستا سو د خوشحالولو د پاره دغه کار کړے دے، دا خبره څه وه، چې تحصیلدار داسې ټوپونه ووهل، لکه او ر پورې وی نیسي، او شور یې جوړ کړو، چې که دې بیوف اپریدي ته که ګوره، که خان په خوشحالیږي، خان په خوشحالیږي، که خان ته په پټه کانګرسي

وي، چې بنه ټوپونه یې ووهل، نو بیا سړي ته خیال، ورغی، چې پرنګیان خو په ما غرق کړي، نو دځان سره یې سوچ وکړو چې دغه بیوقوف، حولدار به هرځای دغه خبره کوي، ددې سره زما د زړې اوګلواکانې دخان صاب، تحصیلدار نه هېرې شوې او د ځان په غم شو، څه وخت نه پس یې ماته په قهر وویل، چې دے ځل مې معاف کړې خو خوله چوپه کړه، که تا کانکرسیانو ته د زړې اوګلواکانې ندې کړي، او خانصاب دسره خبر نه دے، څه بې وقوفه که شکل ورکوه، بیا خیال کوه، ویل یې چې پدې چل د تحصیلدار نه مې ځان خلاص کړو، چې ځان مې ورته پاګل کړو،.

ددې نه معلومېږي چې ده کښې دپښتو او پښتونوالي څومره جوش وو، مګر پرنګیانو پښتانه داسې تقسیم کړي وو، او ترې نن پورې دي، چې یو د بل په بنیګړه نه ورزږي، مګر ددوئ وینه او غیرت کښې هیڅ فرق نشته، چې څومره دچارسدې پښتون مست وو هومره ورته د دره آدم خیل اپریدي وو،.

نو دې تحریک په واقعي توګه پښتون قوم کښې بیداره راوستې وه، نو د پرنګي سره غم وو، چې نن ورته د درې آدم خیل اپریدي پرزې وکړې اوګلواکانې وکړي.

او که دوئ منظم شي، نو دغه نړدې په ما دي، نودوئ
پخه اراده کړې وه، چې ددوئ ځمتول پکار دي، او
بل غټ مصیبت خدای خدمتګارو ورته دغه جوړکړے
وُ، چې دوئ تشدد یعنې د پښتو ن روایتي لوبه یې
نه کوله، بلکې دغه ټول کار یې په عدم تشدد کولو،
او د پرنګي په لاس داسې بربنډه پلمه نه ورتله چې
دوئ ته لاس واچوي، او په فوجي توګه یې وټکوي،
داځکه چې باچاخان یه ددوئ نه قسم اخستو، چې،
څوک دے تحریک کښې شاملدل غواړي، نو دعدم تشدد د
لوز به کوي، او بل یې هرڅوک نه پکښې شاملول،
خلك اوځوانان یې اول ښه پوهول، او بیا به یې اجازت
ورکولو، چونکه باچاخان د پښتون ټولنه رغوله
چې د تشدد په وجه خرابه شوه وه، نوځکه متبادله
لار یې عدم تشدد وُ، د دې نه ثابته شوه چې، باچا
خان د عدم تشدد دلارې دګاندهي او کانګرس نه ډیر
مخکښې اختیار کړیده، داځکه چې باچاخان یو مصلح
(Reformer) وُ، نو اصلاحات په تشدد نه کیږي
بلکې په مینه، رورولۍ او اتفاق کیږي، دغه ټول
کارونه په زور نه بلکې په مرضۍ او خوښه یا ته دي،
یا په بله معنیٰ په عدم تشدد کیږي، نوځکه باچاخان

خپل پخپله د عدم تشدد په لار روان شو، چې د پښتون د تشدد مرض علاج صرف عدم تشدد دئ. چې پرنګي د پاره یو تشدد دپسند پښتون دومره خطرناک نه وُ، داځکه چې پرنګي سره د تشدد سامان ډېروُ، مګر د یو عدم تشدد - پښتون خلاف یوسره عدم تشدد نه وُ، نو پرنګي د بالشویکی نه یوه چاپره جوړه وله او دوئ یې حلالول.
هم چې ۱۹۳۰ کښې پرنګي باچاخان او خدائی خدمتګار، قید کړل، او د دوئ د همیشه د پاره د ختمه ولو، منصوبې یې جوړې کړې، نو یو پښتون صاحبزاده عبدلقیوم که څه هم د پرنګي نوکروُ، مګر دومره بې خونده نه وُ، لکه قلي خان ختک، نو ده جیل کښې باچاخان خبرکړو چې حکومت درته داسې نیت لري، تاسو کوښښ وکړئ، چې هندکښې د یو سیاسي تنظیم سره ځان شامل علان کړئ، چې د مرګ او پهانسۍ نه بچ شئ، نو باچاخان ملګري اول - مسلم لیګ ته ورغلي وو، هغوئ ورته وئیلي وُو چې تاسو پرنګي د ملک نه شړئ او موږ یې تهم کوو، نو زموږه او ستاسو یاري ګرانه ده، چې مایوس شول. بیا کانګرس نه لاړل کانګرس هم پرنګي شړلو او خدائی خدمتګار وهم، نو دوئ دا مشترکه مقصد او بل زپرنګي د پهانسۍ نه د بچ کیدو د پاره خدائی خدمتګار مجبور شول، چې کانګرس سره ګډ کار وکړي.

# د باچاخان د خدمت مقصدونه

دکومې ورځې نه چې باچاخان په ښه او بد پوهه شوے دے، د ده ټول سوچ او کړه وړه د انساني خدمت کړيدي. چرخي د سکول په زمانه کښې د خپل سکول هيډ ماسټر د ده د پاره يوه نمونه وه، چې څومره د ده عمر پخيده، هم په دې پيمانه د ده شوق ورسره واضح کيدو او زياتيدو، چونکه بنيا دي باچاخان د پاره ټول آدم زات يو وو، باچاخان نه نسل پرست وُ، او نه متعصب، مګر د ظالم مخالف وُ، او د مظلوم ملګرے وُ، چونکه باچا خان مسلمان وُ او په پښتنو کښې زيږيدلے وُ، نو دغه قدرتي خبره ده، چې دوئ خپل خدمتي کار د خپل قوم نه شروع کړو، داځکه چې د ده قوم هر ميدان کښې پاتې وُ، دوئ يو ميدان ګرم ساتلے وُ، چې هغه تشه د وُ، او د دې په وجه يې کور او ټولنه ورانه وه، او د ټولو مرضونو جاله ځنې جوړه شوې وه، نو باچاخان غوښتل،

چې دې قوم ته یو صحتمند قوم جوړ کړي، او صحتمند
په هغه جوړ یدلی شو چې د ے هم د نورو قومونو په
څیر، تعلیم، کسب، سیاست، تجارت، ته مخه وړ کړے وے.
باچا خان لیدل چې پښتون قوم جاهل دے، نو دوئ
د پاره یې د تعلیم بندوبست وکړو، داځکه چې د دوئ
د تعلیم غم نه پرنګي کولو، او نه زمونږه مذهبي مشرانو،
که څه هم اسلام کښې علم فرض دے، مګر زمونږه
مذهبي ادارې سخا شوې وې، دوئ دې ته علم ویلو
چې دخیرات او زکوٰة دپاره یو څو ایاتونه زده کړې
او قوم جاهل وساتي، چې د دوئ مزې وي، پرنګي
خو قصداً نه کولو، چې د پښتون په تعلیم کښې یې خپل
مرګ لیدو، هم دغسې ملا سره غم ؤ، چې که دوئ
تعلیم یافته یعنې لوستي شي، نو ځا دم، تعویذ او کوډه
به څوک اخلي، نو پرنګي او ملا دواړو د خپلو خپلو
مقصدونو دپاره پښتون اولس په تیارو کښې ساتل،
غوښتل.

باچا خان چې دغه حال ولیدو، نو ډیر په غمجن
شو، نو اول یې په خپل سر او بیا روستو یې د انجمن
په ملګرتیا نو له پښتونخوا کښې د علم دپاره د مدرسو
جال خور کړو، چې د پرنګي او ملا یعنې د دواړو بدي

يې په سر واخيسته، مګر باچاخان دغه کار شعوري کولو، او هر قسم مصيبت ته تيار و، چې پرنګي د دې خدمت خلق په عوض کښې زنداني کړو. جيل کښې يې ميچنې په وکړ څولې، مګر د دې ټولو تکليفونو باوجود باچاخان اراده ګلهه وړه نه شوه، بلکې چې څومره به ورسره ظلم کيدو، په هغه پيمانه به د ده ايمان کلکيدو، داځکه چې باچاخان خپل خدمت د څه ذاتي طمې په بنياد ولاړ نه و، بلکې د خداى د رضا او د قوم دابادۍ په بنياد ولاړ و، نو ځکه چا د خپل مرام نه واړوه، او تر مرګه پورې په کلکه ولاړ و. نو باچاخان دخپل قوم تعليمي خدمت د دې دپاره کولو، چې مونږ د نورو قومونو سره په دې ميدان کښې سيالان کړي، چې په حقيقت کښې مونږ ډير روستو پاتې وو، او بل دباچاخان مقصد دغه و چې په مونږ کښې علم راشي، نو زمونږه زړونه او فکرونه به رڼه او آزاد شي، دتنګ نظرۍ او جاهليت نه به ووځو، دخپل مستقبل او دبال بچ او قوم په قسمت به غور کوو، يو بل ته به کوهي نه کنو، په معمولي، معمولي خبرو به جګړې نه کوو، تشدد به روروو پکښې کم شي، خپل کور جوړ ولو تر. به يې خيال شي، د روزګار ګټلو لارې او ګودرې به يې ډيرې شي، دخپل پردي فرق به وکړے شي،

نو باچا خان اول بند و بست دعلم وکړو ، دده مقصد دغه ؤ، چې دعلم سره به په دوئ کښې عزیزولي او ورورولي راشي، او د مذهبي او دنیاوي ګنډکپانو نه به په امن شي، وهم او نیارې به لاړې شي، نوځکه باچا خان اول ګوزار په جاهلیت وکړو، چې دباچا خان د تجزیې مطابق دغه دټولو مرضونو بنسټ ؤ، او بل باچا خان غوښتل چې د علم سره به دپښتون ژبه ترقي وکړي، دوئ کښې به عالمان زرغون شي، بیا به دوئ دخپلې ژبې او ثقافت دپاره جد و جهد کوي، مګر پرنګي او د دوئ ایجنټانو هر قدم په قدم ورته مشکلات جوړول.

بل ګوزار باچا خان په دې وکړو، چې دبدل خلاف یې خلک پوه کړل، باچا خان ته ورمعلومه شوه چې د بدل په مرض مونږ څومره اخته یو، چې دپښتون ژوندیې دوزخي کړے دے، او دغه بدل به یې دخپل پښتون رور نه اخیستو، چې بدل پسې بدل به دکینسر مرض شکل اختیارکړو. چې د دې په وجه کورنۍ او قبیلې تباه او بربادې شوې . دوئ به په اقتصادي توګه برباد شول، چې ځکه یا نو رځه به وو ورسره وو، دبدل په وجه به ورځنې خلاص شول، کلئ او وطن به ځنې پاتې شو، مزدورۍ پسې به هندوستان کښې در په درګرځیدل، چې هلته به مړه او ورک شول، دده ټول،

ګټلې به دبدل په وجه د هندوستاني دکچرې وکیل د
تهانې واکمن دارو شول، داځکه چې دغه دواړه غیر -
پښتون خلك وو، نو دد وئ دکانداري هله ګرمه وه
چې پښتون به بدل پسې بدل اخیستو، او د پرنګي دپاره
فایده دغه وه چې پښتون به د پښتون سره لاس په
ګریوان وو، او پرنګی به ځنې په ارام وُ، نو باچا خان غوښتل
چې دغه بنیادي مرض د پښتون د ټولنې نه ورك کړي پدې
چې د بدل په وجه، زموږ ټول ټوندګلي ورو او ځائ په
ځائ ولاړ وو، د مخکښې حرکت کښې نه طاقت وُ او نه همت، نو ځکه
باچا خان دخدائ خدمتګار ته په لاره د دې بنیادي مرض
(بدل) خلاف، سخت جهاد وکړو، د پښتنو کلي په کلي
کلی په کلی وګرځیدو، دوئ یې خبر کړل، نو دغه ټول
قدمونه پرنګي نه زغمل، داځکه چې پرنګي ته پته وه
چې که چیرې باچا خان پدې کارکښې کامیاب شو چې د
پښتون د ټولنې نه د بدل مرض ورك کړي، او دوئ،
منظم کړي، نو بیا به دوئ ځانله بدل اخلي، تهانیدار
او هندوستاني بابوګان وکیلان یې ځکه مخالف دي، چې
پښتون سم شوے وے، نو جګړې ختمیدې، چې د
دې سره د دویُ دکانداریا ټپ کیده، نوځکه دوئ د باچا-
خان او خدائ خدمتګارو سخت ترین دښمنان وو، د

کلي خان، ملك او نواب، چوهدري د منځنه تلو، دبدل د
لرې کیدو دپاره باچا خان ورته جرګې جوړې کړې، چې
دوئ به بغیر دا جرنه دخپلو پښتنو رونړو رو غې،
جوړې کړې، او دغه جرګې اصلي د پښتو نو لپه پښتو
ولاړې وې، په دې کښې نه رشوت وُ او نه سفارش، د-
انصاف او قصور وار په بنیاد به دوئ فیصلي کولې،
دا ځکه چې د دوئ مقصد دخپل قوم دخول وُ، نو روپه
ګټل، پرنګي هم ورته جرګه سستم جوړ و، مګر د دې،
سستم کښې داسې خلك را جمع وو، چې دوئ به رشوتو نه
اخیستل، او ظلمونه کول، چې هغه اصلي د پښتنو دجرګې سستم
روح دوئ بدنما کړو، او قصداً پرنګي غوښتل چې دغه
د پښتنو سستم بدنام کړي، او دخپل مقصد دپاره یې
په کار راولي، یعنې سیاسي خلك به یې د دې په ذریعه
ټکول، چې څه وخت باچا خان ورته اصلي د پښتنو نو له
جرګه سستم رامخکښې کړو، نو دغه کار باندې پرنګي
او دده دلالان به ځرنګې خوشحاله وو، نو دوئ،
د خدای خدمتګارو خلاف د کلي خانان او ملکان را
ګرم کړل، دوئ ته یې د مجسټریټ اختیارات ورکړل،
صرف د دې دپاره چې دغه تحریک په وټکوي، چې خدای
خدمتګارو عاجزانو به صرف او صرف دخپل قوم خدمت

کولو، د بدل د مرض خلاف لګیا وو، خو بیا هم باچا خان تر ډېره حده پورې پدې بر شو، چې د بدل مخه ونیسي، او خدای خدمتګارو کښې خو ډېر کامیاب وو. دوئ تشدد نه کولو، او د بدل اخیستل یې ترک کړل. چې د دې په ذریعه د پښتون معاشره کښې تشدد ډېر کم شو، مګر پرنګي ورپسې وُ، د باچا خان هرې اصلاحي کارې ورانولو، پښتون باید هیڅکله دغه خدمت هېر نکړي، چې باچا خان زمونږ د پاره کړیدي، نو دې مرض خلاف هر ممکن کوښښ شوې دے، مګر پښتون قوم کښې صرف دغه مرض نه وُ، نور زښت ډېر وو، دمثال په توګه پښتون کسب او کسبګر ته په ښه سترګه نه کتل، باچا خان ته معلومه وه چې پرنګي صنعتي انقلاب څکه وکړو، چې خپل کسب او کسبګر ته یې ترقي ورکړه، او نن په ټوله دنیا حکومت کوي، نو باچا خان غوښتل چې د پښتون د ذهن نه دغه مرض ورک کړي، او ورته وښایي چې د انسان لوئ په ذات یا په نسل ندے، بلکې په دې دے چې څوک څومره پیداوارې قوت لري، چونکه کسبګر تول ټیکنیکل خلک دي، نو دیو قوم د آبادئ د پاره دوئ بنیادي رول اداکوي، پرنګي او د ده دلالانو دومره پروپیګنډې کړې وه چې دوئ به کسبګر پښتانه نه ګڼل، بې ځکې پښتون

به پښتون نه شمارېدو، تش خانان، نوابان او د پرنګي ، ایجنټان پښتانه وو، د پرنګي مقصد دغه وُ، چې د پښتنو سوسایټي تقسیم کړي، چې د دوئ اتفاق رانه شي، دې نمونه پروپیګنډې ته پرنګي لمن وهله، بل اړخ ته باچا خان وُ چې ده غوښتل چې پښتانه په یو اتفاق کړي، چونکه د دې پخپله د هر قسم غرور او تکبر نه آزاد وُ، د ده د پاره د کلي خان او شا خیل د واړه پښتانه وو، د ده په سترګو کښې غوره پښتون په ذات نه بلکې په کردار وُ، نو باچا خان دغه زیلي پښتنو ته ډېر لوئ عزت ورکړو، د خپل تنظیم په اهمو او احساس عهدو یې دغه کسبګر پښتانه وساتل، چې دوئ ډېر ښه امتحانونه ورکړل، او د پرنګي ایجنټ خانان او ملکان او خان بهادانو ته یې انتخاباتو کښې سخت سخت شکستونه اوماتې ورکړې.

د باچا خان په برکت دغه تکړه کسبګر پښتانه بیرته د قوم سره یوځای شول او خدائي خدمتګار رئ کښې دوئ، یو بنیا دي رول ولوبولو، دغه د باچا خان برکت وُ، ګني د پرنګي ایجنټانو خو دوئ د پښتونولۍ نه وېستي وو، دغه، د باچا خان یو بنیا دي خدمت وُ، او بل خدمت باچا خان، دغه وکړو چې پښتون قوم ته یې په خپله ژبه پښتو کښې اخبار ورکړو، د جدید ژورنلیزم بنسټ یې کېښنود، چې په دې

باندې په نیږو یا بونو کښې تفصیل سره بحث شوے دے.

د باچاخان نه مخکښې دمشاعرے رواج نه وو، د هر کلي خان به یو شاعر ساتلی وُ، چې میلې به وې نو خان به سره د خپل شاعر او نورکلیوالو، سره به یې ګډون کولو، چې د یو کلي شاعر به د هغه بل کلي پوره پورې ټوکې مسخرې کولې چې دکوم کلي شاعر به په خوله کښې تکړه وُ، نو د هغه بل کلي شاعر به یې پړ کړو، چې د دې سره به د دوئ په منځ کښې جګړې جوړې شوې، چې تر نسلونو نسلونو به روانې وې، چې په همدا سې یوه جګړه کښې باچا خان خدای هسې بچ کړو، ګنې دغه د پښتون قوم ملغلره به ماته او ورکه شوې وه.

نو باچا خان چې زلمے شو او د خپل قوم خدمت ته یې ملا وتړله، نو دې بنیا دي مرض ته یې مخ وروا ړولو دوا ئې شاعران یې دخان د منګولو نه خلاص کړل، ده ورته خلک جمع کړل، مشاعره یې ورته جوړه کړه، چې د واړه شاعرانو ورته خپل خپل کلامونه واورول، نو خلکو به شاباسی ورکولو، هم د دې قدم په ذریعه باچا خان پښتون قوم د جګړونه بچ کړو، شاعرته یې د عزت مقام ورکړو، او د پښتو ښې داد ب یې یو ښه بنیا د کېښود، چې تر ننه ورځې پورې روان دے، دغه خدمت ئلمے نو څه دي؟

بل خدمت چې باچا خان کړے دے، هغه د پښتون قوم د اقتصادي ژوند د سنبه کولو دپاره بنیادي قدم دے "یعنې تجارت"، باچاخان ته پته وه چې دغه نن سبا یوروپي قومونه چې په نورې دنیا حکومتونه کوي او دوئ یې غلامان کړي دي، غټه وجه یې هم دغه ده، چې دوئ د فوجي مهمو دپاره دولت لري، او دغه دولت دکومه راځي، او دغه دولت دکاروبار او تجارت په ذریعه دوئ، ګټي، چې دوئ په دې باندې لوئ لوئ فوجونه ساتي دغه کار غریب ملک او قوم نشي کولے، چونکه پښتون قوم د هندوستان دروازه (یعنې درو) کښې میشت دے، نو چې څوک هم هند ته تللي دي، نو اول یې زمونږ سرکښلي شوې ده، او دغه لوبه د معلوم تاریخ نه روانه ده، نو ددې دائمي جګړو په وجه د پښتون ذهن او کړه وړه ټول لښکري شوي دي، او مونږ کښې صبر نشته، هرڅه په بیړه کوو، او د هرې معملې فیصله په فوجي توګه کوو، سو باچا خان ته خپل قوم ورمعلوم ؤ، چې دوئ غریبانان دي او غریبانانځکه دي چې، دوئ څه ګټي هغه ټول په خوپه ( Defenec ) اویا په (offence) خرڅ کړي، چې دغه ټول د ده د نشد دپسند طبعیت وجه ده، او بل دا ته ورمعلومه شوه چې دوئ کاروبار یعنې تجارت نه کوي، او ټش په دې

مست دي چې، خان صاحب دے، او خانصاحب د لوږې مړکېدو څخه دکانداري ورته سپکه ښکاريده، او دپردو ورځمو پښول ورته سپک نه ښکاريدل، او بل هندوانو او پنجابي مسلمانانو په دخپل مفادو دپاره دغه ويُيل، چې د خان صاحب سره ټوپک ښه ښکاري، او د مرچو او تيلو خرڅولو باندې خان ښه نه ښکاري، او د خان په گُنډو کښې سپړنې څوند نه ځکوي، تلې ته خدائ د پښتون لاس نه دے جوړ کړے، بلکې پښتون خدائ د خامخه دپاره پيدا کړے دے، دده په لاس کښې تله نه بلکې ټوپک يا تورهٔ مزه کوي، نو ځکه دوئ دغه ورته ويُيل، چونکه دوئ تولو پښتنو علاقو کښې خوارهٔ وو، او د پښتون په اقتصاد يې قبضه کړې وه، نو دوئ سره ويره وه چې که چيرې پښتانه کاروباريان شي، نو ددوئ تجارت او شوکاري به ختمه شي، نو ځکه به يې پښتون ته دغه باد ورکول، او د پښتون خوځوځ نه وو چې ور ترې ويلے وايئ، چې غلا کوې، ډاکه کوې، ظلم کوې، مړک ژوبله کوې، دغه کارونه درته ښه ښکاري، او خان ته بهادر وايې، مگر حلاله روزي چې د دکاندارۍ يا منډۍ په ذريعه کټې نو بيا دې خاني خرابيږي، دغه بې هوده مغرور تيا ته باچاخان لته ورکړه، او اتمانزو کښې يې دکوړې منډۍ خلاصه کړه، چې خلک خبر شول، چې باچا خان،

تله کوي خا مخه تر یې لته ورکړه ، نو د غه خبره په خلکو کښې
دځنګل د اور په شان خوره شوه ، چې د خان بهرام خان
خان زوی عبدالغفار خان فخر افغان هم تېروان شو ، نو
پښتنو ته د غه قدم څه عجیبه ښونده معلوم شو، دا
ځکه چې دوی څو اورېدلي وو ، چې پښتون سړی
تله خوند نه کوي ، بلکې ټوپک ورسره خوند کوي ،
چونکه باچاخان څو Reformist و ، او د خپل قوم مرضونو
خلاف یې جهاد شروع کړی و ، نو دد ی د پاره د
دې شي هیڅ قیمت نه و ، چې خلک څه وایي ، بلکې د ې
ته یې کتل چې زما د دې قدم نه په پښتون قوم تر څه
فایده وي ، او که نقصان؟ باچاخان به خلکو ته ویل :
چې ستاسو ځکې نه ځا د منډیې امدن د بس د ے ، دوره
کراو هم پکښې نه شته . او دوی ته یې ترغیب ورکولو
چې دوی کاروباري شي ، ځکه د اصلي کاروباري سړي
څو د غه عادت وي چې نور خلک به خبره وساتي ، چې
دده کاروبار تر نقصان ونه رسي ، مګر دلته باچاخان اوله
کار کوي ، خلکو ته وایي چې تجارت شروع کړي .

د دې نه ظاهره شوه چې د باچاخان بنیا د ي ،
مقصد په منډیې جوړولو کښې د غه نه و ، چې د ے
دولت وګټي ، بلکې غوښتل یې چې پښتون قوم مخ د

تجارت او کاروبار ارخ ته راواړوي، دا ځکه چې باچا
خان په دې پوه وُ چې دوی کاروبار ي شي نو د یو څو به
یې اقتصادي حالات ښه شي، او بل دا چې دوی به مشغول
وي او یو بل ته به کوم نه کتي، او دغه دوه کلاسیکی
لارې چې پښتي یا ځناورو باندې ګزاره په ځائے . به
ورته بله دروزي او کتلو بلاره. جوړ شي یعنې
(تجارت) او بل چې دغه د هندوستان راغلیٔ خلک دي
چې دوی د پرنګي دکارخانې جوړ شوے شیٔ پر،
پښتون خرڅوي، او د پرنګي دکارخانې ته پاره د پښتون
خام مال اخلي، چې پښتو ن په دواړو صورتو کښې بې
برخې دے، نو چې تجارت شروع کړي نو دوی به هم
د دې جوګه شي، چې دغه د هندوستاني اجاره داري
به کلیو کښې ماتر شي، او د پښتو ن بچي به د ښه ژوند
خاوندان شي، باچا خان ته معلومه وه چې بغیر د دولت
نه، نه تعلیم، نه کور، او نه ښه ژوند ممکن دے، او د
دولت د کتلو اسانه طریقه کاروبار وُ، نو د ده مطلب
دغه وُ چې پښتون کاروبار ي شي، نو د دولت خاوند
به شي، اقتصادي او معاشرتي ژوند به یې غوړ او ښه
شي، نو د دې سره به دے د ښه کور او جائیداد مالک
شي، چې د دې په ذریعه به دے په خپلو بچیانو ښه تعلیم

وکړې نو دوئ ددې په ذریعه اباد او ودان شي، د کاروبار په وجه دغه سختي ورځنې ورکه شي، طبعیت به یې سوړ شي، په هره خبره به چا ره نه راخلي، او مشغول به وي، د خپل عزیز د پاره به ورسره د مشکلاتو جوړولو وخت نه وي، چې بې کاره پښتانه به هر وخت په کلي او کلي کښې فساد جوړ کړے وي، همدغه دوړلوئ سکیم باچا خان په مخه کړے و، نو ځکه باچا خان تش نصیحتونه نه کول، چې کاروبار سره شي دے، بلکې ده خپل قوم پیرزندلے و، چې دوئ یو کار هله کوي، چې نصیحت کوونکي یې په خپله وکړي، نو ځکه باچا خان تلې ته لاس کړو، چې ځان ورته نمونه کړي، نو ددې سره د پښتنو نه دغه بې بنیاده او بې هوده مغرورتیا ووته چې د پښتنو پښتنو کښې سپړښتی بد ښکاري، یا د تلې په ځائے ټوپک ورسره خوند کوي.

باچا خان چې ولیدل چې قوم کښې رو رو د کارو بار او تجارت رجحان پیدا شو، او د دغه نفسیاتي مورچه باچاخان ورته ماته کړه، او پښتانه رو رو د تجارت په خوند پوه شو، چې دغه خومزے دي موږه هندوانو په غلط مهمی کښې ساتلي یو، هم هغه ورځ باچاخان خپله ملګري بل ملګري ته وروکړو، ددې نه

معلومیږي چې د پ سړي د خپل قوم د پاره څه نه دي کړي؟،

باچا خان قوم ته په ګوته کول چې که تاسې غواړئ چې د نورو قومونو سره ځان سمول غواړئ نو بايد تا سو په اقتصادي توګه، مضبوط یاست، چې د پنجابي دکاندار خیرات ته مولاس نیولے دے، او دوئ کښې یو اقتصادي انقلاب راوستل غوښتل، چې دکاروبار په وجه به دوئ هند او نوره دنیا کښې وګرځي، د خپلې کلي د ماحول نه په بهر دنیا او ملك وګوري چې دنیا څه کوي او مونږ څه کوو. او بل یې پدې ذریعه پښتون قوم د پرنګي او پنجابي د اقتصادي غلامۍ نه آزادول، د باچا خان خیال داو چې پښتون شتمن شي نو د پرنګي لس روپیو ته به یې سترګې نه وي نیولې، او هغه بنیادي مرض چې پښتنو پسې مشهوره ده چې پښتون هرڅه ته د تینګي دے مګر پیسو ته نه. نو د لوئ باباخواهش و، چې د دغه مرض هله ختمیدے شي، چې پښتون خپل اقتصادي مشکلات د تجارت په ذریعه حل کړي، نو دوه نور او دوه بې قیمته به نه خرڅیږي، او دوه کښې به قومولي او ورورولي راشي، همدغه او نورې وړې قیصې سره یو ځاے شوې، او باچا خان د پښتون

د بنیګړې او آبادۍ دپاره د غه نفسیاتي مورچې ماتې کړه، او دوئ ته يې د نوي اوعوې ژوند دروازې خلاصي کړې.»

دباچا خان خدمتونه هراړخیز یعني All round وو، د يې مرض نه و په مخه کړے، بلکې د تعلیم نه رانیولې د پښتون تجارت، سیاست، ژبه، ثقافت، ټولنیز ژوند پورې د جهاد شروع کړے وُ، او د پښتون د وجود نه يې ټول مرضونه ورکول غوښتل چې د غه نمونه کارونه د پیغمبرانو کار وي، مګر دلته باچا خان ورته ملا تړلې وه، چې تر مرګه پورې نه - پښیما نه شو، او نه په شا شو، خو افسوس په د ماچې پښتون قوم د دې لوئ شخصیت نه فایده وانه خیسته چې په کومه پیمانه ورته پکار وه، خدائ خبر چې بیا داسې پښتون په راتلونکي درې سوه کاله کښې پیدا شي.»

# د باچاخان ملګري

هر څوک چې په نړۍ کښې په څه پسې راپاڅي، نو د شوق نه نه راپاڅي، بلکې د خپل وخت په ټولنه کښې کموتې وینې، چې د هغې وخت د نظام په وجه جوړې شوې وي او د دې ظلم او بربریت شاته داسې قوتونه پراته وي، چې د دوئ د ظلم او بې انصافۍ په ذریعه ژوند کوي، هر هغه څوک چې د دې خلاف راپورته کیږي هغه که پیغمبر وي یا ( Reformer ) او یا سیاسي مشر نو د دې رواج شوي NORMS د دې نه CONFLICT منځ ته راځي چې ځینې دغه مذهبي او ځینې دنیاوي وي، نو زاړه قوتونه ـ حالات داسې غواړي لکه چې وي او نوي خلک دغه بدلول غواړي، چې د دې کبله کښې د واړو ته د خپلو خپلو پلوېانو ضرورت دے، او چې څوک خپل ملګري په ټولنه کښې پیژنې نو هغه ته خپل میشن ډېر اسان شي او زاړه قوتونه د ماتې سره مخامخ کړي، او چې څوک صحیح تشخیص ونه کړي، نو دے ناکام شي، همدغسې حالاتو سره نمونې لوئ باباځان

شوے وُ، ګورو چې بابا دخپل وخت د قوتونوخرنګې تجزیه کړے او بیا یې ځان ته ملګري پیداکړي دي.

واخواوس جوتہ خبره ده چې دباچاخان میدان ـ هندوستان او پښتانه وو، دغه هم معلومه خبره ده چې دلته دپرنګي حکومت وُ، چې نه صرف هند باندې، بلکې نمړنه په پریوتو، د داسې قوت سره پلوانی څه د ټوکوخبره نده دپاچا خان د زېږیدو نه درې کاله روستو پرنګي پښتون اولس اول په دوه حصو تقسیم کړو، یعنې د ډیورنډلاین اوبیا یې دغه نور په برخو برخو تقسیم کړي وو، باچا خان چې کوم ځاے زیږیدلے وُ، دغه ځاے د پرنګي دفوج او پولیس په لاس کښې وو، د پښتون ټولنه په ماتیدو وه، دوئ په تاریخ کښې د یو داسې دښمن سره مخامخ وو، چې د توپې او ټوپک نه علاوه د ریل خاوند او د اوبو جهازو خاوند هم وُ، دکارخانې دعلم او دولت خاوند هم وُ، د ټیلګراف او ټیلفون خاوند وُ، د لارو او موټرو، خاوند وُ، د بجلۍ ګهر خاوند وُ.

چې د غه ټولې خبرې داسې نوې وې، چې دپښتون د تیرشوي دښمنانو سره نه وې، مغل او ایراني بردپښتون سره جنګ په مات ګوډ ټوپک او غشی کولو، مګر پرنګي سره داس په ځاے ریل، لارۍ او ټینک وو، چې روستو ره

هـوا جهاز هم شو، مګر په فوځي توګه ډېر زورور او په اقتصادي او صنعتي توګه دومره مضبوط و، چې، څه حد يې نه و، او بل تاريخ کښې پښتون د داسې دښمن سره مخامخ شوے و، چې د ے هندوستان ته په روايتي لارو نه و راغلے، بلکې داوبو د لارې راغلي وو، او چې ده ته رارسيدلو، سل کاله يې هند خوړلے و، هر څه يې مطالعه کړي وو، نو د ده د هر څه نه يې ځان خبر کړے و، او هند کښې مکمل ناست و، چې پښتون سره نه ټوپک و، نه ريل لارې او نه هوايي جهاز او ټينک و، او نه په سياسي توګه د يو مضبوط نظام خاوند و، بلکې په قبائيلي ټولنه کښې بې خبره او بې اتفاقه پروت و، نو چې داسې قوم کښې څوک د دومره زورور قوم خلاف ملا تړي بايد دغه ډېر زيرک انسان وي، کښې معمولي غلطي يې دخودکشۍ سبب کيدا ے شي.

باچا خان د پرنګي خلاف په منظم توګه راپورته کېدلو نه مخکښې ترخه تجربه کړې وه، او د چا نه يې څه اميد نه و، هغه ټول خلک وار په وار بې کاره وختل باچا خان پخپله مني چې، اول زما خيال و چې يو بابا ملګرې کړي، نو هغه يو رې ترلي مريدان به دې ملګري شي چې دغه په تهيورۍ کښې ربښتيا سبکارېي، خو باچا خان ته عمل

ور جوړ کړه، چې عمل کښې داسې نه ده، بیا یې خیال ورکړو چې تعلیم یافته خلك خبرخلك دي، دوی به په اسانه ملګري شي، مګر دغه هم په عمل کښې دده خوش فهمي ثابته شوه، بیا یې سوچ وکړو چې په قبائیلو کښې مرکز جوړ کړي، نو دهند په آزادۍ کښې به مددګار ثابت شي، خو دغه هم بې کاره ثابت شو، بیا یې خیال وچې افغانستان به دغه کار وکړي، دغه هم ورمعلوم شو، چې افغانستان نه د پرنګي فوجي سیالي کولے شي، او نه اقتصادي. آخر یې سر د الله په تبے ولګیدو، چې دغه تول امیدونه یې خلاص شول.نو په ده کښې دا خود اعتمادي ویښه جوش وو هلو، او ویې ویل؛ چې دغه به زه کوم، هیڅوک یې نه شي کولے چې دغه زموږ دپښتون قوم خوش قسمتي اونیکمرغي وه، چې باچاخان نو به کار شوے نه دے، بلکې پرکلکه اراده راپورته شو، نو یې پخپل قوم باندې دسره غور وکړو، چې په دې کښې به څوك ورسره ملګرتیا وکړي نو ده خپله تولنه داسې وپلاټله :

ده ته دعملي تجربې په ذریعه ورمعلومه شوه، چې پښتون قوم مسلمان قوم دے، دجاهلیت په وجه مذهبي مشران ددوی لو قل کوي، او دوی پښتون قوم

سره هیڅ نوره مینه نشته ، بغیر ددې نه چې ژوري غوندې
ددوی په وینه ژوند وکړي ، او دغو تش په نوم مذهبي مشرانو
زیاته برخه دکافر پرنګي ملګري وو ، دمکراو فریب پرده
یې دخلکو دغولولو دپاره په مخ راځوړنده وه ، او
دپرلښ مذهبي مشران ووچې دوی دقوم اوملت په غم
ککړ وو ، اکثریت یې تیار خواره وُو ، دوی مذهبي
جامو کښې ناست وو ، د پښتون قوم دغولولو دپاره یې
لنګرې شروع کړې . چې دغه لنګرې به د پرنګي په
کمک روانې وې ، مګر پلارې لوبه باندې غریب اولس نه
پوهیدو ، دغازي امان الله خان خلاف هم پرنګیانو دغه
نمونه پیران او مولویان راګرم کړل او یو سوچه مسلمان
او په ملت مین بادشاه یې د تخته کوز کړو ، او یو تاجکی غل
حبیب الله خان (بچه سقاو) یې کښېنو ، چې خوست کښې پرنګي
ورته ګوډ ملا پورته کړو ، کابل کښې دملا شور بازار کورنۍ
چې ددوی پښتون اولس مریدان وو ، پرنګیانو ورته
حکم ورکړو چې شاهي بغاوت جوړ کړئ ، نو دوی
خپل غریب او ناخبر پښتون اولس را پورته کړو ، او د
پرنګي د دلالۍ حق یې پوره کړو ، همدغه شان لاندې
پښتونخوا کښې د مذهبي کورنیو سره د پرنګیانو کلک
تماس وُ ، چې د ضرورت په وخت به دوی خدمت ته

حاضریدل، ان تر دې چې دمشهور مجاهد حاجي ترنګزو صاحب زوی باچاګل دپرنګي سره لاس ؤ، دوی پښتانه دومره غافل ساتلي وو، چې یوځل باچاخان د پیر متعلق پوښتنه کړې وه، دهغه مریدانو ورته ویلي وو دېر لوی بزرګ دے، باچاخان ورته ویلي وو چې خرکې هغوی ځواب ورکړے ؤ چې میلمنو ته غوړې پخـپله ورکوي..

چې دیو قوم دغه حال وي چې دبزرګۍ پیمانه غوړي وي، نو دهغوی دې خدای مل شي، او دتجربې نه ورمعلومه شوه چې پیرانو او ګدهي نښینانو نه دغه طمه لرل چې ګنې دوی به دپښتون په ویښولوکښې راسره کمک وکړي دبې وقوفانو په جنت کښې اوسیدل دي، بلکې باچاخان ته ورمعلومه شوه، چې دوی ځانو ته غټ پلان خوښ کړے دے، چې هغه پرنګي دے، نو زه چې څه کول غواړم، دغه خو ددوی په پلان ګزار دے نو ددوی نه دکمک طمه لرل، خو پریږده بلکې دآقا په لمسه به ماته بلاګانې جوړوي، نو ددوی نه باچاخان زړه صبر کړو، همدغه حال دملایانو ؤ، چې ځینې یې شعوري دپرنګي ملګري وو، اقتصادي فایدې یې ځنې اخیستې، ځنې جاهل وو، نه یې ځانونو ته خیر

رسولے شو، او نه قوم ته، بیو ددوئ نه یې هم طمه قطع شوه، او بله طبقه د پښتنو تعلیم یافته وه، چې دوئ د خبرو ډېر میړني وو، مګر عملي کار ته یې ډېره نه لګیده، د بابو ګرت په چکر کښې وو، او، ډېر لږ دیني عالمان وو او دنیا وي تعلیم یافته خلکو، د باچا خان سره کمک وکړو:

بله طبقه یا ډله د خانانو، ملکانو، نوابانو او خان بهادرانو وه، ددوئ څه دماغ خراب وو، چې د باچا خان سره ملګري شوي وے، دوئ خوځانو ته پلار خوښن کړے وُ، چې هغه پرنګے وُ، نو دوئ مذهبي مشرانو او پرنګي دریوارو اتحاد جوړ کړے وُ، او د پښتون قوم دلوټولو او غلام ساتلو د پاره، چونکه باچا خان ددې مخالف وُ، نو سوال نه پیدا کیږي چې باچا خان له دوی نه طمع لرلے وای.

اوس د باچا خان د پاره غریب اولس پاتې وُ، چې دوئ غم خور څوک نه وو، د دوئ په وینه باندې، خان، پیر او پرنګي دریوارو ژوند کاوه، نو د باچا خان د پاره هیڅ بله داسې لاره پاتې نه وه بغیر ددې نه چې پښتون غریب اولس، ته لاړ شي، او دوئ ته خپل مرام وړاندې کړي، او غریب پښتون اولس دې تر سترګې نیولې وُ، چې دغه درې ډوله ظلم نه به څرنګې بچ شي، چې مذهبي

گنډ کپانو د مذهب په نوم لوټل، د نیاوي گنډکپانو د تهانیدار په ملګرتیا لوټل، او پرنګي غلامان کړي وو، نو د غریب اولس محتاجي او باچا خان خدمت سمون سره راغځي، نو دوئ دغه دریوارو ته سره یوځاے شول، د دوئ د ظلم نه خلاصولو دپاره یې د خداځ خدمتګارۍ تحریک بنیا د کښېښودو، او د با چاجان ملګري رتلي او ن پلي غریبانان وو. چې هغه د کسان نه راواخله ترکسبګر پورې ټول پکښې راجمع وو، داځکه چې دوئ ته نه پرنګي او نه خان او نه پیر د سرپیتوب په سترګه کتل، بلکې دوئ د انساني ابتدائي حقوقو نه محرومه وو، چې دوئ د پښتون قوم اکثریت جوړوه، دېر لږ په قوم مېن خانان او یا شتمنو خلکو د ملي کاروان ملګرتیا کړیده، اکثریت یې د پرنګي دوست او د خپل قوم دښمن وو، نو دغه د باچاخان د زیرکۍ وجه وه، چې ده په معاشره کښې خپل ملګري و پیژندل، او په باباګانو او نوابانو باندې دهوکه نه شو، نو د باچا خان د تحریک د کامیابۍ یوه وجه دغه هم ده، چې ده د ټولنې صحیح تشخیص وکړو، د ملګري او دښمن فرق یې معلوم کړو، او یوځل چې دوی ورسره ملګري شول، نو تر مرګه پورې دوئ نه خرڅ شول او نه پښیمانه شول. داځکه چې د لښکر مشر چېنپله نه خرڅیدونکی

او نه میړونکي وي، هغه د پښتنو خبره چې جرنیل بهادر وي نو فوج یې بهادر وي، د خدای خدمتګار مشر او لښکر دواړه بهادران وو، د دوئ ملګرتیا په ذاتي مفادانو نه وه ولاړه بلکې علمی ملي او قومي مقاصدو باندې ولاړه وه، او د دوئ مقصد د قوم لوټول نه وو، بلکې آبادول او خدمت کول وو او په خدمت کښې ملګرتیا نه خرابیږي، ملګرتیا هله خرابیږي چې خودغرضي راشي، او د دې مرض نه دوئ آزاد وو، نو ځکه یې په تش لاس بغیر د تشدد نه د پرنګي او د هغه د ټالسي ځمنو مقابله وکړه، د دوئ د ملګرتیا او مبارزې برکت دے چې دوئ حکومت قانوني اصلاحاتو ته مجبور کړو د ووټ حق یې غریب اولس ته وکړلو، د خان او د نواب د ظلم نه یې غریب خلک تر ډېره حده پورې وژغورل، او پښتنو ته یې د نورو هندوستانیانو په څیر صوبائي حکومت واخیستو، د زمانې بدنام قانون ۴۰ سرحدي یې ختم کړو، د غه ټول برکت د باچا خان د صحیح تشخیص او ربښتینې ملګرو پیدا کول وو، د پښتنو د نوي نسل که دا خیال وي چې خدائي خدمتګارو د غه کټې په حیوف کړي دي، نو د غه به د دوئ د تاریخ نه، نه واقیف توب وي. په پښتونخوا کښې داسې جیل داسې تهانه نشته چې چیرته د خدائي خدمتګار وینه نه ده تویه شوې، د دوئ مشراو

زموږ د ټولو بابا فخر افغان دوه تاره پښتنی میرویس میدان مېړدان کښې د پرنګي د ظالم حکومت د لاسه ماتې شوې وې، سرې دوېنو ډکې وې، د دوی ځړې او کوړونه پرنګي سوزولي دي، او د دوی خپلې ځمکې د لاسه وتې دي، پرنګي ضبط کړې دي، د جیل او جیلو کښې څو د ظالمونو څه حد نه شته، په دوی او د دوی په بچو باندې پرنګي ګولۍ چلولي دي، چې سپین تنکي تهکر هاتي خیل چارسده بابړه، او قیصه خوانۍ یې ژوندي مثالونه دي، او په کلیو کښې چې خانانو کومې لوټې په غریبو خدائي خدمتګارو کړیدي، په هغې باندې په سلهاو کتابونه لیکل کیداے شي، خو زه د لته د باچاخان د خولې یوه واقعه لیکم، چې لږ درکړوي چې د دوی سره څومره ظلمونه شوي دي،،
" مالات صاحب ته چې خدائي خدمتګارو د ظلمونو او د رنړیزو د قیدیانو ووے، لیکن باوجود د دې خبرو، د پرنګیانو په پالیسۍ کښې څه فرق را نغی، بلکې د اول نه زیات شول، حقیقت داد ے چې د دوی دا ټول ملاقاتونه د دې قوم او ملک د فایدې دپاره نه وې، د دې کښې د دوی مقصد دا وي چې سره بړخنګه دوکه کړو، خپل مقصد به ترې پاتې کړو، او دځان،

سره به یې ملګري کړو، او ما چې څومره ملاقاتونه کړي دي، نو بغیر دلالچ نه مې پکښې بل څه لیدلي نه دي. حکومت دمالیې په بهانه ظلمونه شروع کړل دا نه چې ګوندې خدائي خدمتګارو دمالیې نه انکار کړے وو، خو غله دومره ارزانه شوې وه چې خلک تنګ وو د مالیې وس یې نه کیده، او دمالیې بقایا یوازې په خدائي خدمتګارو نه وې، د دوئ نه زیاتې په سرکاري خانانو او ملکانو وې، خو هغوئ ته یې څه نه وے، خو ازان خدائي خدمتګاران به یې تنګول، مالونه به یې لیلامول، حوالاتو کښې به یې اچول، او لا د هغوئ برخلاف به یې، دا پروپیګنډه هم کوله چې دوئ د مالیې ورکولو نه انکاري دي، پخپله یې هم نه ورکوي، او نور خلک هم منع کوي حالانکه د بالکل دروغ وو، خلکو سره په ریښتیا مالیه نه وه او خدائي خدمتګارو سره هم نه وه، دوئ به حکومت ته وے، چې تاسو د نورو خلکو سره څنګه سلوک کوئ، د غسې موږه سره هم کوئ، موږ خو هم ستاسو رعیت یو، چې بعضو خلکو ته معلومه شوه، چې حکومت د خدائي خدمتګارو په کړولو خوشحالیږي، نو په خدائي خدمتګارو یې ددروغو مقدمې شروع کړي دي، په دواړه کښې د جبار خان او المیر ملک په لاسه خدائي خدمتګار په او کښې

ولاړ وو ، په ابانو کښې افتاب ګل ميا ، او يحيیٰ ميا او د د وئ نورو ورونو او عزيزانو خدای خدمتګار دور ګوپه کوټو کښې بند کړل ، او د بوسو لوړکي يې ور تړ وکړل ، د دې کاکا خيلو مياګانو د پرتګي سره دومره محبت وُ او د هغوئ دومره وفادار او خدمتګار وو چې څه وخت به د خدای خدمتګارو د راتلو نه خبر شول ، نو ټوپکې به يې ورپسې واخيستې او د هغوئ مرګ ته به تيار وو ، د ماليې پرېهانه د بټګرام عبدالله خان ميا او د هغه زوئ چې په خلکو څومره ظلمونه کړيدي د هغوئ بيان کولے نه شم ، ده هم خلک په کوټو کښې بند کړي دي ، او د بوسولوړکي يې ورته کړي دي ، او فضل الرحمٰن خان د شوقدر خو پرين ده ، سرې لاڅه چې د ښځو بې عزتي يې هم کړيده »۔

د دې نه د رګ لګي چې باچاخان داسې ملګري پيدا ـ کړي وو چې هغه نه پرنګي او نه د ده دلالانو مات کړل ، په نره يې د داخلي او خارجي سامراج مقابله کوله ، چې ، دغه د باچاخان د انسان پيژندنې جوت مثال دے ، او د خپلې ټولنې صحيح تشخيص دے ، نو ځکه يې لښکر هم بهادر وُ او جرنيل هم .

# د باچاخان کفایت شعاري

هر هغه سړی، یا قوم چې دوه روپۍ یې ګټه وي او درې روپۍ یې خرچ پخپل ژوندکښې به داقتصادي محتاجۍنه خلاص نه شي، همدغه وجه ده چې باچاخان په سیاسي ژوندکښې دې شیانو ته ډیر پام کولو، چې د ده ګټه د خرڅ نه کمه نشي، یا په بله معنی دامدن او خرچ توازن وساتلے شي. لاس بالکل موټۍکول هم ښه کار نه دے، او بالکل خلاصول یې هم ښه کار نه دے بلکې منځنۍ لار یعنې اعتدال پکار دے، چې دغه زمونږ دلوئ پیغمبر حضرت محمد (ص) لاره هم ده، او د اقتصادي نقطه نظره سمه هم ده، په دې لړ سوچ پکار دے چې باچاخان داسې ولې کول، دغه ده ټول شعوري کول ځکه چې ده د پښتون قوم اصلاح غوښتله، نه صرف سیاسي بلکې اقتصادي هم او معاشرتي هم، او بل دا چې باچاخان یو سیاسي مشرؤ، چکره یې دیو داسې قوم سړؤه، چې هغه دولتمند ؤ او بې شماره اقتصادي، سیاسي

او فوجي ذرايعو خاوند وُ، او بلې غاړې ته غريب پښتون وُ، نو د دوئ مقابله د بې اندازې خرڅ په بنياد نشوه کېدلائ، بلکې صبر او دخپل امدن صحيح استعمال په ذريعه کېدلائ شوه، چې پدې باندې باچا خان کلونه کلونه سوچ کړے وُ، او لوړې تکړه تکړه پښتانه ددې بې غورئ په وجه په اقتصادي توګه تباه شوي وو، او نه د دين او نه د ساډين پاتې شوي وو، او دېر بابانان پرنګي پدې چال باندې چېل جال کښې راګير کړي وو، چې دوئ به په ربښتيا سره د پرنګي خلاف به بېې جهاد ونه کول او دهغې خلاف به راوچت شوي وو، دوئ به لنګرې شروع کړې، د پرنګي خلاف به بېې جهاد ونه کول، او دغې ټولې ناستې پاستې ته د دولت ضرورت وُ، نو دغه وخت نه پس د بابا نه به اقتصادي ټول خراب شو، په دې موقع به د پرنګي دلالانو پرلګے خبر کړو، چې بابا په اقتصادي مشکلاتو کښې ګير دے، نور نه لښکرې کولے شي او نه لنګرې چلولے شي، نو اوس د بابا دپاره به دوه لارې پاتې شوې، يو دغه چې په قلارۍ کښيني، عبادت کوي او چيلې وباسي، يا که دا نه کوي او لنګري چلول غواړي نو دولت دکومه راوړي، نو پدې موقع به ښکاره د پرنګي په لاس ورغلو، پرنګي به . . . بابا ته په خپل

اولاد کښې طرفداران جوړ کړل، نو بابا به د پرنګي په پیسې لنګر چلولو، د بابا اولاد به یې نوکران کړل او حُکم به یې ورکړې، پدې نمونه به د بابا د غوبل نه پرنګي په چل ول ځان بچ کړو او که بابا به جهاد وُ، د پرنګي دلاس لنګر به یې نه منلو نو بیا به پرنګیانو دده په مقابل کښې خپل سړے کښېنوړه، او د پیر په نامه یا بابا په نامه به یې د دې مجاهد بابا خلاف لنګرې شروع کړې، او پښتو نه اولس به دوئ وغولولو، او د اصلي بابا نه به شلخي بابا تر راغلل، داځکه چې د پرنګي بابا به میلمنو ته غوړي ورکول، چې دغه د دوی پیمانه وه چې بزرګئ یې په ناپ کولو، د پرنګي د بابا سره د غوړیو کمی نه وُ، نو پدې چل ول بلندې به پرنګي ټکړه، ټکړه باباګان پنچر کړل، چې دغه موقع به بیا باباګانو پرنګي ته په خپله په لاس ورکړه، چې دوئ به خپل قوم ماحول، او دښمن په صحیح توګه نه وُ پیژندلے، او ځکه اقتصادي منصوبه بندي به نه وه، په توکلو به روان وو، او پرنګي به د دوئ د هرشي نه ځان خبرولو، او د دوئ اقتصادي ذرایع به یې ختارلې، او هر قسم اقتصادي لالچ به یې ورکولو، نو باباګان به د خپلې بې غورۍ او د تولنې د غلط تشخیص په وجه د پرنګي جال کښې ګیر شول.

داځکه چې څوک به ورسره ملګري وو، نو نزیات ،
مریدان به تیار خوان وو، چې د بابا سره به وریجې
(چاول) او غواړي وُو، نو دوئ به ګرم وو، چې
دغه به خلاص شول نو دوئ به بیا بل باباکتو، پښتنو
پیرانو، ملایانو کدی نشینو کښې څوکسان به داسې وي ،
چې د پرنګي د پنجو نه به آزاد پاتې شوی وي، مګر
حقیقت کښې اکثریت د دوئ په لاس ورغلي دي، داځکه
چې دوئ نه ځان وپیژندو او نه جهان ،.
د مثال په توګه وزیرستان کښې یو پیر وُ چې د شامي
پیر په نوم را پیدا شوے وُ، هغه د محسودو او وزیرو
لښکرې جوړې کړې، غوبل یې جوړ کړے وُ، اخر
دغه پیر پرنګي په ۶۰ شپیته زره پونډه باندې د میلي د
دغوې غوندې واخیستو، محسود او وزیري پرځاے
پریښودل، او اصلي فقیر حاجي میرزا علي خان فقیرآف
ایپي ته یې مشکلات جوړ کړے وو، دے چې خرڅ شو
وُ نو د پرنګیانو وزیرعظم د هند وائسرائې ته لیکلي وو؛
چې دغه بل فقیر سره هم خبره وکړه، د بل قیمت ورکړه
چې موږ ځینې په ارام شو، (مطلب یې حاجي میرزعلي
خان فقیرآف ایپي ته وُ ) نو د هند وائسرائې ورتر لیکلي
وو چې د دغه بل اخیستل را نه ګران ښکاري. د فقیرایپي

خرڅیدل ځکه کران وو، چې یو خو د ے شعوري د.
پرنگیانو خلاف راپورته شوے و، او بل قوم پرست،
ؤ، او د ریم ور تر خپل اقتصادي پوزشن معلوم و. نو
شاهي پیر به پلاو او کلو غوښه خوړله، او حاجي صاحب
به وچه ډوډۍ د پیاز سره خوړله، دا ځکه وه چې،
حاجي صاحب ته غوښې یا پلاو خوند نه ورکولو، بلکې
د ے شعوري پلډ پوه ؤ، چې دغه کار زما د لاسه پوره
نه دے، چې کول یې و غواړم نو بل به یې بل څوک ورکوي
هغه پرنګے ؤ، چې د شاهي پیر بل یې ورکړو، ژوندے
ورکړ شو، او حاجي صاحب په وچه ډوډۍ باندې
صبر وکړو او خپل تاریخ یې جوړ کړو، داځکه چې
د ے خبر سړے ؤ، نو باچاخان د دې ټولو نه خبر
ؤ، او د هر قدم اخیستو نه مخکښې به یې په هر
مخ ښه غور او فکر وکړو، چې د دې به څه نتیجې
وي، هم دغه شان ډیر پښتانه مشران تیا او ورکړ
شول، چې د دوئ به هم دوه روپۍ ګټه وه، او
د ریې روپۍ به یې خرچ ؤ، چې اخر به توازن
ورځنې خراب شو، د ځکې په خرڅولو باندې
به یې شروع وکړه، چې جړګرمه وساتي، یو
وخت به راغۍ چې دخپلې فضول خرچۍ په وجه به ځمکې

نه هم خلاص شو، د دے خو به دخدای په قهر ککړ شو، مګر دخان سړی به یې پټول اولاد تباه او برباد کړو، د دے به ځان و او مشر به وُ، مګر څه کسب به یې نه وُ زده کړے، دا ځکه چې کسب او کسبګر خو دده په خیال ددریمې درجې خلك وو، چې دځکې نه به خلاص شو، دآمدن ذریعه به یې ختمه شوه، کسبګر دے نه وُ نو یا به یې ډاکې شروع کړې، او یا به پردی خان په کلکته کښې او بمبۍ کښې پنډي شو، او یا پلا یې شډوله مزدوري کوله، ډکینټي او بیلچې او یا به د هندوستاني دبنګلې چوکیدار وُ، پردي، ماشومان به یې مشغولول، دا ځکه چې وطن کښې یې دګټلو ذریعې نه وې، نو د خپلی فضول خرچې او د غلطې اقتصادي منصوبه بندۍ په وجه کلې کور وطن ځنې پاتې شول، او هندوستان کښې به ورك شو،

دا مثالونه د باچا خان پر ځکښې پراته وو، نو د باچا خان کفایت‌شعاري تر په دې پس منظر کښې کتل پکاردي باچا خان فضول خرچې د پښتون قوم د تباهۍ یوه اهمه وجه ګڼله، نو ده غوښتل چې ددې علاج وکړي، او که دے هم دغوړو بابا جوړ شوے، وے، نو نن به د دے باچا خان نزوُ بل څه بهٔ وُ.

د ده لوړي هم په دې کښې ده، چې ده دغو د وبابا ګانو
په خيبر په توکل کار ونه نه کول، بلکې په هر مسئله
به يې غور او فکر کولو، بنه او بد اړخونه يې
ښيږل، دغه هيڅوک پکار نه دي، چې باچا خان
ريفارمر وو، ده مرضونه ورکول، نه که زياتول
او بل دا چې که باچا خان د لنګرو او پلاوونو لاره ځيستې
وې، نو د ده ځايداد به پخوا، پخوا ختم شوی وه،
نو يا به د پرنګي بابا جوړ شوی وی، پښتون
اولس به يې لوټلو، لکه د غونو، او يا به هند ته
دمنډو ته پسې ورک شوی وی، چې په دې،
د واړو صورتونو کښې د پښتون په خير نه راته، او
داسې ممکن نه وو چې خرڅ دی پرنګي ورکولي،
او کار يې د پرنګي خلاف کولای، Living in Rom
چونکه د باچا خان جنګ د پرنګي quarl With POP „
او د پښتنو د غلطو رواجونو خلاف وو، نو ځکه
باچاخان خپل مدد پخپله کولو باندې تکيه وکړه،
او بل دا چې باچاخان ته معلوم وو، چې بابا ګانو، نوابانو،
خانانو او ملايانو د ده د ملګرتيا نه انکار کړی وی، دا ځکه
چې باچا خان د پرنګي خلاف وی، او ده د پښتون قوم د راغولو
اراده کړې وه، چې دغه نمونه کار د دوی خلاف تلو،

باچاخان ته غریب اولس ورپا تې وُ ، دوئ یعنې غټانوبې مخالفت کولو، پاچاخان هغه اقتصادي پالیسي اختیار کړه چې دده د ملګرو د اقتصادي ځوند سره یې سمون خوړ، (یعنې باچاخان پیاز او دوډه او شوروبي، د پلاو او ګډانو لاره یې پرېښود له ، داځکه چې باچاخان ته دا پته وه چې دده لښکر ددې توان نه لري) نو که باچاخان دچرګانو اوګډانو لاره اختیار کړې وې ، نو دغه خو دکلي دخان، نواب او پیرصاحب دلاسه پوره وه. او دوئ پتول دېرنګي ملګري وو، د باچاخان ټیا دقوم خدمت پاتې وُ، او باچاخان پدې باندې شعوري پوره وه ، چې که زه پښتون ابادول غواړم ، نو زه به ځنې پابندي په ځان منم ، چې هغه کفایت شعاري وه، باچاخان به شروع سره دوډه خوړله ، د پیاز او ګوړې سره، چې دغه نمونه میلمه ، میلمه کول د هرپښتون دلاسه پوره و، داځکه چې دوئ ګوره ، شوروبې لرلې ، اوکه باچاخان چرګان خوړلې، نو بیابه خلك ځنې پټېدل، داځکه چې د چالاس رسي ، چې د ومره قیمتي دو دعه ورکړي او بل باچاخان په دې سوچ کولو ، چې که چیرې څوك دغه نمونه دودعه ته غاړه ونیسي ، نو ما دخیر په ځای دغه پښتون تباه کړو، د شرمه به ځا د میلمستیا دپاره،

.. . قرضه واخلي، او بیا به تول عمر قرضداره وي
نو بیا چې زما نه خیریږي کلي نه به تبنتي، نو ما
او نورو باباګانو کښې بیا څه فرق شو، نو باچاخان
ځان شعوري ور ته نمونه کړو، د عام او غریب،
پښتون خوراک یې خپل خوراک وګرځولو، نو
ځکه د باچاخان ملګري کال په کال زیږیدل، او دده
میلمستیا ته به خلك خوشالیدل، دے به رحمت وُ او
عذاب به نه وُ، باچاخان اول ځپل ځان باندې دغه
دکفایت شعاري قیود یې لاګو کړل، او ځان یې
ور ته نمونه کړو، بیا یې خپل خدائي خدمتګارو
ته وویل، چې تاسو به د فضول خرچې نه ځان
ساتئ، میلمه ته به هغه ورکوئ چې کوم ستاسو
بچي خوري، نو باچاخان د خدائي خدمتګارو نه
د ملخانو سیل نه جوړو، چې په کومه علاقه کښې
دوئ میلمانه شوے وے، هغه یې تباه او برباد
کړے وے، بل غټ مقصد د باچاخان دغه وُ چې
دے او دده ملګري، د خپلې غلطې اقتصادي منصوبه
بندۍ په وجه د پرنګي په جال کښې ګیر نه شي،
داځکه چې پرنګي کوښښ دا وُ، چې دوئ مجبور
شي، او ما ته د نورو باباګانو غوندې سر ولګوي،

مګر باچا خان داسې نه ؤ ده په وچه ډوډۍ، صبر وکړ، نو ځکه د پرنګي دجال نه آزاد پاتې شو.

بل د دې شي نفسياتي اثر ؤ، هغه دا چې د باچا خان او يو غريب پښتون خوراک او جامه کښې څه فرق پاتې نه شو، نو دوئ باچا خان يو کس د دخپلو منځو نه ګڼهولو، دې احساس کمترۍ کښې کير نه وو، چې دغه خان دے او موږه غريبانان يو، نو باچا خان خپل سياسي او خدمتي ژوند کښې دغه اوصول جوړ کړي وو، چې تر ممکنه حده پورې دې د کفايت شعاري نه کار واخيسته، دوئ د ډېرچاے او هرځاے ميلمستيا باندې سخت بنديزلګولے ؤ، د جلسې کلي کښې ډوډۍ او شپه کول منع وو، نو ځکه به هرکلے جلسې ته تيار ؤ، او بل دا چې باچا خان د خدائ خدمتګارو نه د ډوډۍ مارو لښکر نه جوړولو، دغو ټولو پابنديو سره دا ته د باچا خان سياست پروت ؤ، باچا خان د فضول خرچۍ سخت مخالف ؤ، او خاصکر په ډوډۍ باندې د خرچ خو سخت مخالف ؤ.

لوځل ما ته د پښتون سټوډنټس فيډريشن مرکزي صدر جناب نثار خان ښينواري دځنګل خيلو

کوهاټ خبره کوله، چې یو ځل باچاخان د مولانا بهاشاني بنګالي سره دصوبې په دوره ؤ چې دکوهاټ دوره یې شروع کړه. نو یوځل زمونږ مېلمانه شول، او ډوډۍ مو ورته کړې وه، ویل چې نیکه مې پلار ته وویل؛ چې هلکه چرګان مه حلالوه، ساده ډوډۍ جوړه کړه، باچاخان یې په بده مني، ویل چې پلار مې سر زوري وکړه چرګان یې حلال کړل، او پلاو کښې یې پاخه کړل نثار ویل، چې ما ته ښه یاد دي، چې باچاخان دبهاشاني نه نیمه کهینه مخکښې دپخلي ځاے ته راننوتو، نیکه ته مې وویل، ددې دیګو نه سرپوښونه لرې کړه، چې چرګان یې ولیدل، نونیکه ته مې په قهر شو، چې تاسو ترلوسه نه ده نکړل، چې خداے خدمتګار به فضول خرچې نه کوي نیکه مې ورته وویل: چې ما خو منع کوو، خو دغه کار خو شیپیل خان یعنې دنثار خان پلار کړے دے، ـ نثار ویل چې پلار مې یې سخت بې عزته کړو، او ور ته یې وویل: ما خو هرځاے تقریر کښې ویلي دي، چې پښتانه عاجز خلک دي، مولانا بهاشاني چې دغه چرګان ووینې، نو وایي به چې ما دروغ ویل، دغه نمونه ډوډۍ خو دغریبانانو نه وي. او پلار ترمې

حکم ورکړو چې دغه چرګان او پلاؤ لرې کړي
ما او بهاشاني ته زر زر دال او چپاتې تيار کړې
او موږ چې لاړ شو، او س خو موهسې هم تاوان
کړے دے، بيا تاسو چرګان خورئ، خو بيا دپاره
دغه کار مه کوئ.،
نوټ:- د نثار خان نيکه پردل خان ششينوار ے
دکوهاټ او خټکو خيلو مشهور خدائي خدمتګار دے
او ډېره با رسوخه کورنۍ ده، د نثار خان پلار خوشحال
خان ښينوارے د پردل خان زوئ دکوهاټ د NAP
صدر و، او نثار خان د پردل خان لمسے وُ، او د
خوشحال خان زوئ وُ، د پښتون ستو دنټس فيډريشن
مرکزي صدر وُ.،
يو ځل يو جلسه کښې ولي خان ويلي وو، چې دغه
دے درې نسلونه يو ځائے ناست دي، چې پردل خان
نيکه يې د جلسې صدارت کولو، دنثار خان پلار تقرير کولو
او نثار خان پخپله د سټيج سکرټري توب کولو، نو ځکه ولي خان
پخپله تقرير کښې دغه د درې نسلو خبره کړې وه،
چې ډېره مشهوره شوې وه.،،
او بل باچا خان د دې مخالف نه وُ، چې څوک دې
خرڅ نه کوي، مګر د باچا خان خرڅ او د نورو خلکو

په خرڅ کښې فرق وُ، که چیرې به چا داجتماعي ښیګړې دپاره چندې ورکولې یعنې داخبار، مدرسې، روغتون یا د غریبو خلکو د امداد دپاره، نو باچا خان یې مخالفت نه کولو، خو په دوړه، و دونو او مړیو باندې د فضول خرچې مخالف وُ، د ده متعلق دښمنانو دغه مشهوره کړېده، چې باچا خان ټینګ دے، چا ته دوړه نه ورکوي، دغه ټولې فضول خبرې دي، باچاخان - جائز میلمنو ته دټولو نه ښه دوړې ورکړېده، چې دغه میراث د ته دخپل سخي پلار نه پاتې شوے دے مګر باچاخان داسې نه کوي اونه یې کړیدي، چې تش دصفت دپاره یا نمایش دپاره د ضرورت نه زیات خرچه دمیلمه دپاره ورکړي، ولې پدې چې دغه د ده دفلسفې خلاف کار وُ، که چیرې ده فضول خرچي کوله، نو د ده دنصیحت بیا څه آثر وُ، او بل باچاخان نه غوښتل چې پښتانه دوړکه مارشي، د ده دوخت خانانو په دمو او فضولیانو باندې پیسې خرڅ کولې خو یوه روپۍ یې په ملي کار نه لګوله، او باچا خان پخپلو پیسو پښتون اخبار چلولو، مدرسې ته یې دولت ورکولو، غریبانو پښتنو هلکانو سره یې د جامې او خوراک مدد کولو، داځکه چې دغه

اجتماعي بنسبګړې وي، خو دې تر تیاره نه و چې دوی به مارو تهګران حلال کړي، او دغه یې بالکل صحیح کارکولو، که چیرې پدې پېښې ګراني وي، نو ولې یې په هزارهارو پېړۍ دپښتو ژبې په وده لګولې، مګرباچا خان اول پښتون دی، چې دخپلې ژبې اخبار ورباسي دهرقسم خرچ دپاره یې تیار دی، اوبل چې ۱۹۷۰ کښې دهغې وخت مشرقي پاکستان نن سبا بنګله دیش کښې تباه- کن سیلاب راغلی ؤ، باچاخان ورته په لکهاوو روپۍ د سیلاب ځپلو دپاره ورکړل،،

په ۱۹۷٤ کښې په تاشقرغان شمالي افغانستان کښې زلزله راغلې وه همدغسې امداد ورکړو، او مارچ ۱۹۷۵ کښې پټن سوات پښتونخو زلزله وشوه، باچاخان په لکهارو روپیه امداد ورکړو،،

ایا په یو سړي باندې چې پېښې ګرانې وي، هغه دا کار ونه کوي، هان! باچاخان یوکار نه دی کړی، چې هغه لکه دغه فضول روپیه یې تیار خوړو او بیکاروته نه ده ورکړې، دباچاخان ذکورمی متعلق یوه خبره ده دسنګر ملګري مولانا ابوالکلام آزاد کړې ده، چې سړی ورته حیران شي چې دغه غرنګي مولاناؤ. باچا خان پخپله ددې متعلق لیکي:

« مولانا صاحب پخپله کتاب کښې دا لیکلي دي چې،
په پښتنو کښې مهمانوازي لوئ اخلاقي صفت دے، ولې
په دوئ کښې دا صفت نه ؤ، او دوئ بخل کولو، پدې
ترینه پښتانه بیزار وو، دے وایي چې یو ځل د دوئ
ملګري زما میلمانه وو، چې ماورته د چایو سره بیسکټ
راوړل نو هغوئ ډېر خوشحاله شول، او ما ته یې وویل
چې ددې څه نوم دے؟ دا خو د ډاکټر صاحب بنګلہ
کښې موږ لیدلي وو، خو هغه موږ ته نه وو ورکړي، مولانا
صاحب ددې خبرې تحقیق نه دے کړے او دا یې لیکلي
ده، زموږ خو دا تهذیب نه دے چې یو یې خوري
او بل ته یې نه ورکوي، موږ خو داسې یو چې اوس
هم څه خورو، هغه میلمنو او نوکرانو ته هم ورکوو،
او ورسره یوځائے یې خورو، زموږ په مرکز کښې
هم دا قاعده وه، چې ډوډۍ ته به کښناستو او موږ به د
لسو کسانو خوراک پوخ کړے ؤ، د پاسه به شل نور راغلل
نو موږ کښیناستو هغه به مونږ کړه کړو او پخپلو
کښې به مو تقسیم کړو، او په شریکه به مو وخوړله، او
اوس هم دغه شان کوو، زه حیران یم چې د مولانا صاحب
دا خبره د ډاکټر صاحب په هکله کوي، چې هغه خو ورسره
مهمانواز ؤ، چې دا قیصه یې افراط ته رسولې ده، زه په

دي نه پوهيږم چې دي مولانا صاحب ته کلکتې ته کوم
کسان ورغلي وو، دغه دے داخبره ليکي چې انتخاباتو
وخت کښې کانګرس، دوئ ته ډېر رقم ورکړے وُ، خو
دوئ ډېر لږ خرچ کړو، نوځکه ډېر اميدواران دخرچ
دکمي په وجه فيل شول، مونږ خدائي خدمتګارو خو
هيڅ پيرې هم دکانګرس نه يوه پيسه هم اخستې نه ده
بلکې په دې خبره خو جواهر لال زما نه خفه شوے وُ،
او ډاکټر انصاري صاحب ته يې شکايت کړے وُ، چې
دے ډېر مغرور دے، زه چې به د کانګرس دورکنګ
( Working ) کميټې اجلاس تر تلم، نو د ټولو ممبرانو
به چې د ريل د سکنډ کلاس کوم خرچ اخيستو ما هيڅکله
هغه هم اخيستے نه وُ، البته که پارليمنټري بورډ له دوئ
نه څه اخيستي وي، نو هغه به پارلماني کسان چې دوئ
دوئ ودرولي وو، هغه ټول کامياب شوي دي،
او په لوئ اکثريت مونږ اليکشن ګټلے دے، نو بيا
دا سوال څنګه پيدا کيږي؟ د حيرانتيا خبره دا ده،
چې مولانا صاحب، دا اعتراض کوي چې صوبه سرحد
والو په انتخاباتو کښې پيسې کمې ولګولې عام خلق خو
دا وايي چې که صوبه سرحد کښې خدائي خدمتګارو،
مکمله کاميابي حاصله کړه او رقم يې هم کم ولګاوه.

نو دا د هغوئ يوه سياسي کاميابي وه، مولاناصاحب
په دې هم اعتراض ضروري وګڼلو»،
که څه هم مولانا صاحب تر باچا خان ځواب وکړے
دے، خو بيا هم زه غواړم چې دېيسکټو په مسئله
خبرې وکړم، د مولانا صاحب د بيان نه دا معلوميږي
چې ګنې پښتانه دومره بې خبره دي، چې دوئ بيسکټ
هم نه پيژني، پېښور علاقه په ټولو پښتنو کښې
ترقيافته علاقه پاتې شوې ده، دګندهارا زمانه نه را
راواخله ترنن ورځې پورې پېښور علاقه د ژوند په
هر ميدان کښې د نورې پښتونخوا نه وړاندې ده، د
پښتنو علاقو کښې چې څه نوے شئ هغه فلسفې نه را
واخله تر تيکنيکل شئ پورې اول پېښور ته رارسي،
بيا نورې صوبې ته خوريږي، چې د غه سلسله تر نن
ورځې پورې روانه ده، پېښور ته بجلي په ۱۹۳۵ کښې
راغلي ده، او وزيرستان ته په ۱۹۷۶ کښې دومره فرق دے
داقيصه ماځکه دومره اوږده کړه، چې ما ته پلار -
ويل: چې څه وخت د جنډوله او وانه سړک تيرېده، نو
ډير پېښوري تيکداران راغلي وو، او زښت ډير خره
ورسره وو، او ورسره ورسره هندوان راغلي وو، چې
دوئ هټيوال وو، د سړک مزدورانو او د محسودو -

خاصدارته به يې خرچ خوراک رسولو، نو موږ په هغې وخت کښې هلکان وو، په حوارو مودهندوانو نه بيسکټ اخيستل او بيا به موږ ويشل، دجنډو لـه، سرويکۍ او دوانه سرکۍ، ۱۹۲۴ - نه ۱۹۲۹ پورې تير شوے دے، او وزيرستان په ټوله پښتونخوا کښې وروسته پاتې علاقه ده، چې په ۱۹۲۶ کښې وروستو پاتې وزيرستان کښې ماشومان بيسکټ پيژني، او د ابولکلام آزاد پښتانه ميلمانه يې نه پيژني، دغه ماته ګپ ښکاري، دا ځکه چې دکانګرس اوخدائي خدمتګارو تعلق د ۱۹۳۰ نه پس جوړ شوے دے، نو دغه دوه کسان به ضرور د ۱۹۳۰ نه روسته دمولانا سره ملاؤ، شوي وي، او دغه دوه کسان سياسي خلق وو، ځه د ګوړې سوداګر نه وو چې په مولانا يې ګوړه خرڅوله دوئ په دې پوهيدل چې د مولانا سره دهندوستان دآزادۍ په باب خبرې وکړي، مګر دوئ بيسکټ نه پيژندل، او د پښتنو نه يې ترکلکتې پورې يې دريل ټيکټ اخيستے شو مګر دوئ بسکټ نه شو اخيستے، په ۱۹۲۶ کښې بيسکټ په حوارو اخيستل کيږي، او دمحسودو ماشومان يې پيژني او دغه دوه دمولانا سياسي رسيدلي او ترکلکتې پورې تللي پښتانه بيسکټ نه پيژني.

دا سې معلومېږي، چې يا خو دغه خبره د مولانا صاحب په کتاب کښې کاتب ورزياته کړې ده، اوکه ده ليکلې وي، نو دده په معلوماتو افسوس دے، او ځان يې شرمولے دے، خو مولانا ګرم نه وُ، دمولانا صاحب پلار دعربو نه راغلے وُ، اولاد يې هندکښې لوئ شوے وو، نو مولانا صاحب نه عرب پاتې شوےوُ، او هندي جوړ شوے وُ، د دوو ثقافتو اميزش وُ، نو د داسې خلکو نه کله نه کله داسې افسانوي خبرې وتل، څه د حيرانتيا خبره نه ده، زما خو دا خيال دے چې که چيرې دوه درې کاله نور هم دهند تقسيم نور هم ځنډيدلے وے، نو مولانا به مسلم ليګ کښې داخل شوے وے، دومره بې هوده او بې خبره قيصه خو مسلم ليګيانو نه ده کړې، لکه دغه کانګرسي مولانااو بل مولانا صاحب تراخره پورې داسې معلومېږي چې دوئ دباچاخان سياست اوخدمت نه دے پيژندلے داځکه چې دباچاخان بنيادي مقصد دغه وُ چې پښتانه يې په خپلو پښو درول، اوخدائي خدمتګارو نه دنيا ب خورو اوخيرات خورو لښکر نه جوړوه، که څه هم دهند دآزادۍ دپاره دوئ دکانګرس سره اتحاد کړےوُ، مګرباچاخان خپل تنظيم دکانګرس تراقتصادي دباو لاندې

نه راوستو نوځکه یې د هرقسم امداد نه ډډه کوله، چې باچاخان په دې کښې خطره لیدله، هغه داسې که چیرې خدائي خدمتګار دکانګرس په پیسو روان شوې وې او په پردي قوت روان وې، او په مفته یې دولت مونده لې وې، بیا د پرنګي پیسې او کانګرس پر پیسو کښې څه فرق وو، که څه هم یو دښمن وو او بل اتحادي وو، مګر مفته او بې خواریه پیسې دسړي او قوم اخلاق خرابه وي، او د احساس ذمه واري یې مړه وي، نو باچاخان خو د دې مرضونو خلاف راپورته شوې وو، چې پښتانه په خپله خواریه او احساس ذمه واریه آزادي وګټي، نو ځکه یې د پردي امداد او دمفتې ګډه کړیده، چې په ظاهره امداد وو، مګر په حقیقت کښې دغه زهر وو، د قوم او تحریک اخلاق یې خرابول، ځکه معلومیږي چې، نه جواهر لال او نه مولانا آزاد په دې بنیادي فرق پوه شوي وو، د وئ خو اول سیاسي وو او د دوئ نظریه نش سیاسي وه، او باچاخان خو (Reformer) وو نو ځکه تر اخره پورې دوئ ونه پیژاندلو که چیرې باچاخان خدائي خدمتګار دکانګرس دولت ته کښېنولې وې، نو د پردي دولت نتیجه به ډېره خطرناکه وې، چې دوئ په سیاسي توګه ۱۹۴۷ کښې مونږه په ډګر

پرېښودو او دوکه يې وکړه ، خو دباچا خان نظر ډېر لرې لګېده، نوځکه يې خدائي خدمتګار دچا په لاس ورنه کړل ، که دمولانا دې په لاس يې ورکړے وے، هغه خو به نن نور تباه کن وو، او ماته معلومېږي ، داسې چې مولانا صاحب بنيا دي عرب وو، او ملا هم و ، ملا ته حلوا ښه لګي ، غني خان غني ويل چې ، په مولانا باندې تن باچا خان نه ډېر ګران وم ، موږ ځني تپوس وکړو، چې نه کشروې نوځکه په ګران وې ؟ ويل يې نه ، باچا خان ته مولانا معلوم نه وُ، مابه چې دے ميلمه شوه نوما حلوا سوهن حلوا په خوړله ، او دغه کار باچا خان نه کولو، نو دے به هميشه زما ميلمه وُ،

خير دغه خو غني خان ځه ګپ او څه ريښتيا ويل ، خو دمولانا ريمارکس ديو عالم او دومره قدرمن سړي سره دخپل سنګر ملګري متعلق خوند نه کوي او ډېره افسانه يې ليکلې ده. ( Primitive )

# د عدم تشدد لاره او د پښتنو مرضونه

باچا خان فرمايي:

«کوم ځوان به چې زموږ جماعت کښې داخليږي نو هغه به عهد کوي، موږ به ورته ويلي چې دا لاره ډېره ګرانه ده، او په دې لاره کښې ډېر اغزي مصيبتونه او تکليفونه او قربانۍ دي، که دې ته تيارېږې نو هله خداى خدمتګار کيږه، ښه غور او فکر پکښې وکړه، بيا به موږ ورته وويلې چې خداى ته خو خدمت ضرورت نشته، د خداى خدمت دا دے، چې د هغه د مخلوق خدمت د هغه د رضا د پاره وکړي، بيا به موږ ورته دا خبره وکړه، چې پرې جنبې، ترګنې به پرېږدي، ولې چې د دې دلاسه زموږ کور وران دے، او که څوک د ربانډ زياتے وکړي، نو ته به ترې بدل نه اخلې، صبر به کوې بيا به موږ ورته ووے، چې تشدد به نه کوې، ولې چې تاسو، وکورئ د پښتون کور د تشدد په وجه وران

دے، او دده تشدد خوخپل وروڼو سره دے، بل ترېي ايمان نشته، خدائي خدمتګار به دخپل قوم او ملک خدمت د خدائ دپاره کوي، بل غرض به يې نه وي، رسم ورواج به پرېږدي ،او هره ورځ به پخپل لاس دوه ګهنټې کار کوي دا وعده به بېې چې وکړه، نو هله به موږ دهغه نوم دخدائي خدمتګارو په فهرست کښې وليکلو.

دعدم تشدد په هکله خلکو کښې عجيبه عجيبه خيالات دي، د دې په هکله ډېرې پروپيګنډې کيږي ،او په خلکو کښې غلط فهمي پيدا کوي، څوک وايي که څوک په ېومخ څپېړه درکوي، نو ته ورته دا بل مخ هم ورنيسه، چا به وے، چې ته ورته پروت اوسه او بل به درباندې ګرځي،چا به وے چې ته به ورته پروت يې او هغه به دې وهي ته به لاس، پښې نه خوځوې، چا به وے چې پښتون يو زبردست او بهادر قوم دے، غفار خان يې بزدله کوي.

لنډه دا چې قسم ،قسم خبرې وې، دراصل عدم تشدد يو طاقت دے، لکه څرنګه چې تشدد يو طاقت دے خو عدم تشدد هم دغه شان فوج دے، لکه څرنګه چې تشدد دے، خو د عدم تشدد وسله تبليغ دے او د تشدد وسله ټوپک دے، عدم تشدد په خلکو کښې محبت

پیدا کوي، همت پیدا کوي، جرأت پیدا کوي، او تشدد په خلکو کښې نفرت پیدا کوي، ویره او بزدلي پیداکوي. بعضې خلک وایي چې ډیفنس (دفاع) د پاره خو تشدد په کار دے، دوئ دې ته فکر نه کوي، چې تشدد دې وکړي نو عدم تشدد لاره دې پرېښوو، حالانکه عدم تشدد کښې خپله دفاع شته عدم تشدد کښې شکست نه شته، او تشدد کښې شکست شته ځکه چې تشدد یو نظام دے، دغه شان د عدم تشدد هم مکمل نظام دے، تشدد آسان دے او په دې لاره تلل هم آسان دي او عدم تشدد ډېر ګران دے، او په دې لاره تلل هم ډېر ګران دي، یو سړي له د پرق جوړ کښې پرق ورکول، آسان کار دے، خو پرق زغمل ګران کار دے.»

باچا خان په ساده ژبه د عدم تشدد او تشدد فرق بیان کړے دے، چې هر څوک چې پوهول وغواړي په پوهیدلے شي، خو موږ نه لږ دغه کتل پکار دي، چې موږ ولې تشدد پسند یو، ولې موږه بحیث قوم پدې بدبختي کښې ګیر یو، نو باچا خان په پدې سوچ او غور کولو، زما په نظر موږه د تشدد او بیا په تیره د خپلو سره تشدد یوه وجه دغه ده چې زموږه اقتصاد ډېر primitive دے یعنې پښتون ترنن ورځې پورې

په کښت او ځناورو په ساتلو باندې ژوند کوي، نو د پښتې شراکت همیشه د ترہ د زوي سره وي، او زموږ اکثره جګړې په ځمکه وي، د پولې او برید جګړه وه، او دغه جګړې د نیکه د پښتې د ویش په ذریعه، او په وجه مینځ ته راځي، یا یو اړخ ته او یا بل اړخ حرص وکړي، غلطفهمیانې جوړې شي، د دې په وجه د خپلو خپلوانو په منځ کښې بدي جوړې شي، او بل د اوبو په مسله دغه بدي جوړې شي.

چونکه دغه بدي اکثره د دوو ورونو اولادو په مینځ کښې راځي، نو ځکه په پښتنه ټولنه کښې تربورېږ په بد نوم یادېږي، که څه هم د ورور نه پس د وینې په خاطر دا نږدې وي، او بل جنګونه اکثره زموږ په وار سنګانو وي چې په دې نمونه جنګونو کښې اکثره د کلیو او یا قبیلو په منځ کښې راځي، دا چې زموږ اقتصاد ډېر پسمانده دے، نو ځکه (Conflict) کورنی کریکټر لري او قبائلي چې دغه مونږ نور قومونه هم لري، مګر د دوئ اقتصاد دومره ترقي کړېده چې د دوئ جګړې د کورنۍ په ځائے د نورو قومونو سره د نړۍ په منډۍ او خام مال باندې وي، که چېرې زموږ اقتصاد د کلاسیک لارې، یعنې (ځمکه او ځناور) نه مخکښې لاړ شي، صنعت، حرفت، او د تجارت میدان ته ګډ شي، نو زموږ

جګړې به بیا د خپل تربور یا کلي او قبیلې په ځای
د نورو قومونو سره وي، نو ځکه باچا خان کوښښ کولو
چې د پښتون قوم پام تجارت، کاروبار، صنعت، حرفت
او تعلیم ته واړوي، د باچا خان د کوښښ ؤ چې دغه دننا
( Conflict ) لرې کړي، مونږ د خپلو په ځای
د نورو قومونو سره په سیالۍ کښې وا چوي. دا ځکه چې
په دکانداری یا کاروبار کښې ضرورې نده، چې ستا د
دکان یا کارخانې برید دې یا مقابله دې د خپل خپلوان
سره وي، او بل دا چې د ځمکې کښت او رمې ساتل دیوقوم
سوشل ډونډ باندې څه انقلابي اثر نه کوي، نو ددوی
سوشل او پولیټکل ډونډ سوچ او د بو بل سره چلن ورپه محدود
وي او د دې ي خیالاتو او حالاتو نه خبرنگ وي ددوی
تماس د بهر دنیا سره کم وي، نو ځکه دوی کښې برداشت
نه وي، او چې معمله وریپښه شي، نو دعقل نه یې زیاته
په زور حل کوي، چې زور تشدد د دے او د تشدد نه نفرت
جوړیږي، چې بیا دغه ترنسلونو روان وي، او بله وجه
ما ته دغه ښکاري، چې مونږه کوم ځای میشته یو، دغه
دهند دروازه ده، چې د پرنګي نه بغیر د معلوم تاریخ نه
چې څومره قومونه هند ته تلي دي، نو زمونږ په ځمکه
تیرشوي دي، اول یې زمونږ سره کیلاي شوېده، بیا

هند ته تللي دي، نو موږ په لاره کښې پراته يو چې هر وخت د لښکر کشۍ سره مخامخ شوي يو، نو د دې مستقيل جنګ جګړو په وجه د موږ ه کرکټر لښکري، عسکري او فوجي شوي دي، دا خو معلومه خبره ده چې دغه نمونه کرېکټر خپلې مسلې په تشدد د حل کول غواړي، او بيا دغه تشدد پسند کرېکټر موږ ه ديو بل خلاف، کوم د ننا په کار راولو،

او بله غټه وجه ما ته دغه برېښي چې موږ ه قوم نه يو قبائيل يو، که څه هم موږ ه د قوم لفظ اکثره استعمالوو مګر د موږ ه کرېکټر قومي نه دے، بلکې قبائيلي دے نو ځکه تر ننه و رځې پورې موږ ه د قوم په ځائے په خپله قبيله فخر کوو، چې د دې په وجه موږ بحيثت قوم جوړ نه شوو او دغه ثبوت زه نه کوم، بلکې د خوشحال نه را نيولے تر باچا خان او فقير آف ايپي او عبدالصمد خان اڅکزي پورې، هر پښتون مشر کړيدے، نو ځکه هر غير پښتون قوت موږ ه د خپل مقصد د پاره ديو بل خلاف استعمال کړے يو، دا ځکه چې موږ به د قومي مسايلو نه قبيلوي، او د قبيلوي نه ذاتي مسائيلو ته متوجه وو، نو د باچا خان کوښښ دغه وُ، چې په موږ کښې دوروليي، برد باري او ملي خويونه ترقي وکړي، او دے پدې رسيدلے وُ چې دغه مقصد ته رسيدل د تشدد په لاره مشکل کار دے.

او يواځې لاره يې عدم تشدد دے ، اوبل باچاخان دپښتون
دمعاشرې دغه مرضونه ورکول غوښتل، يعنې تشدد، بدل
پرې جنبې ، تجارت نه نفرت ،کسب اوکسبګر ته په بده کتل،
د تعليم نه ېخورې، خو د دې ټولو مرضونو موږ ورته
تشدد ښکاريدو، باچاخان د چانه دعدم تشدد لاره
زده کړې نه وه ، بلکې خپل پښتون ماحول پدې مجبور
کړے او پوه کړے وُ ، چې باچاخان به روزانه اوريدل،
چې فلاني فلانے مړ کړو ، فلانی پرارې او مفرور شو،
فلانے پهانسي شو، او فلانے قيد شو، نو دغه کارونه
دتشدد په ذريعه کيدل ، چې دپښتون کور يې ورانکړے
وُ ، اوبل دغه ټول تشدد دخپل رور سره وُ، چې زيات
وجوهات يې دبريد اوپولې وو، اوپه ميلوکښې به ديو
کليوال دبل سره جګړې وې ، همدغه شان قبائيل په خپل
منځ کښې پرنګي سره اچول، نو باچاخان به پدې منطيقي
سوچ کولو، چې دا ولې ؟ نوځکه باچاخان اول په مدرسې
پيل وکړو ، چې دجاهليت نه موبږه وباسي ، بيا يې ورته
دتجارت خبره وکړه ، منډيي يې ورته جوړې کړه،
بيا يې کسب اړخ ته راغب کړل ، او تبليغ دپاره يې ورته
پښتون اخبار جاري کړو ، او ورپسې يې دخدائي
خدمتګارو تحريک جوړ کړو، د دغو ټولو کراونو-

مطلب دغه وُ چې پښتون قوم قوم کړي، او د دوئ داخلي تشدد ورک کړي، او خارجي مرض ته يې پام ور واړوي، چې هغه د پرنگي غلامي وه، نو ځکه د باچاخان د پری جنبی نه د زړه سرتور وُ. او پرجنبی سرے یې بد يا شو۔

اوبل دا چې باچاخان د تاريخ په رڼا کښې ليدلي وو او لوستي يې وو، چې پښتون قوم، په هند او ايران کښې بادشاهي جوړه کړې وه، مگر دغه ټولې يې بيا دخپل تشدد د پسند کريکټر په وجه وبايللې، داځکه دوئ به تشدد د يو بل خلاف وُ او تيار خواره به د پاسه په راغلل دوئ به يې تباه کړل، د مثال په توگه چېرې دولت خان لودهي او ابراهيم لودهي په منځ کښې اتفاق وے دوئ ه د يو بل سره مسلې د خبرو اترو، په ذريعه يا عدم تشدد په ذريعه حل کولے، نو سوال نه پيدا کيدو چې، مغل بابر د لودهيانو حکومت ختم کړے وے، د هند افغانانو کښې د تره او وراره په نوم پری جنبې جوړې شوې، چې نتيجه يې دغه شوه، وراره مغل په ترهٔ پسې د کابل نه راوستو، کوم يې بچيله تباه کړو، بابر اول ابراهيم شهيد کړو، بيا يې دولت خان لودهي ورک کړو، دوئ خو ورک شول، مگر درې سوه کاله يې پښتانه په

هنداو پښتونخوا کښې د مغلو غلامان کړل، دا ځکه چې د تره او وراره په منځ کښې ناچاقي وه، او يو بل سره يې تشدد وکړو.

باچا خان يو ځاے ليکي چې:

"چې تره او وراره خوګ د کوهاټ وو، دواړه جيل کښې قيد وو، دوئ دخپلو پښتون وروړو سره تشدد کړے و، د هغې نتيجه دغه وه چې تور پنجابي دجيل نوکر به په ورځ کښې دوه درې ځله وهل، چې جاړو به يې کوله، نو دوئ دغه بې عزتي برداشت کوله او دخپل پښتون ورور معمولي خبره يې نه شوه برداشت کولے، همدغه حال يوځل ما پخپله ليدلے و او هغه داسې چې زه او افراسياب خټک د، پښتونسوډنټس فيډريشن مشران وو، نو دجولائي ۱۹۷۴ کښې دبهټو حکومت مونږه دواړه ونيولو، او پېښور جيل کښې يې دتنکولو دپاره (C.class) کښې د پښتون زلمي سره يو ځاے ساتلو، په پښتنو زلمو باندې حکومت دبونو دهاکو مقدمې جوړې کړې وې، نو يوه ورځ د عجبخان مومند او پير ګل په منځ کښې جنګ جوړ شو، زه او افراسياب خټک په منځ کښې شوو، يو د بل نه مو وبيول دوئ دواړه د بالا مانړه وو، يو کچکول نو ميده او بل

صدر صاحب وُ ، د غه هم قیدیان وو، د دوئ سره پولیس ډېر ناپاتې کړے وُ، نو عجب خان په غُصه کښې پیرګل ته ووېل، چې ما به کونه ورکړي وې چې دجیل نه آزاد شم، چې د تا نه به دغه بدل اخلم . ،
افراسیاب ډېر د سوړ دماغ هلك وُ ، نو هغه ډېر په غُصه شو، عجب خان ته یې ووېل، چې پیرګل خو کنځل کړي دي، چې تا ورته یو په درې وکړلې، ته که دومره نر وې اول د هغې تهانیدار نه بدل واخله چې ته یې په دروانځو نیولے او تهانۍ کښې یې بې عزته کړے یې، هغه ته خو دې ایمان نه شته پیرګل چې ستا د سیاسي لارې ملګرے دے، دومره قسمونه ورته کوې، ورته ویل یې چې باچاخان خو رښتیا ویلي دي، چې زمونږ ه تشدد د خپل ورور سره وي. بل ته مو ایمان نه وي، نو مې پخپلو سترګو ولیدل ، او واورېدل، په دې باندې عجب خان خاموش شو، بیا روستو مونږه دواړه یو بل ته ورو په غاړه کړل.
اوبل داچې باچاخان پښتونخوا کښې ګرځیده، او کلي په کلي ګرځیدو چې د پښتون د ژوند نه ځان خبر کړي، ماله یوځل خدای بخښلي سرفراز خان اېډوکیټ

دکوهاټ خبره کوله، چې ۱۹۷۰، انتخاباتو کښې موږه د دکوهاټ په بانډو ګرځېدو، نو یوځل دغرۍ په سرده دریې کورۍ وې، موږه فیصله وکړه چې ورو خیژو، پاس چې وروختو یو بوډا سړے راغئ. موږه ډېر مغرور، ناست وو، چې ګنې موږه اول خلق یو چې دې دوه دریې کورو ته راغلو، داځکه چې دانتخاباتو په وخت دومره لرې او دوه دریې کورۍ پسې څوک نه ځي، خوچې بوډا راغئ تپوس یې وکړو، چې میلمنولاړ موږ ځکه خطاکړلي خیرخو دے دلته خوڅوک نه راځي، خوپخوا یو دوه ځله باچاخان راغلے وو، اوس تاسو، سرفراز خان وویل چې موږه په پرک پرک وخندل، او یو بل ته مو وکتل، چې که ډېر کوښښ وکړو، خو دباچا خان غونډې منلې نه شو وهلے.

د دې نه معلومیږي چې باچا خان د پښتون قوم په غم څومره ککړ وو. موږ ته پکار دي چې اول دغه وپیژنو چې عدم تشدد څه دے، کومه فلسفه او کوم سوچ دے بالکل په ساده لفظونو کښې یې موږه دغه تعریف کولے شي چې هر یو کړکیچ یا مسله په زور نه بلکې د روغې جوړې دلارې حل کولو ته موږه دعدم تشدد لاره ویلے شو، د دې تعریف نه پس دے ته کتل پکار دي چې دباچاخان

دغې ته څرنګې خیال یا دعدم تشدد دفلسفې سره واقیف شو که سړے دباچاخان خوئ او خصلت ته ځیر شي ، نو ډېر زر به ورته معلوم شي چې باچا خان د عدم تشدد لار دماشوموالي نه د خپل والد صاحب نه زده کړے دے ، داځکه وایم چې ددوئ والد صاحب ډېر غریب طبیعته انسان وُ .

دهغې وخت د نورو خانانو غوندې بد عادتونه پکښې نه وو ، دچا سره یې زور ظلم نه کولو ، د وخت دحاکمانو چپلوسي یې نه کولې ، بلکې خپل دپښتو او پښتونولۍ په ځوند یې تېروه ، چې دغه نمونه خوئ په ماشوم باچاخان باندې ډېر اثر کولو ، دغه دباچاخان اولنۍ زده کړه وه همدغه وجه ده ، چې باچا خان دم په دم دغه صلحه جوئ خوئ خپل کړو ، باچاخان هم ډېر غریب طبیعته هلك وُ ، چې څه وخت یو انسان غریب پسند وي ، نو هغه بېخېله مظلوم پسند هم دے ، او حق ته به حق وايي ، دمظلوم ملګرے او د ظالم دښمن وي . باچا خان چې ځوانېدو نو دوه شیان ورته ورځ په ورځ جوتېدل ، چې هغه یو دپښتون قوم ، او اولس غربت ، بدبختي ، بې علمي ، بې اتفاقي ، د یو بل نه دبدل اخیستل او د خپل پښتون ورور سره تشدد وُ ، او بله دپرنګي غلامي وه ، هم په دې وخت کښې ، پاس پرنګي وُ او لاندې د هندوستان او پنجاب په راغلي

خلك وو چې د پښتون په کور يې قبضه کړې وه ، دپښتونخوا په هر کلي کښې دوئ دکانونه او هټۍ جوړې کړې وې، چې د پښتون ګټه هم د دغه خلکو جيب ته لويده، دپرنګي د کارخانې جوړ شوے سامان ، يې په دوئ خرڅولو او د پرنګي د کارخانې د پاره يې د پښتون خام مال د نشت په بيعه اخيستو ، يعنې پښتون قوم نه د پرنګي جوړ شوي څيزونه او نه د خپل خام مال نه فايده اخيستلے شوه ، پښتون قوم ټول دپنجابي ، هندو او سيکهـ او هندي پنجابي دلاسه مقروض وُ ، چې پښتون به څه ګټل ، هغه به يې څه دپرنګي ماليه اوجرمانه شوه، اوچې څه به ورته پاتې شول ، هغه به د خپل تشدد پسند طبيعت په وجه د تهانيدارانو ، کچهرو ، وکيلانو او عرض نويسانو دوا شوه ، او دغه سپيره به تش لاس کښيناستو، اوچې به يې ورېي ، بربنډ او بې علمه پاتې شول ، باچا خان د خپل عمر سره په دې فکر او غور کولو ، نو ده د تشدد د خلاف کار شروع کړو ، او قوم ته يې خارجي مرض يعنې دپرنګي غلامي ور په ګوته کړه ، باچا خان غوښتل چې دغه دواړه مرضونه د پښتون قوم نه ورک کړي ، نو باچا خان منطقي غور او سوچ پرې وکړو ، چې تشدد د موږه لرو خو دغې زموږه کور وران کړے دے ، او د

پښتون قوم د ټولو مرضونو موړ ده، نو هغه به کومه طريقه وي، چې دغه قوم روغ کړي، او د تشدد دځنه ونيسي نو دغه کار د تشدد د پرلار نه شو کيدے، نو د ډېر فکر او غوړ نه پس باچا خان په دې نتيجه ورسيدو، چې بايد د تشدد دځنه په عدم تشدد ونيولے شي،

د دې نه معلومه شوه چې باچا خان دغه دعدم تشدد لار دچا نه زده کړې نه ده، او نه چا ورته ښودلې ده، بلکې دخپل قوم او اولس تشدد پسند چاپيريال ( gnvirmant ) په دې مجبور کړو، چې علاج يې د روغې جوړې او د امن دلارې يې ولټوي، چې دغه کار ته دعدم تشدد نوم نه دے ورکړے شوے، دغه بيله خبره ده، مگر دباچا-خان کړه وړه، داول سر نه دعدم تشدد ترفلسفې لاندې وو، داځکه چې د کانگرس او گاندهي سره د دوی سياسي ملگرتيا، د ۱۹۳۰ نه وروستو شروع شوې وه، او باچاخان د دخپل قوم خدمت ۱۹۱۰ نه شروع کړې ده، چې دکوم انسان په ذهن کښې دخدمت سوچ راشي، نو خدمت په زور نه کيږي بلکې په مينه او ورور ولۍ کيږي، چې دغه سوچ ځنله عدم تشدد دے، او بل غټ مثال يې دغه دے چې څه وخت باچا خان مدرسې جوړولې يو ملا چې په چترالي ملا باندې مشهور وو، هغوی باچاخان ته غورې ترې کولې، چې زه به دباچاخان،

سړی فیصله یا په کتاب اویا په ټوپک کوم، د باچاخان ځواب دغه وُ، چې مولانا صاحب زه د ټوپک کار نه کوم، او که ځانځا یې غواړې نو زما یو دنره زوی دنے، هغې له ورشه چې په خوند دے پوه کړي، ددې نه صفا جوته شوه چې باچاخان دګاندهي او کانګرس د ملګرتیا نه وړاندې دعدم تشدد په لار روان وُ، د پښتون تشدد ملي خوئ نه درلوده، بلکې شخصي او ذاتي خوئ یې درلوده، په بله معنیٰ دغه تشدد دپرنګي او هندوستاني سره نه وُ بلکې دخپل وروړ پښتون سره وُ. داځکه چې د دوئ ملي سوچ او فکر وړاندې ابتدایي وُ، یا ملي سوچ یې نه درلوده، په دې یې جنګ جګړه نه کوله چې دده ژبه سرکاري یا دفتري ژبه ولې نه ده، او یا ددې په ژبه کښې سبق او مدرسې ولې نه شته، بلکې دخپل وروړ پښتون سره به یې د پولې او پریډ جګړې وې، نودوئ خپله ټوله انرجي د یو بل خلاف خرڅ کوله.

چونکه پښتون قوم غلام وُ او په مرضونو کښې ډوب وُ، نو باچاخان ددوئ کور جوړولو، او ددوئ ټولنه یې رغوله، نوځکه باچاخان دعدم تشدد فلسفه دسیاسي اغراضو دپاره استعمال نه کړه، بلکې د باچاخان پدې فلسفه اصلاحي عقیده وه، او دغه نتیجه ورته صحیح

بریښنیده ځکه چه دغه ضد تشدد وه، او تشدد د د پښتون کور وران کړے وُ، او بل دا چې د باچا خان سوچ دغه وُ چې که چیرې دوئ په دې برشول، چې، پښتون په دې پوه کړي چې د کرکیچ یواځینے لار د حل تشدد نه دے، بلکې د ټولو نه بنه لارې عدم تشدد دے، نو ددې به دغه نتیجه شي، چې دغه ټوله انرجي به په یو مرکز راجمع شي، او د هغې غټ مرض خلاف به استعمال کړې، چې کوم د پرنګي دلاسه د د وئ غلامي وه هٔینې خلك شعوري او ځینې خلك غیر شعوري دغه خبره کوې چې باچاخان دعدم تشدد په وجه دیو مارشل او بهادر قوم نه ګیدړان جوړول، که چیرې دغه خبره رښتیا وئ نو پرنګي ډیر غلط کار کړے دے، چې دومره لوئ خپل ایجنټ یې بندي خانو کښې ساتلو، پرنګي ته پکار وچې باچا خان یې چیرې هم نه وے نیولے، ولې په دې چې دغه خو د پرنګي غټه خدمت وُ، چې د زمریانو نه وړ ته، باچا خان ګیدړان جوړول، زما خیال دے چې پرنګیانو دومره دعقل سره دُ زنې نه وې کړې، چې په دوست او دښمن کښې یې فرق نه شو کولے، پرنګے په دې بنه پوهیده چې دغه زمریان په خپل کور کښې دیو بل سره اخته دي، دوئ دومره وخت او اتفاق نه لري، چې زموږ خلاف بجیت

قوم راپورته شي، او دوئ ته بنه پته وه چې ترڅو پورې پښتون اولس په ذاتي او اقتصادي مسلو کښې بوخت وي، نو دوئ ته به د ملي مسلونه زيات، شخصي او ذاتي مسائل ډېر اهميت لري، نوځکه پرنګي کوښښ کولو چې موږ په اقتصادي توګه پس مانده وساتي، او محتاج مو وساتي نو دوئ ته پته وه چې، که کومه ورځ دوئ دخپلې کورنۍ بې اتفاقي ورکې کړې، نو په هاغه ورځ به دوئ زموږ خلاف راپورته کیږي، هرچا چې دغه کار يعنې دپښتون قوم اصلاح کوله، هغه د پرنګي اول نمبر دښمن ؤ.

اوبل داچې باچاخان ته ورمعلومه وه چې پښتون قوم دېر ې لښکرې غوبلې کړيدي، خو دلښکرو نه پس به بيا پښتون بې برخې ؤ، تيار خوراو به پخپل منځ کښې وجنګول، کټلې بادشاهي به يې وبايللې، داځکه چې دوئ ديو بل سره تشدد کولو، باچاخان پوداسې پښتون جوړول غوښتل چې دمينې او ورورولۍ او اتفاق نمونه وي، او د عدم تشدد پيروکار وي، کم نه کم دخپلو خلکو سره او ددې قابل وي چې کټه وکړي او بيا يې وساتلې هم شي، ترنن ورځې پورې موږ ده دکټلو تکړه يو، مګر نهم کولې يې نه شو، داځکه چې موږ کښې اتفاق نشته، خودسري ده يو دبل په لاره نه ځو

او دغه کار بغیر د مسلسل اصلاحي علاج نه بغیر ممکن نه و او نه دے ، نوځکه د پښتو د پاره یو Reformer باچا خان د ډېر خطرناک وُ ، په نسبت یو فوجي یا سیاسي باچا خان نوځکه پښتنو باچاخان بې وخته سیاست کولو ته مجبور کړو ، او اصلاحي کار ته یې پره ښه نه و ، ولې په دې چې پښتنو په دې سبه پوهیدل ، چې پښتون وجود د دې مرضو نه روغ شي ، نو بیا ز موږ د خیر نشته ، د دوئ ته پته وه چې ټول هندوستان کښې پښتون واحد قوم دے چې د دې بې اتفاقۍ او مرضو باوجود هم ز موږ خلاف را پورته کیږي ، نو که چیرې په دوئ کښې اتفاق راغئ نو د دوئ قوت یو په سلو کیږي همدغه وجه وه چې دوئ باچاخان اصلاح ته پرېښنبود د دوئ وخت یې د اصلاح په ځائے په سیاست خرچ کړو ، باچاخان اصلاح د لنډې سیاسي یا ذاتي کټې وټې د پاره نه کوله ، بلکې غوښتل یې چې خپل قوم همیشه د پاره د مرضو نه خلاص کړي ، او یو پوخ علاج یې وشي ، مګر پښتنو د دغه کار ته نه پرېښنبوده .

د باچاخان او د ګاندهي جي په عدم تشدد کښې ډېر لوئ فرق وُ ، د باچا خان قوم تشدد پسند وُ ، او غوښتل یې چې د خپل قوم اصلاح وکړي ، مګر د ګاندهي جي قوم

تشدد پسند نه وُ ، بلکې هندوان د تشدد په چل نه پوهیدل که چیرې هندوان د پرنګي خلاف راپورته شوي وے، نو دوئ به پخوا آزاد وے ، مګر دوئ تشدد نه کولو او پرنګے بغیر د تشدد نه نه تلو، نو ګاندهي جي ورته بله لار پیدا کړه ، یعنې هغه کار چې تشدد کړے وُ هغه کار یې په عدم تشدد وکړو، یعنې ګاندهي جي د پرنګي خلاف تشدد وکړو، مګر تشدد یې د تشدد په لاره ونه کړو ، بلکې تشدد یې په عدم تشدد وکړو ، په بله معنیٰ ګاندهي جي پرنګي د عدم تشدد په لاره مجبور کړو ، چې هند ته سیاسي آزادي ورکړي ، یعنې د کانګرس او ګاندهي جي په عدم تشدد اصلاحي عقیده نه وه ، بلکې سیاسي چال وُ ګاندهي جي د عدم تشدد نه یوه وسله جوړه کړه . خپل سیاسي مقصد یې ترسره کړو، په بله معنیٰ دوئ دغه فلسفه د هندي بتولنې د رغولو د پاره نه استعمالوله ، بلکې د هند د سیاسي حقوقو او آزادۍ د پاره یې استعمال کړه ، همدغه وجه ده چې د للهٔ د باچاخان او ګاندهي جي په عدم تشدد کښې بنیادي فرق دے چې یو یې یعنې ګاندهي او کانګرس یې د سیاسي اغراضو د پاره په کار راولي ، او باچاخان یې د یوې نسخې په طور د خپل قوم د بدبختیو لرې کولو د پاره په کار راولي،یعنې د یوه سیاسي عقیده ده، او د هغه بل په اصلاحي عقیده ده

همدغه وجه وه چې ګاندهي جي پخپله د تشدد ښکار شو،
داځکه چې دوئ هندوان اصلاح نه کړل، بلکې دعدم تشدد
په ذريعه يې هندوانو ته تشه سياسي آزادي وګټله،
نو هندوانو دګاندهي جي قدر و نه کړو، او د تشدد د
ښکار شو، مګر باچاخان ديو تشددپسند قوم په منځ
کښې تر اخره پورې ژوندے پاتې شو، دګاندهي جي
غوندې د تشدد ښکار نه شو، داځکه چې باچاخان
خپل قوم دعدم تشدد په لار او فلسفه ډېر پوه کړے
ؤ، د مثال په توګه په جيل کښې يو خدائي خدمتګار ؤ
دټانک علاقې بهټنی پښتون ؤ، (               ) چې
جيل کښې به سپېرې په وشوې، نو ده د جامو نرۍ
کولې او مرې کولې به يې نه، چې نورو قيديانو به ورته
وويل،چې داولې؟ دده ځواب داؤ چې باچاخان ويلي دي
چې په ژوندي شي باندې به تشدد نه کوئ، نو د دوئ
مړ کول تشدد دے، حالانکه بهټنی طبعياً ډېر سخت طبع
دي، مګر دلته دباچاخان دکار دومره اثر کړے ؤ، چې
انسان خو پرېږده چې سپېږه يې هم نه مړه کوله، او بل
دا چې باچاخان تر مرګه پورې په دې لاره ټينګ ولاړ ؤ،
او خپله عقيده يې بدله نه کړه، چې څومره تشدد دخدائي
خدمتګارو سره پرنګي او پاکستاني کړے دے، که بل څوک وے

پخوا به دخپلې عقیدې نه اوښتي وو، تشدد به یې اخستې وُ، ددوئ ملګریو هندکښې دآزادۍ نه پس دعدم-تشدد لاره پرېښوده، په نورو سر شول، نن هم که څوک دپښتون قوم خدمت کول غواړي، نو اصلاحي لاره یې، دټولو نه بهتره ده، اوخپله ټولهانرجي د دوئ دتشدد نه راپورته شوو مرضونوخلاف خرچ کړي او هغه کار دسره شروع کړي، کوم چې دباچا خان دوفات نه پس نیمګړې پاتې شوے دے، بلکې د ټولې نړۍ دپاره دغه د باچا خان لار د امن اوصلح لاره ده، داځکه چې نن سبا ایټمي تشدد که وشو، نو انساني نسل به ختم شي.

د کانګرس او د باچاخان دعدم تشدد په فرق باندې باچاخان پخپله داسې لیکي:

« تاسو کانګرس ته وګورئ چې دهندوستان په هندو اومسلمانانو کښې یې څومره نفرت پیدا کړو، او څومره تشدد یې وکړو، خوحقیقت دا دے چې عدم تشدد دهغوئ پالیسي وه، او زمونږه عقیده وه اوده.»

# دخدائي خدمتګارو او کانګرس

# ګډ کار

اوس دغه خبره د تعریف محتاج نه دي چي خدائي خدمتګار
څوک وو، خو بیا هم دوئ مذهباً مسلمانان وو، او په قوم
پښتانه وو، دهغي وخت د هندوستان د شمالي مغربي،
صوبي وسیدونکي وو، او د دوئ مشر خان عبدالغفار
خان فخر افغان باچاخان وو، د دوئ عقیده د عدم تشدد
دفلسفي په بنسټ ولاړه وه، دوئ دپښتون قوم نه یو
صحتمند قوم جوړولو، چي دنړه دقومونو سره په هر
میدان کښي سیال شي، د دوئ په نظر ددي پس ماندګه
یا بدبختئ غټ او بنیا دي مرض د دوئ تشدد پسند
کرکټر معلومیده چي دوئ ددي په وجه دیو بل نه
لاندي وتي وو، ورور په دورور سره تشدد کولو؛
د بهرني دښمنه غافله وو، نو خدائي خدمتګار تحریک
غوښتل چي اول دوئ په کور د ننه سره روږه کړي،
او د دوئ معاشرتي، سیاسي، تعلیمي، اقتصادي مرضونه

وار په وار ختم کړي، او ورسره ورسره يې دې ترمنځ کړي، چې دوئ ديو قوم غلامان دي، چې هغه پرنګي دے، مګر ددوئ دښمن پرنګي نه بلکې چالاک وو، او د ډېرو ذرايعو خاوندو، نو دوئ يې بې وخته دخدمت نه په سياست ککړ کړل، بل ددوئ خاوره د نورو هندوستان غونډې قانوني اصلاحات نه لرل، بلکې پرنګي دلته دوحشيانه قانون جاري کړے وُ، چې F.C.R يې ورته وئيلو، نو چې څه وخت د باچا خانا د مشرکيږي لاندې دوئ د پښتون قوم خدمت ته ملا وتړله، نو پرنګي باندې وارخطا يې راغله، دا ځکه چې پښتون د هند په دروازه کښې ميشت وُ، چې چوکيدار باغي يا انقلابي شي، نو د کور دخاوند سره غم شي، چې دروازه نمادښمن ته وازه نه کړي، همدغه وجه وه چې دهغه وخت خطره دروس نه وه، نو پرنګي فکروکړو چې را شه دوئ باندې دبالشويک تور ولګوو، تر دې نوم لاندې يې ختم کړو، چې بيا پښتنو کښې څوک د سياست او خدمت نوم وانخلي، چې دوئ يې قيد کړل، او پرنګي ورته دورکولو سکيمونه جوړ ول، نو په دې کښې صاحبزاده عبدالقيوم خان ددې تاوړې منصوبې نه خبرشو، که څه هم دے د پرنګي دنوکرشاهۍ يوه پرزه وه، مګر په

ده کښې پښتونولي يا پاتې وه، ده خدائي خدمتګار خبردار کړل، چې دغسې چل دے، نو باچاخان ليکي:

«مونږه د ګجرات په جيل خانه کښې وو، چې زمونږ يو دوه ملګري، يو ميا جعفرشاه کاکاخيل، بل ميا عبدالله شاه د قاضي خيلو چا رسدې زمونږ ملاقات ته راغلل زما ملاقات خو بند وو، او زما دې نورو ملګرو سره يې ملاقات وشو، هغوئ ووئيل، چې حکومت زمونږ د ټولې صوبې ناکه بندې کړې دي، نو څوک د صوبې نه بهر ته تلے شي، او نه څوک د بهر نه صوبې ته راتلے شي، او په خلکو يې ډېر زور ظلم شروع، کړے دے، کوشش دا دے چې دا زمونږ تحريک ختم کړي، مونږ په اباسين راپورې وتو ځکه چې ګودرونه ټول سرکار نيولي دي، او تاسوله راغلو چې مونږ څه وکړو، په مونږ داسې تاروا ظلمونه کيږي چې په دنيا کښې په چا نه دي شوي خو دنيا زمونږ د حال نه خبره نه شوه، زمونږ د ملګرو چې ملاقات وشو نو راغلل ماته يې دا ټول حال وائيه مونږ خو په خلافت کښې وو، زمونږ د خلافت ډېر ورونه په مسلم ليګ کښې هم وو، مونږه دوئ ته دا راپه وړکړه چې تاسو هندوستان کښې د مسلم ليګ مشرانو له ورشئ، او ورته ووايئ چې پرنګيا نو په مونږ ډېر

ظلمونه شروع کړي دي، او زموږ صوبه یې بالکل محاصره کړې ده، تاسو زموږ مسلمانان وروڼه یئ موږ سره صرف دومره امداد وکړئ چې دنیا زموږ دحال نه خبره شي، چې زموږ تحریک خدائي خدمتګار خواصلاحي تحریک دے، موږ ورته داهم ووے، چې لاهورته لاړ شئ، دهلي ته لاړ شئ، شملې ته لاړ شئ، په مسلمانانو وګرځئ او دخپل حال نه یې خبرکړئ، دوئ لاړل او څه موده پس چې راغلل، موږ یې خبرکړو چې موږ دمسلم لیګ په ټولو لیډرانو وګرځیدو، هغوئ زموږ مدد ته تیار نه دي او تیار ځکه نه دي، چې هغه یو جماعت دے چې پرنګیانو د هندو مقابلې دپاره جوړ کړے دے، او زموږ جنګ خو د پرنګي سره دے، نو هغوئ به زموږ څنګه مدد وکړي، موږ ورته ووے، ځئ لاړ شئ په هندوستان کښې نورو جماعتونو سره ووینئ او خپل حال ورته ووایئ، دوئ لاړل او چې څه موده پس راغلل نو موږ ته یې ووے، چې موږ خو ډېر وګرځیدو، خو بغیر دکانګرس نه موږ سره امداد ته چا غاړه کېښنښوده، دکانګرس لیډرانو له موږ نه تپوس وکړو، چې ستاسو پرنګي سره جنګ په څه دے؟ موږ ورته ووے، دملک په آزادۍ،

وے چې د جنګ طریقه موځه ده؟ مو ووے، عدم تشدد، دوئ ووے، چې دغه اُصول دجهدوجهدخو زموږ هم دي. تاسو هم غلامان يئ اوموږ هم غلامان یو، ستاسو هم انګریز دښمن دے، او زموږ هم دے تاسو هم آزادي غواړئ موږ هم، که تاسو موږ سره ملګري کيږئ، نو موږ ستاسو مدد ته تيار يو. ددوئ ددې بيان نه پس موږ دوئ ته ووے چې واپس خپلې علاقې ته لاړ شئ، او خپلې صوبې جرګې سره خبرې وکړئ. هغوئ چې څه فيصله وکړه نو موږ ته منظوره ده. دوئ لاړل او د صوبې جرګې دا خبره منظوره کړه چې د کانګرس سره ملګري کيږو، موږ خو نن په دريابُ کښې لاهو يو، او غرقيږو، څوک چې لاس راکوي ورکوو يې، ددې نه پس جرګې دکانګرس سره تړون وکړو، او د کانګرس کميټي سمدستي په مرکزي اسمبلی کښې سپيکرو، بل بهائي پټيل ديو وفد په مشرۍ صوبه سرحد ته د تحقيقاتو دپاره راولیږه، خو پرنګيانو په اټک بند کړو. نو هغوئ په پينډۍ کښې کښيناستل او تحقيقات يې شروع کړو، زموږ دپنجاب مسلمانان ورونه زموږ نه ګيله کوي، چې دوئ دکانګرس سره شو، اوکانګرس دهندوانو جماعت دے، دټول هندوستان

د ټولو خلکو شریک جماعت دے ، جناح صاحب خو هم په دې کانګرس کښې ؤ ، او بله دا چې مونږ کانګرس سره څنګه شو ، که چیرې دوئ ز مونږ امداد کړے ، وائ ، نو مونږ کانګرس ، څه کوو؟ حقیقت دا دے چې مونږ خو دوئ کانګرس سره ملګري کړي یو ، مونږ پښتانه خوسیلا په مخه کړي یو ، دوئ له ورغلو چې تاسو ز مونږ مسلمانان رونړه یئ ، لاس راکړئ ، دوئ لاس را نه کړو ، کانګرس وے زه درکوم ، مونږ له یې لاس راکړو ، نه دد نیا ټولو مسلمانانو ته وایم چې اوس تاسو انصاف وکړئ ، چې دوئ ګرم دي او که مونږ »۔

د باچاخان د دې لیکلي بیان نه ثابته شوه ، چې دوئ ولې د کانګرس سره ګلو کان ته مجبور شوي وو ، او که نن هم څوک د پښتون قوم دښمن شي ، هغه که پرنګے وي که هندو او یا مسلمان ، نو په دده خلاف د شیطان سره اتحاد جوړ کړم ، تر څو چې د دښمن خاتمه مې نزوې کړې د پنجاب مسلمانان څومونږ د دښمن پرنګي سره ملګري وو دغه خو خیر ؤ ، مګر خدائي خدمتګار چې دوئ پرخپله د کانګرس ملګرتیا نه تیار او مجبور کړل ، دغه بده وه ،

د هندوستاني مسلمان د هندو نه د نفرت او ویرې ، دوه بنیا دې وجې وې ، یو دغه چې پرنګي Divide and Rule

په بنیاد یې د هندو او مسلمان په منځ کښې نفرت جوړ کړے وُ ، چې دوئ سره اتفاق و نکړي ، او د پرنګي نه هندوا نخلي ، بلکه چې ما تړ سنبکاري ، هغه دغه وجه ده چې هندوستاني مسلمانانو کښې ډیر لږ مسلمانان وو ، چې دوئ د مسلمان په حیث هند ته راغلي وو ، یعنې که څوک وو ، هغه ډیر لږ وو ، او د هند د مسلمانانو اکثریت د هندوستان هندوان وو ، چې دوئ وخت په وخت د هندو مذهب نه اسلام ته اوړیدلي وو ، چونکه هندو مذهب کښې ، شودره اچهوت طبقه یا ټوله ډیره زیاتي وه ، او برهمانو به ورسره غیر انساني سلوک کولو ، د دوئ او څناورو ترمنځ د حقوقو د نقطه نظره هیڅ فرق نه وُ ، بلکې دیو ې غوا ډیر حقوق وو ، په نسبت دیو شودر اچهوت نو چې څه وخت اسلام راغئ ، نو دوئ ډیر ډیر اسلام قبول کړو ، دا ځکه چې اسلام د هندو د هرم نه آزاد خیاله او انسان دوسته وُ ، نو چې دوئ ولیدل چې نوې مذهب کښې دوئ ته هر قسم درواني خلاصي دي او شودره توب نه انسان کیږو ، نو دوئ دغه اسلام قبول کړو ، مګر غوړ او مرعات یافته هندوانو اسلام قبول نکړو ، نو هم دغه وجه ده چې تر ننه ورځې پورې د پنجاب او هند مسلمانانو نه هغه پخواني د شودره توب

د دوړ ویره او نفرت و نه وتی، چونکه دغه ویره او نفرت موجود ؤ، نو دوئ د هندوانو خلاق راکرمول، څه مشکل کار نه ؤ، او پرنګیانو ته دغه پته وه، چې د هند د مسلمانانو اکثریت د سابقه شودرو هندوان دي، دا ځکه چې عیسوي پادریانو چې څومره عیسایت هند کښې خور کړو، هم دغه شودره ذات یا پلې کښې خور کړو، دا ځکه چې دوئ په دې کښې خیرلیدو، چې ترڅو به د هندوانو د مذهبي مشرانو د قهراو ظلم ښکار وو، نو چې دوئ به عیسویان شول، نو دې ظلم نه به خلاص شول، او د پرنګي او عیسوي په کلکه ملګري شول، هم دغه وجه ده چې څه وخت اقتدار د مسلمانانو سره ؤ، نو دوئ مسلمانان کیدل، چې روستو اقتدار عیسوي پرنګي ته لاړو، نو دوئ عیسوي کیدل، نو دغه تاریخي، نفرت او ویره د دوئ په هډوکو کښې داسې ننوتې وه، چې ویستل یې ګران وو، نو دې نفرت او ویرې باندې پرنګي نور کار و کړو، او دوئ یې دخپل سیاسي مقاصدو سره و تړله، او د مسلم لیګ په شکل کښې منظم کړل، چونکه د پښتنو په رګونو کښې داسې ټکونه، مرضونه نه وو، دا ځکه چې پښتانه نه هندوان وو، او نه شودره پاتې شوي وو، نو ځکه د دوئ سره د نفرت مرض نه و، او بل د دوئ عملي مشکلاتو

نو که دخپلې غلامۍ علاج یې لټولو، نو که چیرې د
هندوستان سابقه شودره اوسني مسلمان د پرنګي خلاف
وی، نو خپل په خپله به د مسلم لیګ او خدائي خدمتګار
ملګرتیا راغلی وه، مګر داځکه را نغله، چې یوې دولسي
پرنګي خپل دښمن ګڼلو، او هغې بلې خپل نجات دهنده
او ساتونکی، نو د دوئ مفادا تو کښې دځمکې او آسمان
فرق او، همدغه وجه وه چې د دوئ ملګرتیا را نغله
او نه به یې چیرې راغلې وه، داځکه چې هر یو ګوند پخپل
ځای ولاړ وو، ممکنه هله وه چې خدائي خدمتګار و
خپل سیاست بدل کړی وی او یا مسلم لیګ. مګر دواړه
دې ته تیار نه وو، نو ځکه دګډکار سوال نه پیداکیدو
او بل دکانګرس سره توله هغه قوم پرست مسلمانان وو
چې د دوئ پلرونه او یا غورنیکونه د مسلمان فاتح په
شکل هند ته راغلي وو، دمثال په توګه ابوالکلام آزاد
هندوستانی شودره ذاته مسلمان نه و، بلکې والد
صاحب یې د عربو نه راغلی و، او کلکته کښې آباد شوی
و، نو ده کښې د شودره ذات احساس کمتري نه وه
او نه ورسره نفرت او ویره وه، نو ځکه یې دکانګرس
ملګرتیا وکړه او د هندوانو مخالفت یې د پرنګي په خوله
ونکړو. همدغه شان ډاکټر (ذاکر) حسین چې روستو

د هند صدر شوے وو، بنیادي او ذاتي پښتون وُ،
او پښتنو کښې د اپرید و د قبیلې نه وُ، نو ده هم شوډرې
پس منظر یې، نه درلوده، نو ځکه کانګرس او ضد۔
پرنګې وُ،. هم دغه شان ډاکټر انصاري صاحب عرب و
د شو دره د مرض نه خلاص وُ، دے هم په کانګرس کښې
وُ، او د پرنګي سخت مخالف وُ،

د باچاخان او خدائي خدمتګارو، خدمت او سیاست
خو بنکاره خبره ده، چې د وئ کښې هیڅ نفرت او منافقت
نه وو، او نه د هندوستاني مسلمانانو غوندې یې د
شودره توب د وخت ( complex ) ولرل۔

# مسلم لیګیان او د سرسید احمد خان

# یعني علیګړ مکتب فکر او "دیوبند"

# مکتب فکر

چې څه وخت پرنګیان په جبل الطارق، باندې راتېر شول، نو دوی ته ورمعلومه شوه چې د بحرِ روم د افریقې غاړه ټوله د مسلمانانو په لاس کښې وه، چې دې وخت کښې دغه شمالي افریقي عرب او بار بر مسلمان اولس د عثماني ترکي د خلافت لاندې و، دوی ته ډېره لویه آزادي وه، مګر خارجي او عسکري معملو کښې په داستنبول ډېر لاس و، نو یورپي قومونو دا کوښښ شروع کړو، چې د ترکانو ګرفت په دې علاقو کمزوري کړي، بیا د فرنسویانو په لمسون د مصر واکدارانو د ترکي نه ډېره آزادي واخیسته، او چې څه وخت نهر سویز جوړ شو، نو د یورپ او هند او مشرق بعید سره د تګ او راتګ لاره ډېره لنډه شوه، او ددې سره مصر قسمت هم د خارجي یورپي طاقتو د -

رقابت قربان شو، دوئ پتولو اول په ۱۸۲۸ کال وغوا
کښی بحرِ روم کښې دعثماني خلافت بحري طاقت ختم کړو
یونان ځنې آزاد شو، بحرِ روم د فرانسویانو او پرنګیانو
په لاس ورغے، او د وچوبي د لارې ترآن روس په
لګیا وُ، ترکانو نه یې علاقې نیولې، نو عثماني خلافت،
دومره دوئ کمزورے کړو، چې د شمالي افریقې
یا د مصر حفاظت څو پرېن ده، دخپل ځان غم یې نه
شوکولے، نو پرنګیانو ته ورمعلومه شوه، چې
دجبرالټر (جبل الطارق) نه راواخله تر کراچۍ، او
ډهاکه پورې، ټول مسلمان اولس پروت دے، نو
دوئ څو یو مذهبي تعصب درلوده، او بل کاروباري
رقابت، نو دوئ په دې پوه وو،چې ترڅو پورې
ترکان او عرب کمزوري شوي نه وي، نو دد وئ
د هند سره رابطه هر وخت د خطر سره مخامخ ده، نو
شمالي افریقي کښې سپین، فرانس، او اټلي خپلې کالونۍ
جوړې کړې، مصر کښې پرنګیان ور ترکښېناستل، د
خلیج فارس، یمن، عمان، بحرهٔ احمر کښې دوئ خپله
بحري بیړه ځائے په ځائے کړه، تر دې وخته
پورې دوئ هند سره تجارتي رابطې ښې تینګې کړې وې،
او د هند دمنلویئ نه یې لور یورپي سیالان شړلي وو، نو دوئ

ته ور معلومه وه چې هند اکثریت آبادي دهندوانو دي ، او اقلیت په حکومت کوي (مسلمان) نو دوئ ( DiviD andrul ) تر فارمولې لاندې دهندو او مسلمان ترمنځ یې د نفرت تخم وکرلو، او اول کښې هندوانو د پرنګي کمک کولو ، دا ځکه چې دهندو دپاره صرف د مالک بدلول وو، نو دوئ دپرنګي سره کمک کولو ، نو پرنګي یې دمسلمان خلاف په شاه تپولو، او پرنګي هم په دې پوه وُ، چې ترڅو مسلمان په هند کښې کمزورے کړے او بې واکه کړے نه وی ، نو ځما خواب شرمنده تعبیر نه شي کیدے

نو دوئ د چالاکو نر علاوه اول ځل دپاره په فوجي توګه ۱۷۵۷ کښې د پلاسي په میدان کښې سراج الدوله ترشکست ورکړو او په بنګال یې خپته واچوله، په دې وخت کښې لوئ بابا احمد شاه ژوندے وُ، چې دده نر پرنګیان او هندوان ډېر زیات ویریدل، دا ځکه چې مغولي مرکزي حکومت، غابنو نه ختلي وو، چیچل یې نشو کولے ، نو دوئ د احمد شاه بابا خلاف، مرهټیانو ځټانو او سیکهانو ته ډېر ډېر امداد وکړو ، چې احمد شاه بابا د دوئ سره مشغول وي، او دوئ ځینې په آرام ـ خپل کار کوي ، نو دوئ هند کښې نور هم مضبوط شول

چې څه وخت ۱۷۷۳ کښې لوئ بابا وفات شو، بلدا سې لوئ افغان پاتې نشو، چې ددې ځاے یې نیولے وے او پرنګیا نو هند په چل ول را نیولو، دتیمور شاه او زمان شاه خلاف یې سیکهان او ایرانیان دضرورت مطابق راګرمول، پدې وخت دوئ په هند کښې مرهټیان، جټان او د روهیله پښتانه، یو په بل وهلو، ختم یې کړل، او افغانستان کښې د سیکهانو او ایرانیانو نه علاوه، کورنۍ جنګ د خپلو جاسوسانو په ذریعه جوړ کړے وُ، لنډه داچې اول افغاني پرنګي جنګ کښې ۱۸۳۹-۴۲ کمپنۍ دافغانانو نه وهل خوړل، او ورپسې په ۱۸۳۹ کښې ددوئ ملګرے رنجیت سنګهه مړ شو، او ۱۸۴۹- پورې دوئ، ترخیبره پورې منطقه قبضه کړه او هند کښې یې مسلمانان بې واکه کړل، څوک ورسره ملګرې شول لکه نواب دکن، اُودهه او دوئ افغانستان داسې کړو چې نوم یې وُ او نور څه نه وو.

نو ۱۷۵۷ نه تر ۱۸۵۷ پورې هندوانو نه صرف خپل نوی ماسټر مدد وکړو، بلکې دنوي مالك هرڅه یې خپل کړل دوئ انګریزي ژبه زده کړه، انګریزي تعلیم یې کولو، نو ددې سره دوئ دیورپ دکلچر او عادات او طور او سیاست نه خبر شول، او بل دوئ تجارت ته لاس واچولو، مالوارې

هندوان اول کلکتې کښې بیا بمبي کښې لوئ لوئ کاروباري مرکزونه جوړ کړل، او خپلو بچو او اولادو باندې یې د نوې زمانې تعلیم کولو، د تهکې نه راواخله تر نوکرۍ پورې، پرنګي دوئ ته اولیت ورکولو، او په مسلمان باندې یې هرڅه تقریباً بند کړي وو، او مسلمان ملت بچپله دتور پور سره مخامخ وو، سیاسي، معاشرتي، کلتوري او اقتصادي وآګې یې پائمال وې، نو دوئ د پرنګي او هندوداړو نښانه وو، نو د دې مایوسۍ نه قسما قسم اسلامي تحریکونه او حرکتونه راپیدا شول، چې چا به ویل، چې پرنګی تهذیب، تعلیم، اوژبه او دوئ ته وفادارۍ کښې زموږ ګټه ده، او حئینو به ویل چې نه موږ تر د خپل مذهب په لاره تګ، او ددوئ د هرشي نه پرهیزګار دے، د ۱۸۵۷ پاڅون یعنې تیک سل کاله د پلاسي د جنګ ۱۷۵۷ نه پس، د هند اولس د پرنګي خلاف راپورته شو، دوئ د آزادۍ د پاره جنګ وکړو، مګر دوئ په دې بریا نه شول چې پرنګے مکمل د هند نه وشړي، د دې انقلاب یا پاڅون مشري هندي پښتنو مسلمانانو کوله نو د پاڅون په آخر کښې پرنګي تول ظلم په مسلمانانو وکړو، که څه هم څرې برې هندوانو په کښې ګډون کړے وُ، مګر د هندوانو کاروباري طبقه او نوکرپیشه طبقه

خپلواکۍ ته وفادار پاتې شوه، نو پرنګي نوره هم د مسلمانانو نه د اقتدار نشه ویسته، چې نو یې ګاریې کړل، او دومره یې ( Demoralised ) کړل، چې دوی د پرنګي بوټانو په صفایۍ روستو چنګونه سره کول، یعنې یو هغه وخت وه، چې دوی خوداعتمادي، درلوده، او د ۱۸۵۷ نه پس دومره وغرزیدل، چې حد یې نه ؤ، نو دوی کښې دوخت د تېرېدو سره دوه مکتبه فکره خلك را څرګند کیدل، چې ځینې د دیوبند مکتب فکر مسلمانان وو، او ځینې د علیګړ مکتب فکر خلك وو، چې دوی د سیاست محور د هندوستان مسلمان اولس ؤ، چې دوی ورته مختلفې نسخې درلودې.

د دیوبند مکتب فکر مسلمانانو رشته تر شاه ولي الله پورې رسي، چې څه وخت په هندکښې مغلي مرکزیے حکومت اخري سلګۍ وهې په دهلي کښې کټاس هندوان مرهټیانو غوبل جوړ کړے ؤ، نو په هندکښې اوخاصکر په شمالي هندکښې، مسلمانان بې قراره وو، نو دوی د شاه ولي الله په مشوره لوی بابا احمدشاه د مرهټیانو خلاف د اسلام د نجات د پاره را دعوت کړو، چې نتیجه یې هرچا ته معلومه ده چې دریم د پاني پت جنګ کښې کټاسو هندوانو (مرهټیانو) ماتې وخوړه، که یو اړخ ته

مسلمانانو ته فایده ورسیده، مګر بل اړخ ته د کمپنۍ
دپاره د هند د نیولو لاره جوړ شوه، چونکه شاه ولی الله
د ډیر عالم او اولیاؤ، او فلاسفرؤ، ده په اسلام
کښې نوے روح اچول غوښتل، نو دده شاګردان
هر اړخ ته خواره وو، چې شاه احمد شهید بریلوي
شاه اسماعیل شهید دوئ رو ستو د سیکهانو خلاف
پښتونخوا کښې جهاد وکړو، او د مجاهدینو په نوم
په تاریخ کښې یادیږي.

دغه د شاه ولی الله مکتب فکري عالمانو د ۱۸۵۷ -
جنګ آزادۍ کښې کلکه برخه اخیستې وه، دوئ ضد
پرنګي عالمان وو، دوئ شمالي هند کښې نوے محاذ د
پرنګي خلاف جوړ کړو، او دوئ د شمالي هند په
مختلفو علاقو کښې خواره وو، اسلامي مدرسې یې جوړې
او جوړې کړې یې وې، چې دوئ کښې د ټولو نه
غټه د دیوبند مدرسه ده، چې دا ځاے د ډهلي نه
ډیر لرې نه دے، دغه دارالعلوم چې محمد قاسم یې
تاداؤ په ۱۸٦۷ کال کښې ایښے ؤ، ډیر مقبول شو، -
محمد قاسم هم دیوې جاګیر دارې کورنۍ نه ؤ،
ده خپل سبق د ډهلي په کالج کښې ویلے ؤ، او سر
سید احمد خان نه وړاندې د مغربي طرز تعلیم او ژوند

سره واقف شوے وُ ، د د ۱۸۵۷ پا څـون کښې برخه اخيستې وه . او تر اخره پورې مزب زب نه شو، ضد پرنګې پاتې شو، سرسید احمدخان هم دغربي تعلـيم نه فايده مند شوے وُ، دوئ دواړو غوښتل چې مسلمان اولس دې علم زده کړي مگر ددواړو پهAPYoaCH) کښې دځمکې او آسمان فـرق وُ، قاسم خان د خارجي سستم نه نفرت کولو، او دغه نفرت د انګریزي تعليمي نظام او ددوئ د تهذيب اوتمدن نه هم وو، داځکه چې پرنګيان دده په نظرغاصبان وو ، دوئ هند کښې د مسلمان دقوت دختمه ولو ذمه وار ګنړل ، ديوبند دارالعلـوم کښې غريبانان مسلمانان طالب، علمان وو، ددې مدرسې داوصول ووچې دشمنوخلکو نه يې تحـفې يا سوغاتونه نه قبلول ، خوکه چيرې به ددارالعلوم د ترقـئ د پاره ،چنده ورکولـه ، دوئ يې مخالف نه وو، خو ددې شي نه به يې خيال کـولو ،چې ددې په سبب به نمونه دارالعلـوم د دولت مندو خلکو ، يا دپرنګي دايجينټانو مسلمانانو په لاس ورنشي ، دوئ به طالب علمانو نه د اسلامي دينياتو نه علاوه ، قـرآن ، سنت ، عربي اوفارسي ژبو درس ورکولـو، اوفلسفه او ادبياتو تدريس هم کيدو، خو ددې نه علاوه، دوئ سياسي پوهنې درس هم ورکولو، دوئ به طالبانو ته د ديني علم سره سره دموجوده

دنیاحالاتو او سیاستونو نه هم خبرول، او ددوی په یې
ضد استعماري روزنه کوله، دوی صرف مسلمانانو ته درس
یا داخله نه ورکوله، بلکې دوی دومره آزادخیال وو چې
دهر مذهب هندوستاني ته یې د داخلې اجازت ورکولو
دوی په سیاستونو کې ضد استعمار خلك وو، په دوی کښې مشهور عبیدالله
سندهي چې اول جنګ عظیم کښې افغانستان ته تللی وو، او
هلته یې یو آزاد حکومت جوړکړے وو، شیخ الهند محمودالحسن
چې د دیوبند لوی عالم وو، هغه پرنګي په ټوروالو کښې
دوه پرو پښتنو عالمانو سره بندي کړو، او د لوی بابا باچا
خان چې هغه وخت ځوان هلك وو، ددوی دواړو سره یې
پخه رابطه وه، او حاجي صاحب ترنګزو ددوی په اشاره
قبائیلي علاقو ته د غزا په نیت تلے وو، ددې دیوبندي مکتب
فکر عالمانو روستو په خلافت مومینټ کښې ډېره لویه
برخه واخیسته، بیا دوی جمعیت علما هند جوړ کړو، چې
ددوی پروګرام ډېر ترقي پسند و، په دوی باندې دلوی
افغان سید جمال الدین پان اسلام اثر وو، هم دغه وجه وه
چې دوی مسلم لیګ کښې هیڅ داسې کشش نه درلوده
چې دوی پکښې داخل شي، داځکه چې دمسلم لیګ آبا۔
سرسید احمد خان وو چې ۱۸۵۷ دپاڅون نه پس د خپل
سیاست او رویه بدله کړه، دده د سیاست او جهد وجهد

بنیا دي محور د پرنګي وفا داري وه، چې د دیوبند مکتب فکر بالکل ضد وو، که څه هم اول سر کښې سید احمدخان هم د متحده هندوستاني قوم پرستي حق کښې وو، د دے متحده قومیت په حق کښې وو، د مسلم هندو اتحاد عالم برادر وُ، مګر د کانګرس ۱۸۸۵ د جوړیدو نه پس ده خپل طرز بدل کړو، ۱۸۸۵ نه مخکښې ده یو ځل ویلي وو، « د غه ماهیرة وئ چې هندو او مسلمان د مذهبي فرقو په حواله نوموړ دي، که هندو دے یا مسلمان، او که عیسائي، څو چې دوئ په یو هیواد او وطن کښې ژوند کوي نو یو ملت جوړوي، که د دوئ عقیده هرڅه وي، او چونکه دوئ ټول یو ملت دے، نو ځکه دوئ ترد د عامو سیاسي ګټو د پاره یو کیدل پکار دي، مونږ باید د مشترکه مسایلو د حل د پاره متحد شو، که مونږه داسې ونکړل نو ژوندي به پاتې شو، او که، نه نو داسې اړیکي به د هندوانو او مسلمانانو دواړو د پاره یو برابر تباه کونکي وي»

« مضامین سرسید ص ۸۱ .

د حیرانتیا خبره دغه ده چې سرسید احمدخان ۱۸۸۵ کښې د کانګرس د بنسټ نه لږ روستو خپل سیاسي چلن بالکل په سل درجو بدل کړو، فرقه پرست شو، دا ولې داسې معلومیږي چې اوس پرنګیانو خپله غلطي

محسوس کړې وه ، همغه داسې چې دوئ د هند اکثریت
هندوانو ته دومره موقع ورکړې وه ، چې د زرکلن غلام
توب نه هندوان رو رو رابیداریدل ، او د تمه ویش توب
پرنګیانو محسوس کړې و ، نو دوئ د مذهبي کرکې
په بنیاد او د حالاتو په تقاضا ، د هندو په مقابل کښې ،
مسلمان بیرته راغونډول غوښتل ، داځکه چې اوس هندو په
تعلیمي او اقتصادي توګه دومره مخکښې تللي وو ، چې مسلمان
یې زکوٰة هم نه و ، او مسلمان پرنګي دومره زپلی و چې
د ترس قابل و ، نو پرنګیانو خیال وکړو چې راشه او ل
سرکښې مو د هندو نه فایده وچته کړه ، مسلمان مړاوه پولو
اوس د مسلمان نه خطره نشته باید د هندوانو خطره د مسلمانانو
په زور یې مخه ونیسو ، نو دوئ قصداً مسلمانانو ته توجه
ورکړه ، مګر اوس ډېره ناوخته وه ، مګر بیا هم دوئ مذهبي
کرکې ته لمن وهله ، هغې وخت کښې هندوانو کښې مذهبي
انتها پسند وو ، علان وکړو ، چې د هند مسلمانان بیرته هند-
وان کول پکار دي ، د غو احلالو یې بند ول غوښتل ، مسلمانانو
ورته د تبلیغ ډله جوړه کړه ، چې د دې مذهبي فسادانو
په وجه هند و مسلم اتحاد لا پوکلو ور شو ، سرسید احمد
خان ، وویل ، چې هندې مسلمانان باید پرنګي ته وفادار پاتې
شي ، د دوئ خیر په دې کښې دے ، چې د پرنګي حمایت او

مرسته وکړي، دهند دآزادۍ په وجه مسلمانان هیڅ،
برخه نه مومي، نو مونږ خیر دپرنګي پر موجودیت کښې
دے، کانګرس دهندوانو تنظیم دے، ده وویل، چې
دغه به اخیر کښې د هندوانو غلبه شي دلکهنوښارد يې بیان نه
پس دهندمسلمانانو دبحث موضوع دکانګرس جوړښت
او دهغه په مسلمانو باندې داثراتو متعلق و، لکه د مثال
په توګه د بنګال ملي اسلامي تړون، دکلکتې محمدي ادبي
ټولنه او مدارس انجمن اسلامیه ټولو دوۍ دکانګرس
مخالفت و کړو، په لکهنو ښار الله آباد، لاهور، کلکته اونورو
ښاروکښې داسې قرارادونه پاس شول، چې هغه دوۍ کانګرس
غندلے ؤ ..

دکانګرس دجوړیدو نه پس سمدستي سرسید احمد
خان دمسلمانو جاګیر دارانو اوسرمایه دارانو او روښن فکرو
ټول هندي کانګرس ضد سازمان United Friends of--india
ترنوم لاندې جوړ کړۀ . او ده -۱۸۸۸- کښې خپل انګریز
دوست، ګراهام ترولیکل : چې ددې ټولنې مقصد داو،
چې دکانګرس دسیاسي نظریاتو اوفعالیتونو مزاحمت وکړي.
هم په دې کال پرنګیانو دکانګرس په خلاف یوبل محاذ جوړ
کړو، چې پکښې دهندوستان، جاګیردار، شهزادګان او
لوۍ لوۍ افسران شامل وو، ددوۍ دګوند یا محاذ نوم وو:

(متحده هندوستان وطن پالونکے تړون) د دوی کار دغه وُ چې د کانګرس مخالفت به کوي.

په کانګرس باندې د سر سید احمد خان د ډولونز عنې اعتراض دغه وُ چې دوئ د پرنګي د حکومت مخالفت کوي، پخوا به ده پخپله ويل، چې هندوستان کښې د برطانوي حکومت په پاليسۍ کښې بدلون پکار دے، خو د کانګرس دجوړېدو نه وروسته ده د پرنګي واکدارانو ته بغير څه شرط وفاداري کوله، دغه شان دے دخپل هغې مقصد مخالف شوچې تر دېره وخته پورې يې ده پخپله وکالت کولو. (يعنې د هندو او مسلمان اتحاد) د هندو او مسلمان د ملګرتيا په ځاے د هندو مسلمان د اختلاف ملګرے شو، او س يې دغه دليل وړاندې کولو، چې هندوستان کښې د مختلفو نژادو او نسلونو او مذهبي فرقو په مينځ کښې هيڅ کله ملي ګټې نه شته.

هدغه شان ده په مسلمانانو کښې د مغربي طرز تعليم خورولو کوښښ شروع کړو، ترڅو چې د هندوانو مقابله وکړي نو ده ورته د علي ګړ کالج بنياد کېښوده، چې دے کالج کښې د هندوستان د مالدارو خلکو زامنو سبق ويلو، دوئ ته به عام تعليم ورکړ کيدو، خو په څنګ کښې به ورته د پرنګي نه زيات د هندو نه خطره ورته ګڼکښې څګکښې کوله، چې دوئ به زيات فرقه پرست تربيه شول، او د پرنګي خلاف به نه وو.

بلکې پرنګې په دوئ د هندوانو دغلبې نه یوقسم بهالشمارلو بلې غاړې ته ددیوبند مسلمانان وو، چې دوئ د مسلمانانو د بدبختیو ذمه‌وار هندو نه شمارلو، بلکې پرنګې یې شمارلو، دهغوئ دلیل دغه ؤ چې پرنګې صرف په هند کښې مسلمان نه دے بې واکه کړے اوتباه کړے، بلکې دجبل الطارق نه راواخله تولـه اسلامي نړۍ یې تباه کړې ده، نو چې څوک دغه وایي، چې هندو نه خطره اود پرنګي په وفادارۍ کښې فایده ده، دغه نمونز خلک دپرنګي دلالان دي، هم دغه وجه وه چې دوئ د سرسید اوعلي ګړ مکتب فکرغرب زده مسلمانانو سخت مخالف وو، دوئ هم په مسلمانانو کښې تعلیم خوروَلو. دوئ غوښتل چې مسلمانان خپل شان شوکت بیرته واخلي، مګر دوئ دپانِ اسلام‌ازم ملګري و دکافرو، او پرنګي خلاف، دجهاد په حق کښې وو، چې هغه د درس او تدریس د جهاد نه راښیولے دقلم اوتوري جهاد پورې، دوئ تیار وو، او علي ګړیانو دغه لاره غلط بلله، اوپرنګي دجهاد خلاف یوپنجابے پیغمبرعه پیدا کړو، چې په مسلمانانو کښې جهاد بې معنی کړي اودغه ورته غوږ کښې کښېنوي، چې اهل کتاب سره جهاد نشي، نو قادیان کښې ورته ۱۸۸۹ کښې احمدقادیاني نومے مسلمان پیغمبر علان کړو، د هغه مریدانو اسلام دنویواجتماعي

اقتصادي او سياسي شرايطو په قالب کښې اچولو باندې پيل وکړو، د نورو مذهبونو خلکو خصوصاً په عيسايانو او په هندوانو اچهوتو کښې د خپلې عقيدې د خورولو په هڅه کښې وو، دوئ د پرنګي او مسلمانو ترمنځ، د سياسي همکارۍ د پاره نظرياتي جوازونه وړاندې کولو کوښښ کولو دوئ به ويل، چې د کافرانو يعني اهل کتابو خلاف د جهاد نظريه د قرآن د اصلي عقيدې، په ضد ده، د دې فرقې، غړيو د داسې نظريې وړاندې کولو سره برتانوي، حکومت غټې خدمت کولو، پرنګيانو يو اړخ تر سرسيد احمد خان، په لاس کښې کړے و، او بل اړخ ته يې مرزيان تيار کړي وو، او ايران کښې يې د جهاد خلاف يو بل سړے، پيدا کړے ؤ، چې نن سبا هغه فرقه د بهائي فرقې په نوم مشهوره شوه، دغه کارونه پرنګي ځکه کول، چې مسلمان سره جهاد د واحده وسله وه، چې دوئ مسلمان ملت د پرنګي خلاف راپورته کولے شو، نو پرنګيانو خيال کولو چې که چيرې دغه د جهاد نعره بې اعتباره شي، نو زمونږ خلاف بيا د دوئ نشي راپاڅيدے، نو د سرسيد احمد خان ډله او مرزيان د واړه په سياسي توګه پرنګي دوست وو، که څه هم په مذهبي چارو کښې بيل، بيل وو.

د هندوستان صنعت او کاروبار دوه غټ مرکزونه وو.

چې هغه پوره بمبه او هغه بله کلکته وه ، په دې کښې هندوان راجمع شوي وو، او ډېر لوئ دولت يې د پرنګي د دوستۍ په ټګ ټګلې ؤ، نو دوئ روسترو د کانګرس اقتصا دی د ملي هلو وکی کـرداں ادا کولو، چونکه مسلمانان عموماً، عسکري يا جاګيردار خلک وو، او يل دوئ هسې هم د پرنګي د ظلـم په ميچن انړيدلي، نو دوئ په اقتصا دي توګه ډېر کمزوري وو، او خاصکر د سرمايه دارۍ په مسله کښې خو دوئ ډېر روستو پاتې وو، مګرچې څوک وو، هغه داسماعيلي فـرقې او يا د کاتهيا وړی بوره فرقې خلک وو.

مسلمانانو ۱۸۹۲ کښې يو اسلامي ټولنه جوړه شوه، چې دوئ ورته نوم ( ندوة العلما ) ورکړو، د دوئ دغه هڅه وه چې جديد تعليم هندوستانی ثقافت، ملي او اسلامي غيرتي عنعنات او د اسلام اصلي مقدس روح ټول د يو پروګرام په شکل مخ په وړاندې بوځي د غـه ټولنه د علي ګړ مکتب فکر نه بغاوت کونکی لوئ اديب او شاعر شبلي نعماني په کوښښونو جوړه شوه، داځکه چې د علي ګړه اسلام د ډېر نږدې نه ليدلے ؤ، او خاصکر د علي ګړ کالج پرنګي پرنسپل تيوډور بيک مسلمانان د ښمنې ، پاليسي نه زړه شينه وو. په لومړي وختونوکښې زيات غړي يې پرنګي د ښمنه علما وو ، مګر په ځينو خبرو کښې ،

یې د علی ګړ امور باندې هکاري هم کوله، دوئ د سر سید احمد خان مخالفت ډېر نه کولو، مګر د کالج پرنګي پرنسپل نه په عذاب وو، چې ده به خپل شاګردان د دوئ خلاف لمسول چې دوئ بیا روستو رو رو، د هندي نشنلزم او دپرنګي دښمنه سیاست طرف تر مائیل شول،

د علي ګړ کالج پرنسپل تیوډور بیک چلونو او د سر سید احمد خان لخوا د ده حمایت ځینې خلك مایوسه کړل چې هغوئ کښې نواب محسن الملك وقار الملك او الطاف حسین حالی وو، چې دوئ په یوه مضمون کښې د سر سید احمد خان د برطانیه د پالیسي خصوصاً د هند په شمالي غربي سر حد باندې د فوجي یرغلونو پرباندې کښې وو چې سر سید احمد خان د غه پرنګي پالیسي تائیدولو او دوئ یې غندنه کوله، خو دغه مضمون شایع ځکه نشو چې سمدستي سر سید احمد خان مړ شو یعنې د ې وخت کښې ۱۸۹۳ کښې تش په نوم ډیورنډ لائن. د تړیدو پر وجه پښتون اولس د پرنګي خلاف را پورته شوے و، چې حالي او د ده ملګري یې مخالفت کولو، چې پرنګي زیاتئ کوي مګر د پرنګیا نو اصلي چمچه سر سید احمد خان تر مسلمان پښتون اولس نه پرنګي استاد په ګران و، د دنه اندازه لګي چې د ے هغه وختا کښې څومره پښتون د ښمنه وو د سر سید خان د مرګ ځ سره د ده سیاست مړ نشو، بلکې پرنګیانو

نو، هم ختتکۍ کړو ، هندوانو کښې بالکل د هرتلک او ،
او بنډکهوش غوندې خلك رو رو رامیدان ته شوي وو،او
ددوئ په وجه کانګرس رو رو ، پرنګي ضد ګوند بدلیدو
باندې پیل وکړو، اوس پرنګې پوه شو چې دهندوانو
غاښونه وشول، اوس دوئ چیچل کوي ، نو د وئ یوکار
وکړو چې دغه لاړ کړونو سیاست و ، چې دوئ ۱۹۰۵ کښې
بنګال تقسیم کړو ، ددې تقسیم نه د دوئ دوه مطلبه
وو ، یو دغه چې دکلکتې هندي بورژوي زور کم کړي
او بل مسلمانان خوشحال کړي او که دغه سکیم ناکام شو
نو دمسلمان او هندو تر منځ د نفرت کرلو بنیادي کار به
وشي ، نو د هند د آزادۍ دپاره به د دوئ لارې دوه شي
هدغسې وشول چې دبنګال په تقسیم باندې هرتالونه
شروع شول او هندوانو یې مخالفت کولو ، اومسلمانانو
یې حمایت کولو ، نو ددې سره پرنګي هغه مسلمانه طبقه
کمزورې کړه ،چې دوئ هند خطرونه ګڼلو بلکې پرنګې
او دپرنګي خپل ملګري یې مسلمان اولس ته د دوئ خیرخوا
ورو پیژندل ،چونکه بنګال په اقتصادي توګه د پرمختګ نه
وو او بل دژبې او قوم له لحاظ دوئ ټول بنګالیان وو
نو پرنګي غوښتل چې دغه اقتصادي او ملي قوت په مذهبي
بنیادونو تس نس کړي، او ټوټې ټوټې یې کړي ، او د

مشرقي بنګال نه دوئ د تش په نوم اسلامي نشلزم مرکز، جوړ کړي چې د دوئ ملګري وو، چې بيا دوئ د کانګرس په د ښمنۍ او د پرنګي په وفادرۍ باندې استعمال کړي، وايسرائ لارډ کرزن چې د هندوستان د آزادۍ د ټولو نه غټ د ښمن سياسي هلې ځلې خوړين ده، آزادفکر خلک يې هم ټکول، نو کانګرس د بنګال د تقسيم خلاف ټول هندوستان کښې احتجاجي مظاهرې وکړې، چې ورسره د هندوانو سرمايه دار سرسرکښې وو، او ملي روښن فکره مسلمانان يې هم ملګري وو، داځکه چې دوئ ترپته وه چې پرنګي کوم کار کوي، ددې مقصد يې د مسلمانانو ښېګړه نده، بلکې موږ د دواړو د ښمن هندو خلاف د خپل مقصد دپاره استعمالوي، د بنګال د ويش د قانون چا-پېره او ورو وسته غټو مسلمانانو جاګيردارانو لکه نواب اف ډهاکه هندو د ښمنه سلوک باندې لاس پورې کړو علي ګړ انسټيټيوټ ددې اقدام هرکلي وکړو، ترڅه حده پورې دغو کسانو د بنګال مسلمان بوروژې باندې اثر وکړو، داځکه چې د هندوانو کاروباري طبقې نه دوئ تنګ وو، چې سرکښې يې د مارواړيانو هوکار او صنعت کار وو، اوبل د هندوستان د بيلو بيلو ملي ډلو ترمنځ تجارتي صنعتي سيالي روان وه، او خاصکر د-

دحکومت په سرکاري نوکرو باندې ددوئ تعلقات، خړوئ، او دغه ټول سوچه اقتصادي مسائل وو، مگر پرنگي دې تضاداتو ته یوه مذهبي بڼه ورکړه، یعني دهندوانو او مسلمان مسله یې ځنې جوړه کړه او په دې کښې دهندوانو مشرتللئ هم ملامت وُ، چې ددې د تقریرونو بداسی تعبیر کېده، چې دے په هندوستان باندې صرف دهندوانو غلبه غواړي، نو پرنگي به د ثبوت دپاره دغه تقریرونه وړاندې کول، او دخپل ځان دپاره به یې په خپراوبو کښې ماهیان نیول، په دې پروپیگنډو کښې پرنگے ډېر کامیاب وُ، ډېر مسلمان روښن فکر دکانگرس نه بیزاره شول په ۱۹۰۵ کښې بنارس کښې دکانگرس اجلاس کښې صرف اولسو[17] غړیو گډون کړے وُ، چې په هغکښې غونډ وُ کښې به ددوئ تعداد په سوونو وُ، په بنگال کښې د هندوانو او مسلمانانو ترمنځ خونړې شخړې شروع شوے، چې ددې په وجه ډېر مسلمانان دکانگرس او تلک نه احتجاج په طور ترگوشه کیدل، مگر ابوالکلام آزاد صاحب ۱۹۸۸ نه ۱۹۵۸ چې هغه وخت یو ویشت کلن وُ، چې بیا روستو یونامتو سیاستدان جوړ شو، نو دے تلاکیانو سره شامل شو، او یوې پټې تشدد پسندې ډلې کښې شامل شو. داځکه چې دے هندوستانے قوم پرست وُ، او ضد پرنگي وو، او بل په دے باندې ضد پرنگي مسلمانانو مشرانو لکه شبلي نعماني

اثروُ، د مولانا دوه غټ مقصد ونه وو، هغه یو دغه وُچې تلاکیانو نه دغه باور ورکړي چې ټول مسلمانان دپرنګي لګړ نه دي، او بل دغه مقصد یې وُ چې د سرسید احمدخان د مریدانو نه ځان ته رنګروټان پیداکړي، چې دوئ، بالکل د پرنګي په وفادارۍ کښې لاړ نه شي، او دپرنګي، خلاف یې ورونزي، دغه دآزاد دپاړ څه اسانه کارونه نه وو، مګر دے په دې برشو چې بنګال کښې دمسلمانانو ـ ځوانانو کښې ښه مضبوطه ډله ځان ته جوړه کړې، او ترېمبې پورې دده دمقبولیت آوازه لاړه، نو ددې هلو ځلو سره دپرنګي دغه منصوبه ناکامه شوه، چې هندوستان به په مذهبي دښمنیو بدل کړي، او دآزادۍ تحریک به غړند کړي.

اوس پرنګیانو بل چل وکړو، چې د بنګال په تقسیم د دوئ مقصد سرته نه رسیدو، نو دوئ دعلي ګړ ګروپ په حمایت دجداګانه انتخابانو مسله رامنځ ته کړه،.

بل داچې دعلي ګړ کالج پرنګي پرنسپل چې دوائسرائے هند او دبرطانیه د (Intelegence) سره یې پخه رابطه وه، نو ده مسلمانان ولمسول چې تاسو یو وفد وائسرائے هند ته لاړشي دپرنسپل نوم آرچ بولډو، دے وفد اول وائسرائے هند نه شکریه اداکړه، او بیا یې ورته دانتخاباتو متعلق خبره وکړه

چې د غه نمونه انتخابات د مسلمانانو په ضد دي.

نو دوئ ور ته تجوين وړاندې کړو، چې انتخابات دې د مذهب په بنياد وشي، چې په حقيقت کښې دغه د دوئ تجويز نه وُ، بلکې دېر نکي وُ، خوتش د مکر ديار يې د دوئ د خولې نه نشر کړو،

اغاخان چې د اسماعليه فرقې مشر وُ، قيادت يې کولو دوئ زيات په بمبې کښې سرمايه دار خلك وو، جاگيردار نه وو، خو وفد کښې د علي گړ مکتب فکر اکثريت وو، او بدرالدين طيب غوندې روشن فکره سرمايه دار هم وو، چې دوئ د بمبې نه تعلق درلوده. واسراۓ هند دد دې وفد په درنوايي کښې يو دعوت ورکړو، يعنې ميلمستيا ورکړه، ده خپل خطاب کښې وويل: چې زه ستاسو په دې پوبنتنه پوه شوم، چې تاسو غواړئ چې په کونسلونو کښې دې ستاسو نمايندگي د مذهب په بنياد وي، او دغه غوبنتنه ستاسو هم جايز ده، چې د غه نمايندگي دې د مسلمانانو په شمير پورې تړلې نه وي، بلکې د دوئ د سياسي اهميت او تاج برطانيه ته د وفادارۍ په بنسټ دې وي. واسراۓ هند زياته کړه، چې دے اميد لري چې د علي گړ مکتب فکر روشن فکرانو او د برطانوي واکمنو ترمينځ به دغه کار په راتلونکو وختونو کښې هم روان وي، او زه ستاسو نه

دوفاداری هیله لرم.»

هدغه شان په ۱۹۰۹ کښې د آزاد جداګانه انتخاباتو - قانون پاس شو، پرنګي د مذهب په بنیا د دهندو او مسلمان د جنګولو خبنسته کېښوده.

د اسلامي سیاسي ګوند د پاره اول تجویز د ډهاکې نواب سلیم الله خان وړاندې کړو د ده مطلب دغه ؤ، چې داسې ګوند یعنې پارټۍ جوړه شي چې د کانګرس ضد او د پرنګي په وفادارۍ کردار ولوبوي، او د ده تجویزونه په ډهاکه کښې د مشهور علي ګړ مکتب اهم شخصیت تر صدارت لاندې منظور شول، او دې اجلاس یوه د لنډ وخت د پاره یوه جرګه وټاکله چې آل انډیا مسلم لیګ نوم یې ورکړو، چې د دې کمیټۍ مرستیالان محسن الملک او وقار الملک مقرر شول، د مسلم لیګ لومړۍ کانفرنس ۲٤ دسمبر ۱۹۰۷ کښې په کراچۍ کښې پرانسته شو، چې صدارت یې مشهور مسلمان صنعت کار آدم جي کوله، په دې کښې د علي ګړ ګروپ نمایندګي محسن الملک او وقار الملک کوله، د مسلم لیګ منشور سید حسن بلګرامي لخوا لیکل شوی او ترتیب شوے ؤ، د مسلم لیګ د جوړولو په سلسله کښې پنجاب، بنګال، یو پي [illegible] د جاګیردارو په مسلمانو نغلیم یافته طبقې ګړندۍ برخه اخیستې ده، یو څو مسلمان سرمایه دار لکه آدم جي پیر بائي هم شامل وو، د بمبئي سرمایه دارو مسلمانانو په کښې ګډون نه ؤ کړے.

خو مخالفت یې هم نه وُ کړے ، اغاخان د مسلم لیګ اول صدر منتخب شوے وُ ، اغاخان د پرنګیانو د پاره یو آئیډیل سړے وُ چې هغه خو یې د صنعت کارو اسماعیلي فرقې روحاني مشر وو او بل د جاګیردارو دښمن هم نه وُ ، او د علي ګړ کالج پرنسپل آرچ بولډ د مسلمانانو سیاستدانو پټ مشاورو (Advicer) د حکومت او د دوئ ترمینځ به یې رابطه ساتله ، چې ډهاکه کښې د مسلم لیګ اجلاس وشو ، نو دوئ دغه نمونه شعارونه منظور کړل (۱) د برطانوي حکومت د پاره په مسلمانانو کښې دوفادارۍ جزبه مضبوطول ، او مسلم لیګ به د حکومت او مسلمان قوم په مینځ کښې د اعتبار ساتلو د نده په غاړه اخلي .

۲ ـ د هند د مسلمانانو د حقوقو ساتل ، او مخ پړ وړاندې بوتلل ، او د دوئ د ضرورتونو او مصیبتونو د حکومت سره د لرې کولو په باره کښې کار کول ، دکونډ پس وګرام اوشو په مارچ ۱۹۰۸ کښې علي ګړ کښې د محمد شاه دین ترصدارت لاندې . دریم کانفرنس کښې منظور شول ، پروګرام کښې د ډهاکي کانفرنس کښې ټولې مطالبې شاملې وې ، مسلم لیګ په دې ټینګار وکړو ، چې د هندوانو د تسلط نه د - مسلمانانو ژغورلو د پاره هندوستان باندې د پرنګي حکومت ضروري کښي ، او مسلم لیګ په دې عقیده دے چې برطانیه یواځینۍ طاقت دے چې د هغې لاندې هند د امن ،

روحاني ، ذهني او ترقي وده کوے شي، نو د مسلمانانو
پورې اړه لري چې ، د برطانيه عزت په مخ يوځي، او عام
ذهنيت کښې د برطانيه دپاره احترام او مينه پيدا کولو لاره
کښې خپل قوت تول په دې کښې ولګوي ..»

هم په دې اجلاس کښې د وئ د بنګال تقسيم هرکلے کړو
او د سوارا خ او سواد يشي د تحريکونو غندنه يې وکړه.

چې څه وخت ګاندهي د جنوبي افريقې نه هند ته راغئ
نو د کانګرس هلې ځلې ډېرې تيزې شوې، تر دې وخته
پورې محمد علي جناح په کانګرس کښې وُ ، چونکه جناح
جاګيردار نه وُ ، بلکې ديوې تجارتي کورنۍ سره يې تعلق
درلوده، نو ځکه د ے نيغ په نيغه د پرنګي ايجنټ نه وُ،
لکه څرنګه چې د غه نور مسلمانان وو ، يعنې ، سرسيد خان
نه را واخله تر اغا خان پورې ، د ګاندهي جي يا په بله معنیٰ
د جناح اختلافات هغه وخت پيدا شول چې دوئ د
هند په ازادۍ باندې خبرې کولې ، نو ګاندهي جي
تپوس وکړو ، که زمونږ مطالبې حکومت هند ونه مني
نو مونږ به بيا څه کوو؟ جناح ځواب ورکړو چې مونږ
به بيا مطالبه کوو، ګاندهي ځنې تپوس کړے وُ چې که
بيا نه مني بيا به څه کوو؟ جناح وويل : چې بيا به مطالبه
کوو، ګاندهي په دريم ځل ورته ويل چې که بيا حکومت

نه مني؟ دجناح دریم حل ځواب دغه وُچې بیا به مطالبه کوو، مګر ګاندهي جي ځواب ورکړوچې بیا به مطالبه نه کوو بلکې د مکملې آزادۍ دپاره به جدوجهد کوو، په دې باندې دجناح طبعیت خپه شو، داځکه چې دے یو وکیل وُ، او د تجارتي او سرمایه دارې طبقې نمایندګي یې کوله، نو د حکومت هند سره ټکر سیاست دده په فایده کښې نه وو. او ګاندهي جي خو ملنګ وُ، بغیر د آزادۍ نرې په بل شي نه سړیدو، نو د جناح بابا او ګاندهي چې تر مینځ رو رو لارې بیلیدې، چې اخرکار جناح د کانګرس نه لاړو مسلم لیګ کښې شامل شو، دے هم د سرسیداحمدخان دشاګردانو په قطار کښې وردیدو، چونکه ده د بوره خوجه او اسماعیلي بمبئ مسلمانانو تجارتي ډلې نمایندګي کوله، نو خپلو خیالاتو اوکړو وړو کښې دومره پالیت نه وُ، لکه دپنجاب سی. پی. یو. پی او د بنګال جاګیردارانو و.

مسلم لیګ باندې د دغو قبضه وه، چې د پرنګي دبوټ پالش نه بل کار ددوئ نه وُ، او س جناح رو رو د پرنګي پرسیاسي فرقه پرست سیاست کښې ورننوتو، هغه خیالات یې رورو ورکیدل، چې پخوا به ده د مسلمان او هندو د اتحاد خبرې کولې، اوس ده هم د سرسید احمدخان غوندې جدا پسند شو، د اتحاد په ځاے د هندو او مسلمان اختلافونو لمن وهله.

اوس د جناح د پاره مشکله دغه وه چې مسلمان بورژواړي او فیوډلي ګروپونه خړنګې سره وتړي، چې مسلم لیګ کښې جاګیرداران ډېر وو، نو ده دغه چالاکي وکړه، چې دګاندهي جي او دکانګرس مخالفت يې په زور شور سره شروع کړو، د جناح لیګ په کلکته کښې دخلافت تحریک او دګاندهي جي پروګرام وغندلو، اوګاندهي جي ترې لیک ولیکلو، چې زه په دې وجه ستا د پروګرام ملاتړ نکوم چې د عوامو را پاړول مکمله بې نظمي اوګډوډي پیداکوي او ده ورته ولیکل چې زه په دې سوچ کوم نو زه بې ارامه شم، هم دغه د پرنګي او لیګیانو سیاست ؤ، چې دوئ جناح هم په خپل رنګ کښې رنګ کړو.

ده وویل، چې دګاندهي جي دا حتجاج لاره غلطه ده، او زما لاره سمه ده، او آئیني لاره ده، ده سول نافرماني سخت مخالفت وکړو، نو په دې توګه یو وخت د هندو او د مسلمان دیوالي سفیر د مسلمانانو د بیلتون غوښتنې دعو-یدار جوړ شو، دعلي ګړ ګروپ د اول نه دخلافت تحریک سخت مخالف ؤ، دوئ په دخپل ګروپ اخبارونو اورسالو کښې دخلافت دتحریک د مشرانو خلاف قسما قسم الزامونه لګول چې د دوئ د تنقید نښانه ،محمد علي جوهر، ابوالکلام-ازاد او دخلافت نور مشران وو.

ځکښې دمسلمانانو سرمايه داره طبقه چې زيات اکثريت يې بمبي او کلکته کښې وو، دوئ د جناح په وجه دکانګرس سره ملګري وو، خو د دوئ او هندي هندوانو پانګوالو په منځ کښې رقابت ډېريدو په وجه دوئ رو رو دفرقه پرست سياست غاړې ته راکش شول. که څه هم دمسلمانانو جاګيردارانو او ددوئ ګټې يو قسم نه وې او بيا ۱۹۲۳ - ۱۹۲۷ کالو په دوران کښې د نسلي او مذهبي فسادانو کارنو هم وران کړو، اوس پرنګي مسلمان جاګيرداره طبقه اوسرمايه داره طبقه دخپل مقصد دپاره ويلي کړه، او مشرکيري يې دجناح په لاس ورکړه، اوس دمسلمان او دهندو ترمينځ تربره حده پورې پرنګي نفرت کړلے وُ، نو جناح صاحب ددې نه فايده وچته کړه، نو ده خپلې ډلې ته دغه نعره ورکړه، چې مونږه د ډومينن حيثيت دپاره دکانګرس دغوښتنې احتجاجي لاره غوره نه ګڼو، بلکې زمونږه لاره آئيني او پارلماني جدوجهد باندې مشتمله ده، دده پروګرام د ۱۹۲۳ - ۱۹۲۷ په مينځ کښې برابر شو، دجناح صاحب د پروګرام مسلمان سرمايه داره طبقې يې هرکلے وکړو، داځکه چې ده په پروګرام کښې ددوئ دپاره دهندوانو خلافت درقابت بنه موقع پکښې ليکلې شوے وې، په مسلم ليګ کښې دننه هغه وخت شديد اختلافات پيدا شول چې،

دوی د سائمن کمیشن متعلق خپل خپل خیالات څرګند کړل، او پدې باندې دجناح او شفیع سخت اختلافات راغلل.

دسمبر ۱۹۲۷ دکراچۍ غونډې نه لږ مخکښې سرمیا محمد شفیع دجناح نه بغاوت وکړو، او دخپل ګروپ یا ډلې سره بیل شو. شفیع ګروپ لاهور کښې خپل کانفرنس جوړ کړو، د غه ګروپ دپنجاب، سنده، یوپی، دجاګیردارانو نه جوړ وو، او دوی څخوانه پرنګي پرسته ډله وه، د سرمایه دارو او صنعت کارو ډلې مشري جناح کوله چې دوی دبمبۍ او کلکتې نه تعلق درلوده، یا په بله معنیٰ دمسلمانانو دجاګیردارو او سرمایه دارو، اختلافات وو، چې جناح به دضرورت مطابق دهندوانو او کانګرس مخالفت کولو، مګر جاګیردار پیدا شي د پرنګي ملګري وو، او دغه اختلافات ځکه راغلل، چې دجناح سیاست پراوبندو کښې دپرنګي او ددوی د دلالانو جاګیردارو په ګټه نه وو، یعنې د کانګرس میانه روه رهبرانو سره ګډ کار کول مناسب نه

چې دې ته دشفیع ډله تیاره نه وه.

چې جناح پوه شو چې دغه نمونه سیاست دده دپاره مشکلات پیدا کوي، نو ده دجاګیردارو راضي کولو دپاره خپل مشهور څوارلس نقطې پروګرام وړاندې کړو چې دغه کښې

تر لسو تة مرعات وركړے شوے وُ ، يا په بله معنیٰ جناح سر ولګوُ ، او د دې پروګرام سره فرقه پرست سياست نور هم تيز شو ، چې دغه د برنګي او دده د دلالانو منشه وه ، نو څکه په ۱۹۳۰ د اله آباد ليګي په غونډه کښې شفيع ګروپ د جناح سره بيا يو ځاے شول.

مګر دغه څوارلس نقطي پروګرام ډاکټر انصاري او مولانا ابوالکلام آزاد رد اعلان کړو ، چې د دوئ غټ اعتراض دغه وُ ، چې دغه نو نه کاروونه د هندد آزادۍ د پاره مشکلات پيدا کوي ، هم دغه وجه وه چې د آزاد صاحب لاره رو روبيله شوه ، يعنې د قوم پرستو مسلمانانو او انګريز پرستو په منځ کښې د هندي مسلمانانو په فايده باندې جنګ وُ ، چې د ضد استعمار مسلمانانو خيال دغه وُ چې متحده هند کښې مسلمانان به په امن وي ، د برنګي پرستې ړلې وئيل چې نه بيليدل يې بهتر دي ، د دې دغه مطلب نه دے چې ، جناح په هر څيز باندې قادر وُ ، د جاګيردارانو او سرمايه دارانو په کبله کښې د ے ورته زړه شينه وو ، او يو ځل يې ويلي وو : چې مسلم ليګ څه شي دے ؛ ( يو زه او يو ځما Typwriter دغه مسلم ليګ دے ) ،

يو وخت داسې راغے چې جناح زړه ماتی لندن ته لاړو ، هلته ميشت شو ، داځکه چې ليګيانو د داخلي شرو

نه تر سپين مو راغلي وو، دسياست نر نو يکار وو.

چې څه وخت ۱۹۳۰ نه بعد باچا خان او دده خدائي خدمتګار تحريک په ټوله نړۍ او هندوستان کښې روښان شو، او بل دوئ د پرنګي دظلم او دليکيانو او ددوئ د سياست په وجه خدائي خدمتګار دکانګرس غيږ ته ولويدل نو دلته پرنګي او دده دلالان وارخطا شول، داځکه چې پښتانه مسلمانان وو، او بل ضد سامراج وو، نو پرنګي سره غم شو، چې کوم کارموږه د سرسيداحمدخان نه شروع کړے وُ، (يعني د هندو اومسلمان په منځ کښې بې اتفاقي) هغه نن را ته خان عبدالغفار خان تباه کوي، او بله خطره د خدائي خدمتګارو نه دغه وه، چې دغه تنظيم د هندوستان نورو مسلمانو سيمو ته خور نه شي، نو پرنګي ته بيا خپل زوړ مرور ملګرے ور په ياد شو، او ليګي ورله دنوا بې په شکل ورغله او جناح بابا يې هند ته راوستو، چې ليګيان منظم کړي او د هندو او مسلمان د اتحاد مخه ونيسي.

بل دا چې جرمني کښې هټلر او نازيان په قدرت راغلي وو، نو پرنګيانو ته دکانګرس په مقابله کښې دخپل وفادار ګوند ضرورت ډير زيات شو، نو دوئ ځکه خپل ملګرے دليکيانو په ذريعه پخولا کړو، دخدائي خدمتګارو خلاف پرنګيانو دوهلو ټکولو نه علاوه يو بل محاذ خلاص کړو، چې

پښتانه .يې اتفاق کړي ، چې هغه یو پنجابي هیلماسټر و،
چې نوم يې عنایت الله مشرقي و ، ده په پېښتنو کښې د
خاکسار تحریک بنسټ کېښود ، چې د وئ هم دخدای خد-
متګارو په شان کول ، ورته يې بېلچې ورکړې وې،
بیلچه د دوئ نښان و ، دغه یو فاشیستي تنظیم و .
علامه مشرقي په یورپ کښې سبق ویلی و ، نو ده
د یورپي فاشیستي تنظیمونو نقل کړلو ، د ډنمارک د نازي
ګوند نښان بیلچه وه ، ده هم دغه نښان پټ او غلا کړې
و ، د خاکسارو نښان يې کړو ، مګر د دوئ غټ مقصد
دغه و ، چې د خدائ خدمتګارو مقابله وکړي ، چې دوئ
په دې کښې سخت ناکام شول ، داځکه چې دوئ څه
ژوندۍ نظریه نه درلوده ، اول وختو کښې پښتانه
په دوکه شول ، بیلچې يې واخستلې ، مګر روستو ځنې
بدظن شول ، داځکه چې د دوئ اصلي مقصد د پښتون
خدمت نه و ، بلکې د پښتون په ضد راپورته شوی وو .
په ۱۹۳۰ کانګرس د کراچۍ په اجلاس کښې باچاخان
سره د خپل خدائ خدمتګارو ګډون کړی و ، چې د دې
په ذریعه په ټول هند کښې د دوئ پروپیګنډه وشو ،
باچا خان لیکي : چې مونږ د اجلاس نه پس دوه ډلې
شو ، چې ځنې د کراچۍ نه وطن ته راواپس شول ، زه

او مقصود جان او نور ځني دهند په دوره لاړو چې د
خدائي خدمتګارو ، پروپیګنډه وشي ، موږ چې کراچې
کښې جهاز ته ختو ، نو مو ډولونه او سورنې غږولې چې
پرنګیانو او هندوستانیانو باندې ډیر اثر کړے ؤ، او
چې بمبۍ ته لاړو ، نو زموږ د لیدو دپاره ډیر مسلمانان
راغلي وو، او دوئ باندې اثر وشو ، لفظ به لفظ لیکي :
(ځاے په ځاے موجلسې وکړې ، او بله دا چې زموږ
په وړتلو په مسلمانانو هم اثر وشو ، خو پرنګیانو باندې
مېږې لګیا شو ، زموږ خلاف یې دا پروپیګنډه په مسلمانانو
کښې شروع کړه ، دا خلك هندوانو په دې غرض راوستي
دي ، چې جماعتونو سره ډولکي او باجې وغږوي ، چې
سباله مسلمانانو ته د هندوانو په ډولکو او باجو څه اعتراض
نه وي ، د دې نه معلومیږي چې پرنګي سره خطره وه ، چې
باچاخان راته هندو مسلمانانو اتحاد جوړ نه کړي ، نو پرنګي
نه صرف په هندوستان کښې د پښتنو خلاف نفرت خوروله
بلکې خپله صوبه کښې یې ورته هم مصیبتونه جوړول ،
چونکه د کانګرس سیاست او د خدائي خدمتګار سیاست
سره سمون خوړ ، نو ځکه دوئ د مشترکه دښمن دپاره
سره ملګري شول ، چې نه صرف خدائي خدمتګار بلکې
د هند قوم پرست مسلمان او دیوبند مکتب فکر عالمان

هم دکانګرس ملګري شول، او مسلم لیګ خپل سیاست دهندو په مخالفت باندې روان کړے وُ، هم په دې کښې دپرنګي لاس وُ، چې دغه دهندو او مسلمان او د مسلم لیګ او کانګرس قیصه یې دومره زیاته کړه، چې آخر دوئ هند دمذهب په نوم ۱۴ اګست ۱۹۴۷ کښې تقسیم کړو، پرنګي خپل ملګري په پاکستاني تخت کښېنول، دغسې مسلم لیګیانو هغه تاریخي وظیفه ترسره کړه، کومه چې په ۱۸۵۷ کښې دپاڅون نه پس دوئ په سرا خیستې وه.

# پاچاخان او نور هندي مسلمانان

## مشران ولې د هند د مسلمانانو د وېش مخالف وو

د غه خو اوس جوته خبره ده، چې پرنګي اول سرکښې هندوان د ځان سره ملګري کړل، چې په هندکښې ځېلې منګلې ښخې کړي، او مسلمان قوت ئې نس نس کړي، له ۱۷۵۷ نه تر ۱۸۵۷ پورې هندوانو د دې مهربانئ او نرمې پالیسۍ نه پوره پوره فائده واخیسته، دوئ په اقتصادي او تعلیمي لحاظ د ې سلو کالو کښې ډېر وړاندې لاړل، او مسلمانان وروستو شا ته پاتې شول، چونکه دوئ هندکښې اکثریت وُ، نو نورې تعلیم یافته طبقه کښې رو رو، دغه سوچ خوړېدو چې د ډېرو فائدو د پاره جدو جهد پکار دے، او د حکومت هند سره یو مستقله رابطه پکار ده، نو د دې مطالبې او سفارشو کولو او رسولو د پاره دوئ په ۱۸۸۵ کښې د کانګرس بنسټ کېښود، چې اول سرکښې دغه کلب د تاج برطانیه د وفادارو په لښکر باندې مشتمل

ؤ ، خو د زمان سره کانګرس خپل شکل بدلولو آن تر دې چې روسته ضد سامراج او د هند د آزادۍ غوښتونکې ځنې جوړ شو، د دې د مقابلې د پاره د هند مسلمانانو مسلم لیګ ډله د پرنګي په لمسون ورته جوړه کړه، چې دوئ په کانګرس غټې تورې غږولو، چې دغه ضد پرنګي او ضد مسلمان تنظیم دے ، که څه هم کانګرس کښې اکثریت د هندوانو ؤ ، داځکه چې هندکښې اکثریت د دوئ ؤ ، خو د کانګرس سیاست هندوپرست نه ؤ ، او بلکل سیاسي هندوان په کانګرس کښې نه وو ، ځنې د پرنګي ملګري وو ، او ځنې نورهندو پرست فرقه پرست ګوندونوکښې راجمع شوي وو ، چونکه د کانګرس سیاست د مذهب په بنیاد نه ؤ ، بلکې secularre یا غیر فرقه واریت اودعدم تشدد په بنسټ ولاړو ، او د جمهوریت سخت طرفدار وو ، چونکه کانګرس جوړ شوے ، خو د پرنګي او هندي ولس درابطې د پاره وو ، مګر د وخت د تقاضو او د ګاندهي جي دافریقې دراتګ نه پس یې خپل روخ بدل کړو . په ۱۹۱۹ کښې د پرنګي حکومت ظلمونه او د دوئ سره د کړیو وعدو نه د دوئ په ختې کیدل ، په ټول هندوستان کښې بې چینې وه ، نو د کانګرس مشرانو خپل سیاست انقلابي کړو ، د پرنګي خلاف او د هندي اولس دخواهشاتو مطابق یې ورګرځولو ،

او پښتنو کښې تر دې وخته پورې منظم سیاسي ګوند نه ؤ ، د باچا خان تګ او دوی جاري ؤ د خدائي خدمتګار پښت کېښنودل ، او بیا د پرنګي له خوا د دوئ د پهانسي کولو منصوبه بنکاره کېدل ، دلیګ لخوا د دوئ د ملګرتیا نه انکار ، د کانګرس غیر تر اچول ، د هند په سیاست کښې یې لوی بدلون راوستو ، تر دې وخته پورې کانګرس کښې دغه جرأت نه ؤ ، چې پرنګي ته مخامخ ورشي ، چې پښتنو د کانګرس سره لاس یو کړو ، نو کانګرس هم زړه ور شو ، د هند د مکمل آزادۍ غوښتنه یې وکړه . چونکه خدائي خدمتګار ضد پرنګي تنظیم ؤ ، او بل دوئ فرقه پرست نه وو ، نو د ګډ مقصد د پاره کارکول د دوئ په لاره کښې څه هائیل نه ؤ ، نو څکه دوئ کانګرس ته د هندوانو د تنظیم په سترګه نه کتل بلکې د ټول هند ضد سامراج خلکو ژرانګو او تاټوبے یې ګڼلو ، او بل دا چې پرنګي د پښتنو سره ظلمونه کول ، او پښتنا نه یواځې د دوئ د مقابلې نه وو . نو دغه قدرتي خبره ده چې دوئ د خپل ازلي دښمن خلاف ، په نړۍ کښې او ټول هند کښې ملګري لټول چې دغه د دوئ قدرتي حق ؤ ، د دوئ خواهشات او سیاست د مسلم لیګ د منشور سره یې سمون نه خوړ ، نو څکه د دوئ ملګرتیا ناممکنه وه ، او غیر قدرتي لاره وه ، هم دغه شان هغه هندي

مسلمانان چې د شاه ولي الله د زماني نه د هند د مسلمانانو د خیر او ښېګړې د پاره لګیا وو، د دوئ دوست او دښمن دوخت سره بدلیدل . دوئ د مرهټیانو په وخت د هندوانو د غلبې مخالف وو، بیا روسته د پرنګیانو خلاف وو.
په ۱۸۵۷ کښې یې د پرنګي خلاف پاڅون تیار کړو، چونکه د دوئ په عقیده غټ مرض د هندو او مسلمان د پاره پرنګي وُ ، نو ځکه دوئ د پرنګي مخالفت کولو ، او د کانګرس سره یې ګډ کار کولو ، دد ې مطلب قطعیاً نه دے ، چې دوئ مسلمانان بد ي شول ، بلکې د غه ټول کار ونه دوئ د هند د مسلمانانو خاصکر او عام طور د هند ي اولس د پاره کولو ، چې دوئ د پرنګي د غلامۍ نه خلاص کړي ، او د پښتنو هم د غه مجبوري وه ، چې د پرنګي خلاف دوئ ته د ملګرو ضرورت وُ ، نو ځکه هم خیال خلک که هغه هندوان وو ، یا مسلمانا ن ، دوئ په کانګرس کښې را جمع شول ، د متحده هندوستان د آزادۍ د پاره دوئ جنګیدل ، چونکه د غه کار د پرنګي خوښ نه وُ ، نو پرنګي لګه بار بار راغلي دي چې اول سر کښې یې هندوان ملګري کړل ، دا ځکه چې هغه وخت د مسلمان نه او خاصکر د پښتنو افغانانو نه دوئ ته په هند کښې خطره وه ، چې دد ې نه بې غمه شو نو هندوانو سر را پور ته کړو ، نو اوس د مسلمان نه خطره

نه وه، نو دوی دخپل مقصد دپاره دمسلمان نه دغوبل غوائ جوړ کړو، اول سرکښې دهندو او مسلمان دویش نه دپرنګي مقصد تش دغه وو چې دوئ سره په خپل منځ کښې یو موټي نه شي، او خپل سیاسي ژوند او حکومتي عمر په هند کښې اوږد کړي، خو د بنګال دتقسیم نه روسته دپرنګي سیاست بالکل بربنډ شو، او بیا هندوان او مسلمانان په کانګرس کښې منظم کېدل، او د هند د آزادۍ مطالبې به یې کولې، چې دغه لوبه د اول جنګ عظیم نه پس نوره ګرمه شوه.

اوس دپرنګي سره داغم شو چې دا به څه چل کیږي نو دوئ په هند کښې دمذهب افرقې تر نوم لاندې نورې وړې وړې پارټۍ جوړې کړې، چې مسلم لیګ دټولو نه ددوئ زړه ته ورنږدې وو، دکانګرس په خلاف یې د دوهال په طور استعمالولو، خو کانګرس د هندوانو ګوند نه ؤ، بلکې د هندوستانیانو ګوند و، چې مسلمانان، عیسویان، هندوان سیکهان او پارسیان ټول پکښې راغونډ شوي وو، چې د دوئ ساده مطالبه د هند آزادي وه، مګر پرنګي دې ته تیار نه ؤ، قسما قسم طریقو یې دغه کانګرسي غورځنګ، شنډولو، چې څومره به دکانګرس زور زیاتېدو، په هغه پیمانه ورتر پرنګي مسلم لیګیانو ډله منظم کوله، چې د ۱۹۱۹ کال نه

تر اګست ۱۹٤۷ پورې دده ثبوت ورکوي چې پرنګیانو او لیګیانو څومره بڼ ده کار سره کولو، د مسلم لیګ غټ اعتراض په قوم پرستو کانګرسي مسلمانانو دغه و، چې دوئ دهندوانو په لاس کښې لوبیږي، د هند د مسلمانانو صحیح اوسم نمایندګان نه دي، دوئ د مسلمانانو مفادات نه ساتي، بلکې دهندوانو دلالان دي، کانګرسي مسلمانانو ورته ویل: چې یو خو کانګرس هندو پرست تنظیم نه دے، په دې کښې ټول هندوستانیان راټول دي، او بل دا چې تاسو خو په ډاګه دپرنګیانو دلالان یئ، تاسو خپل ځان نه سیاست نه لرئ، څوچې پرنګے موځ نګه کړاوي، هغسې کړیږئ، او دا نن چې پرنګے په تاسو باندې لاس وهي ددې مطلب دغه نه دے چې مسلمان په ګران دے، بلکې تاسو د ډهال په طور د هند د آزادۍ دغورځنګ خلاف استعمالوي، چې د پرنګي قبضه نوره هم اوږده شي، نو تاسو په حقیقت کښې د هند دمسلمانانو خدمت نه کوئ، بلکې د پرنګیانو خدمت کوئ،.

دلته د پښتنو مسلمانانو او هندي مسلمانانو ترمنځ یو فرق و، هغه دغه چې پرنګیان هند ته راغلل، نو ۱۸۵۷ پورې هندي مسلمانان او پښتانه مسلمانان د پرنګي خلاف جنګیدل او هندوانو فائدې اخیستې، د ۱۸۵۷ - او دسر سید احمد خان دغورځنګ نه روستو، هندي مسلمانانو اکثریت د پرنګي

بو ت پالش کول، او هندوان رو رو را ولاړ يدل، چې دلته
پښتنو خپل ميړ بدل نه کړو، بلکې اګست ۱۹٤۷ پورې ضِد
پرنګي او سامراج پاتې شول، نو هندوانو خپله د ايجنټۍ
ميوه په اول سرکښې وخوړه، او هندي مسلمانانو روستو
د مسلم ليګ او پاکستان په شکل وخوړه، او موږ همدغسې
پاتې شو، دا ځکه چې هندوان يې ايجنټان وو، موږه
ضِد پرنګي وو، چې پنجابيان بنګاليان او هندي مسلمانان
يې ايجنټان شول، موږ بيا هم دښمنان وو، نو ځکه
پرنګي موږ ته داسې څپيړه راکړه چې تر ننه ورځې
پورې په پاکستاني ترنګړکښې لتې وهو.
نو په قوم پرستو مسلمانانو کښې او په انګريز پرستو
مسلمانانو کښې دځمکې او آسمان فرق ؤ، يو يې ډلې ته خطره
د پرنګي ته وه هغه بلې ډلې ته خطره د هندو نه وه.
نو قوم پرستو ويل، چې د مسلمان خير په دې کښې
دے، چې دے متحده هند کښې پاتې شي، تقسيم نشي.
د ليګيانو نعره دغه وه چې، هندوا و مسلمان يو قوم نه
دے، نو سوال نه پيدا کيږي چې دوئ دې په يو ملک،
کښې ژوند وکړي، بايد هند دې د مذهب په بنيا د-
تقسيم شي، چې دغې ته پرنګے هم خوشاله ؤ، خو پرنګے
يا دويم جنګ عظيم پورې د هند تقسيم ته پوره پوره تيار

نه وُ ، خو د هندو او مسلمان په منځ کښې بې نفرت جوړ لو
نه لمن وهله دا ځکه چې دوئ په جهاني سیاست سم
پوه نه وو ، په یورپ کښې هټلر او موسولیني او مشرقي
بعیده کښې جاپان هلته ګډه جوړه کړې وه ، نو دوئ
نه پوهیدل چې جهاني سیاست کښې به ملکرتیا څرنګه
وي ، او د دې ملګرتیا اثرات به په هند باندې څرنګې
وي ، خو چې څه وخت دویم جنګ عظیم شروع
شو ، نوجهاني سطح باندې پرنګیانو ته د ملګریو او
دښمنانو اندازه ولګیده ، چې جرمني ، اټلي او جاپان یوځ
غاړې ته شول ، او فرانس ، برطانیه او امریکه چې روسی
سابقه سوویټ یونین ورسره مل شو بلې غاړې ته شول
او چین هم که څه هم دومره لوئ طاقت نه ؤ ، مګر د
دوئ یعنې پرنګیانو او امریکنیانو ملګري جنرل کائي شک
د دوئ د غاړې نه وو ، د جاپان خلاف وو ، پرنګیانو د
دوم جنګ عظیم په وخت کښې د کانګرس نه د امداد ،
غوښتنه وکړه . کانګرس په یو شرط امداد ته غاړه کښېږده
چې که جنګ وګټلې شي نو هند ته به سوراج یعنې آزادي ورکړ
شي ، پرنګي د غه شرط رد کړو ، مسلم لیګیانو غیر
مشروط د پرنګي دامداد اعلان وکړو ، کانګرس ،
وتاړ ته نه پریښودل او د هندوستان د پریښودو

نعره بې پوره ته کړه ، چې په دې باندې پرنګي ټول کا-
نګرسي مشران او رضاکاران په جيلونو کښې واچول، او
مسلم ليګيانو وزارتونه جوړ کړل ، دا ځکه چې د دوئ
په دايره کښې د پرنګي د مخالفت تکئ نه و ، چې جنګ خلاص
شو ، نو په ۱۹۴٦ کښې انتخابات وشول ، کانګرس وګټله، بلکې
په مرکز کښې نېرو حکومت جوړ کړو ، اول سرکښې يې
په وزيرستان بمبارۍ بنياد کړه ، په پښتونخوا کښې ،
خدائي خدمتګارو انتخابات وګټل ، او د ډاکټرخانصاحب
وزارت جوړ شو ، تر دې وخته پورې کانګرس د تقسيم
مخالف وُ ، او پرنګي به دخير په ځائے نه پوهيده ، چې
د هند په تقسيم کښې به خير وي او که متحده هندوستان
کښې ، دا ځکه چې دلته دوه بنيادي ( FacTors ) وو
چې هغه يو د سويټ يونين په نازي جرمني باندې برے وه ،
چې د جنګ نه مخکښې د ستالن سياست دغه وُ ، چې روس
د سرحدو د ننه سوشليزم وساتي ، چې هټلر راپيدا شو
نو مغرب د هټلر خلاف يو بل ازلي دښمن سوويټ يونين-
سره اتحاد وکړو ، او هټلر دوئ په ګډه ختم کړو ، جاپان
هم وهل وخوړل ، مګر ديو دښمن د ختميدو نه پس د غم
بل ورته اژدها جوړ شو ، ( سوشلسټ نظام ) او س د
ستالن فوجونه جرمني کښې پراته وو ، ټول مشرقي ،

یورپ د سور فوج په لاس کښې وو، ستالن کوښښ کولو چې سپین، یونان، ترکیۀ پورې خپل سوشلستي منصوبې وبې دې کړي، او دهند نه ډېر لرې نه وو، تاشقند کښې د بې سور فوج ناست وۀ، تاجکستان او د چترال خوبیخي لرې نه وه، نو پرنګیانو کښې دوه سوچه وو، یو سوچ دغه ؤ، چې هند دې د سویت یونین د مقابلې دپاره متحده پاتې شي. خو که متحد پاتې کېدائ، نو واک د کانګرس او خدائ خدمتګارو په لاس ورتلو او که تقسیمولې نو خطره وه، چې د دې په وجه سویت یونین راکوزېږي او بل Factar دغه وو، چې چین کښې کمونیزم (ماوزے تنګ) او قوم پرستو چینیانو کورنۍ جنګ په زور شور سره روان ؤ، چې امریکې او برطانیه د کائي شیک مدد او ملاتړ کولو. نو دوئ ته د خفیه ایجنسیو رپورټونه داسې وو، چې چین کښې د دوئ ملګرے جنرال کاشیک جنګ کټي، او ټن دے که سبا کوستان ماتې خوري، نو دوئ خیال وکړو چې چین لوئ ملک دے، د سویت یونین د مقابلې د پاره به بیې ایشیا کښې ورته تیار کړو، نو دوئ اګست ۱۹٤۷ کښې د پاکستان او هندوستان د جوړیدو، فیصله وکړه، دوئ د ۱۹٤۰-نه تر ۱۹٤۷ پورې بخپله د هند په قسمت باندې واضح نه وو، چې تقسیم کښې به خیر وي، او که متحده ساتلو کښې.

دا بیله خبره ده چې اگست ۱۹۴۷ کښې دوئ دهند.
د تقسیم علان وکړو، او په ۱۹۴۹ کښې ماوزے تنګ په چین
کښې په قدرت راغئ، د دوئ ملګرے یې تا ئیوان فار-
موسه ته وشړلو، نو ملي مشرانو د هند د تقسیم -
مخالفت ځکه کولو، چې د دوئ په نظر دغه دهندتقسیم
نه وو، بلکې د هند د مسلمانانو تقسیم وُ، چې دهندمسلمانان
په درېو برخو تقسیم شول، چې یوې برخې نوم یې مغربي
پاکستان، دهغې بلې برخې نوم مشرقي پاکستان (نن سبا
بنګله دیش) دے، او هغه درېمه برخه یې دهندوانو یرغملان
شول، بنګال نیم شو، پنجاب نیم شو، کشمیر لاړو جوناګړې
حیدرآباد، د مرکزي هند د مسلمانانو خوخبره ختمه
شوه، او جناح صاحب مسلم لیګ او پرنګي بیوروکراسی
د هند مسلمانان ټکړه ټکړه کړل، دکانګرسي مشرانو دغه خیال
وُ چې هند متحد پاتې شي، نو موږ به فوجي مسایل
نه لرو، داځکه چې یوا ړخ ته افغانستان، ایران ووچې
دوئ د هند دمقابلې نه وو او نه دي، بلې غاړې ته برما
او تهائیلنډ وو، او دچین سره د همالیه غرونه وو، نو
هند به ټوله توجه په اقتصادي پروګرامونو ورکړې
وه، نو د هندوا او مسلمان ژوند به په اقتصادي طور ښه
شوے وے، او ټول (RESOURCES) به په دې لاره کښې

INVEST شوي وي، او بل دا چې هندوستان به دومره لوی ملک وي، چې دغه ملک به صرف داولسونو په مرضه یوځای پاتې کېدای شو، دغه مرضي به هله حاصلېده، چې مرکز مکمله خود مختاره صوبې ته ورکړې وې او دغه ملک په مارشل لا نه چلیده، نو جمهوریت به دلته زرغون شوی وُ، او رو رو به خلک په سیاسي توګه بالغان شوي وي، او د هندواو مسلمان مسئله به په اقتصاد بدله وه، او بل دوی اصولي د مذهب په نوم دوېش، مخالف وو، دا ځکه چې دغه وېش د نفرت په بنسټ ولاړ په لاکهاوو هندوان اوغریب مسلمانان پکښې دوړه شول، او دغه د نفرت تخم تر نن ورځې پورې هندوستان اوپاکستان کښې پاتې شو، نن هندوستان کښې په مسلمان ظلم کېږي مونږ يې هيڅ مدد نه شو کولی. که چېرې مونږه ټول یوځای وي، نو نن سبا ۳۰۰ میلونه یعنې دېرش کروړه مسلمانان په هند کښې وو، چې دومره لوی اقلیت مقابله ورېره کرانه ده او بل کم از کم مسلمانان به په یووالتفاق وو، او په خپلو منځو کښې به د هندو، خلاف سره مینه او اتفاق وو، چې څه وخت مونږه ځینې بیل شو، هندو نه آزاد شو، نو پاتې پاکستان کښې بیا د مهاجراوپنجابي اوبنګالي پهلواني شروع شوه، چې هرچا ته معلوم

ده چې د دسمبر ۱۹۷۱ کښې د جناح بابا پاکستان د نفرت پر بنیاد مات شو، مشرقي حصه يې بنګله دیش شوه، د غه نفرت په پاکستان کښې پاتې شو، او غټه شو، د سندهي او مهاجر دیوبل نه نفرت او دیوبل وینې ته ناست، د پنجابي نه نفرت یوقومیت دبل نه نفرت او کرکه کوي، کراچۍ او حیدر او لاهور بازارونو د اسې میاشت نه ویاچې د دې، نفرت په وجه په وینو نه رنګ کیږي، دقومیت نږ بغیر د مرزائۍ خلاف نفرت، ملا په ملا پسې کنځلې او فتوی د شیعه او سني فسادات، سپاه صحابه او د داسې نورو، تنظیمونه د یوبل وینو ته ناست دي، او د غه نفرت چې پرنګي اول د هندو او مسلمان په منځ کښې کرلے وُ نن سبا پاکستاني مسلمان ټپچله پکښې ګیر دے، او بل مقصد د قوم پرستو مسلمانانو دغه وُ، چې هند به نړهر زر په اقتصادي توګه په پښنو ودریږي، او په فوجي توګه به اتمي پاورشي، نو د دې علاقې وړو ملکونو دپار به د مغرب او سویټ یونین خلاف یوه پناه ګاه وي، او خاصکر د دوی مطلب افغانستان، ایران د مشرق اوسطیٰ ملکونه او ترکیه، مرکزي ایشیا او برما، تهائي لینډ، ملیشیا اندونشیا وغیره وغیره، چې د دې ملکونو کښې مسلمانان اوسي نو د هند یو حکومت هم دا جرأت نه شو کولے چې ۳۰ کروړه

هندي مسلمانان يې په خاطر کښې نه راوړئ ، او ضد مسلمان سياست يې کولے ، دغه ناممکن وو ، نو هنديخارجه سياست ، به ضرور د مغرب سره په ټکر کښې راتلو ، او مغرب نه شو کولاے ، چې د هند د مرضۍ نه به غير په دې ملکونو کښې مداخلت کړے وائي ، دا ځکه چې هند به عالمي طاقت وُ.

# د هند د ساتنې دپاره د پرنګیانو هلوځلو باندې یو نظر

لارډ کرزن ۱۸۹۹ - ۱۹۰۵ د هند وائسرائ وو، او دے ډیر لوئ استعماري پرنګي و، د هند متعلق ده ۱۹۰۹ کښې (Edinburgh) داسې ویلي وو:

**Autor: Ludwig Alsdorf** **Buch: Indien**

**Welche Rolle hat Indien in der Gestaltungder britischen Politik und in der Ausbereitung der englischen Herrschaft gespielt?**

**Indien war der bestimmende Faktor in jeder bedeutenden englischen Unternehmung oestlich und suedlich des Mittelmeers. Die Orientfrage des Mittelalters war bloss die Rueckeroberung der heiligen Staedte aus den Haenden der Unglaeubigen. Aber einmal in Indien festgesetzt, liessen wir unsere Orientpolitik, obwohl deren Mittelpunkt scheinbar Konstantinopel war,in Wirklichkeit durch die Erwaegung der Sicherung unserer Besitzungen in Indien leiten. Nur Indien wegen hat Lord Beaconsfield die Aktien der Suez-Kanal Gesellschaft gekauft, und wegen Indien sind wir jetzt in Aegypten.**

**Die historischen Gegensaetze und Kaempfe mit Russland waehrend beinahe eines Jahrhunderts entsprungen der angenommenen Notwendigkeit, es von den Grenzen Indiens fernzuhalten. Nur Indien wegen besitzten wir das Kapp der Guten Hoffnung und begannen jene Laufbahn suedafrikanischer Ausdehnung, letzthin in eine so wichtige Phase getreten ist.**

ترجمه : دے سوال کوي ، چې هند دبرطانیه په سیاست او دبرطانیه دحکمرانۍ په خورولو کښې کوم رول لوبولے دے ؟

هندوستان هرهغه قدم کښې چې بحر روم مشرقي اړخ یاجنوبي اړخ ته اخیستې شوې ده ، یوبنیادي نکته وه ، پخوا دمشرق سوال صرف دغه وُچې دغیرعیسویانو (مسلمانانو) نه مقدس مقامات بیرته فتح او واخلو، چې یوځل مونږه هندوستان کښې پاخه کښېناستو ، نو دښو شا دپاره مونږه استنبول ترلاسه کول دخپل سیاست مرکز بللو ، مګرحقیقت کښې مونږه دغه لوبي تش د هندوستان دپاره کولے ، چې دغه قبضه ټینګه کړو ، صرف د هند د پاره لارډ بیکون فیلډ دنهرسویز دکمپنۍ برخې واخیستې او صرف د هند په وجه مونږه مصرکښې ناست یو دروس سره چې څومره کبړي اولوبې شوې دي ، چې تقریباً سل کاله عمرلري ، صرف دیومقصد دپاره چې دوئ د هند سرحد ته لرې وساتو ، اوددې دپاره مونږ هرممکن کارکړے دے ، او صرف د هند دخاطره مونږه جنوبي افریقه کښې ناست یو، چې دغه په یوه اهمه موقع رامینځ شوې ده،،

دلارډکرزن ددې لنډ بیان نه معلومیږي چې هند دبرطانیه سیاسي ، اقتصادي اوفوجي ژوندکښې کوم

ځاے لرلو ، او باچا خان ورته ملا وتړله ، دوئ یې
بې دخله کوله .

یو بل کتاب چې نوم یې دهند سلامتیا او ساتنه ده،
(sicher heit indien) کښې ښاغلی H. oneken
داسې لیکي : « چې دبرطانیه سلطنت دطاقت له لحاظ ددنیا
په تیر تاریخ او موجوده تاریخ کښې ثاني نه لري . دآبادۍ
د لحاظه او دحکې دمخه پخوانه ټولې لویې لویې بادشاهۍ
شاته پریږدي مګر ددې برطانیه مقابله څوک نه شي کولے،
چې قسما قسم قومونه پکښې ژوند کوي ، او دجهان
په ټولو براعظمونو کښې واک لري .پدبله معنا چې نمر
نه پرېوزي او ددې ټولو مرکز هند دے ، که
څه هم سیاسي واک برطانیه لندن کښې دے ،او هندوستان
په دې کښې یو بنیادي کردار اداء کوي او دآبادۍ د لوړ
خوبې څه ثاني نه شته ، که څه هم ځکې کینډا ، استرالیا
او نیوزی لینډ او جنوبي افریقا پکښې شمارکړې ، دېرې
لوې ، مګر دغه ټولې دانسانانو نه خالي ځکې دي . او
چې څوک شته هم ، نو هغه دموریني وطن یعني برطانیه
نه تلي خلك دي ، چې دوئ مقامي خلك وژلي او تباه
کړي دي ، او بیا دوئ آباد شوي دي ، مګر د هند
خلکو سره دغه لوبه دوئ نشوه کولے ، او هندواحد

ملك دے، چې پکښې د سپین پوستکیو کالونۍ نشته یعنې آبادیانې ځمکې او پټې نه لري، داځکه چې د هند خلک خپل ځان نه یوځوانۍ او ترقي یافته کلتور لري، او د مغرب سره په تماس کښې د راتګ په وجه هم دوی د دې قابل وو، چې خپل ثقافت د مغرب په مقابله کښې ژوندے وساتي، اوکه چیرې برطانیه یعنې انګلینډ د سلطنت سر وي، نو زړه یې هندوستان دے، او د سلطنت یوه بریښیدونکې ملغلره ده.»

پرنګیانو د هند سلامتي او ساتنې د پاره دوه لارې غوره کړې وې:

۱- یوه لاره یا سیاست دغه وُ چې د هندوستان داخلي سلامتي وساتي.

۲- دویم داچې د بهر دښمنانو نه یې وساتي، د ننه دقامونو بالا دستي، او بهر یا ورچاپېره فوجي بالادستي د دوئ د سیاست بنیادي ستنې وې، دوئ چې بنګال قبضه کړو، نو د دې دوو وجو په ذریعه باقي هند قبضه کړو، دوئ به څه یوه حصه ونیوله، نوهغې سره جوخته علاقه به یې په دې وجه نیوله یا فتح کوله، چې د دوئ نیولے شوې هندي برخې ته خطره وه، او دوئ به دغه پلمه کوله، چې دغه قدم مونږ د داخلي او خارجي مشکلاتو

په وجه واخیستو نو په دې پلمه یې هرکال د هند نه برخه شوکوله ، او خپله کښنې یې په ئې اچوليې ، اول سرکښنې د غه خطرې د مقامي نوابانو او راجاګانو نه وې، چې دوئ یې ټول وار په وار ختم کړل ، نو بیا د مرهټیانو، جټانو او روهله هندي پښتنو نه وه ، چې دوئ یې هم خلاص کړل ، بیا افغانستان نه خطره وه ، چې سیکهان او افغانان یې ځان ته ورسول ، بیا د روس نه خطره وه ، نو دوئ د داخلي او خارجي حکمت عملي په وجه د هند ټول ګونډي هیوادونه تباه او برباد کړل ، د دوئ فوجي ، اقتصادي او سیاسي غاښونه یې ویستل ، چې ښه مثال یې افغانستان او ایران دے ، چې د دې نه بې غمه شو ، بیا یې پیل پدې وکړو ، چې هند ته داوبولاره سلامته وساتي ، لکه لارډکرزن اول سرکښنې د مصر اونیرسویزخیزکړې ده ، نو دوئ ـ هندوستان نه دتګ او راتګ لاره کښنې هیڅ داسې طاقت ، ملک یا قوم نه برداشت کولو ، چې دوئ ته به معمولي خطره ځینې پیدا کیدائ شوه ، نو ځکه د هند په وجه دلندن نه ترېمبئ او کلکتې پورې ملکونه د دوئ دتشدد ښکار و ، بیا د کلکتې نه ترسیلونې پورې مشرق بعید ملکونو د غه حال و ، چې د بدبختۍ نه د غه دوارو غارو تر د مسلمانانو ملکونه وو .

لنړه دا چې دوئ د خپل سیاست څلور بنیادي ټکي داسې ترتیب کړي وو:

۱- د هندوستان داخلي سلامتي، د بغاوت او نورو شورشونو نه ساتل.

۲- د هندوستان بهر برید ونه یعنې سرحدونه د دښمنانو نه ساتل، چې دغه سرحدونه ۱۸۹۳ پورې د ډیورنډ لاین، او امو دریا ته راورسیدل.

۳- د مورني وطن یعنې انګلینډ تر هند پورې ټول سمندري اوځمکني دفوځي اهمیت لارې ساتنه او څارنه.

۴- په یورپ کښې Balance of Power ترنوم لاندې داسې سیاست غوره کول، چې یورپي طاقتونو کښې څوک دومره خطرناک او طاقت من نشي، چې براعظم یورپ کښې دوئ ته خطره جوړوي، او د هند تګ راتګ لاره کښې خنډ کیږي، نو دوئ داسې طاقت په یورپ کښې نه برداشت کولو.

دوئ ته اول یورپ کښې فرانس یو Rival جوړ شوې وو، د نپولین په وار ترلو کښې ماتې په وجه دغه خطره ورکه شوه او ۱۸۱۵ کښې ویانا اسټریا کښې د نپولین د شکست نه پس چې کوم کانفرنس شوے و، په هغه کښې انګریزانو هند ته د تګ لارې د نورو یورپي طاقتونو نه محفوظې

کړي هغه داسې چې دوئ، جنوبي افریقه دلاسه کړه، داځکه چې ها لینډ دنپولیـن په ولـه کښې ؤ، او دفرنسویانو نه یې د ( MAURITIUS ) سمندري اهم ځای واخیستو، او سیلون یې ۱۷۹٦ کښې دهالینډیانو نه قبضه کړو، او دهند سلامتي پر دې ځای خلاصه نه شوه بلکي ایسټ انډیا کمپنۍ دچین سره تجارت باندې اجاره داري وه، نور خوک یې وارته نه پرېښودل، او چین سره تجارت دکمپنۍ دپاره اهم کردار ادا کولو، خو دلارې دمحفوظ ساتلو دپاره دوئ ۱۸۱۹ کښې جزیره سنګاپور قبضه کړه. چې روستو ددوئ یو اهم فوجي سمندري اډه شوه، او د مشرق د- جبرالټر په نوم مشهوره شوه. چې ددې په ذریعه دهند او چین ترمنځ یې یو اهم رول لرلو، او دملاکه غاړې یې هم
ځکښې په لاس کښې وې او په ۱۸۷٤ کښې یې د هند دسلامتیا په خاطر د ملشیا علاقې په خپله قبضه کښې واخیستې، چې دغه علاقې د هند د مشرق بعید د غاړې دد ښمنانو خلاف ضروري اډې وې، داځکه چې پرنګیانو په هند کښې افیون په کسانیانو په زور کرلو، او په چینیانو یې خرڅولو، چې ددې سره نه صرف دچین دپاره یو اخلاقي او معاشرتي مسئله جوړه شوه، بلکې ددوئ اقتصاد ددې په وجه تبا شو، نو دچین حکومت ددې خلاف راپورته شو، چې د افیون دجنګ پر نوم

دغه مشهور دے ، يعني ۱۸٤۲-۱۸٤۰ پورې او پرنګيانو دتوپکو
په زور په چينيانو دغه نشه خرڅوله ، او چينيان دوئ جنګ
ته مجبور کړل ، دجنګ نه پس دوئ ځيني هانګ کانګ د امن
دمعاهدو لاندې لاندې کړو ، د هند دسلامتيا دپاره يو بل
قدم و ، نو جنوب مغرب جنوب او جنوب مشرق نه هند محفوظ
کړو ، ددې په وجه دوئ مشرق ، نه خطره ورکه شوه ، او س
شمال مغرب ته مخ واړو ، چې هند نه خطره ورکه کړي او س
دنپولين خطره اوس اوس ورکه شوې وه ، چې زار روس
نه خطره جوړه شوه ، چې هغه دافغانستان او دايران دلارې
وه ، چې دوئ به هرات ، قندهار ، او هندوستان ته را داخل
شي او چې دايران په لار به اول خليج فارس ته او بيا بحره هند ته
راشي ، اوس دغه رتبه په پرنګيانو ولګيده ، موږ ته د رکاشته ، چې
دغه ددوئ دروس نه د ډار په وجه اول افغاني پرنګي جنګ
سبب شو ، ۱۸٤۲-۱۸۳۹ - چې ددې نه فوراً بعد يې سندھ
او پنجاب او ترپيښوره پورې علاقې قبضه کړې ، اوس د
دروس مقابله تشه دافغانستان او ايران په خاوره شروع نه وه
بلکې نه ترکي پورې خبره لاړه ، پرنګيانو اوس خپل دښمن روس
ته هرځاے لوې لکولې وي ، د روس سامراجيت په درېمخې
بحره روم او بحره هند اړخ ته را پلنيدو ، دافغانستان او مرکزي
ايشيا دلارې هند ته خطره وه ، او بيا د ايران دخليج فارس

یا بلوچستان په لاره هند ته خطره وه، او دریمه خطره پرنګیانو ته دروس نه دکوه کاف او استنبول په لاره وه چې روسانو کوښښ کولو، چې استنبول قبضه کړي، د دې سره د دوئ په توره سمندر او بحره روم باندې اقتدار جوړیده. او دغه د هند دپاره خطره وه، داځکه چې یوځل روس په بحره رومکښې ځان ټینګ کړے وے، نو بیا مصر په خطره کښې ؤ او قبرص ور ته جوخت پروت ؤ، د نو د پرنګي دمورنې وطن برطانیه او د هند ترمینځ لاره دروسانو په لاس ورتله چې دغه پرنګیانو ته چیرته نه غلے شوه، نو دوئ به مجبوراً ترکئ عثماني خلافت دروس خلاف زغوره او تقویت ورکوه خبره لاره چې ۱۸۵٤ کښې دکریم په جنګ کښې پرنګیانو د ترکو په طرفدارئ دروسانو خلاف جنګ ته ورو دانګل، داځکه چې استنبول، باندې دروس قبضه بحره روم باندې غلبه وه، چې د دې سره دهند لاره بندیده، او دهند دژغورنې په وجه عثماني خلافت ته اول نړیوال جنګ پورې، ژوندے پاتے شو، چې ۱۸۳۹ کښې د مصر حکمران محمد علي د فرانسویانو په کمک شام دعثماني خلافت نه قبضه کړو، او غوښتل یې چې ترکي خلافت ختم کړي، نو دلته بیا دمفاداتو په بنسټ انګلینډ داسټریا سره یوځاے د فرانس خلاف یو شول، او محمد علي یې مجبور کړو، اولټیمیټم یې ورکړو چې د ترکې نه لاس واخله نو ځکښې مه ځه ګنې موږ به دواړه

دربانديې حمله کوو ، د مصر نه دې هم وباسو ، محمد علي ورپاند يدو ، بيرته مصر ته راوا پس شو ، د ترک خلافت د فتح کولو منصوبې يې پرېښودې ، خو په عربو کښې د فرانس د اثر رسوخ دويرې نه دوئ ۱۸۳۹ کښې په عدن قبضه وکړه او بحر احمر سمندر خوله يې په خپل لاس - واخيسته .

دغه ټولې لوبې دوئ د هند د حفاظت دپاره کولې او عدن تر ۱۹۳۷ پورې د بمبئ د ګورنر لاندې و .

چونکه محمد علي ، د فرانس تر اثر لاندې و نو اول پرنګيانو کوښښ وکړو ، چې د فرانس اثر و رسوخ په مصر کښې کم کړي ، خو دوئ هغه وخت ډېر وار خطا شول ، چې ، محمد علي حکران مصر ۱۸۵۶ کښې د نهر سويز جوړولو او بيا فرانسويانو ته ټيکه ورکولو باندې پرنګيانو سره بيا غم شو چې فرانسويان هند ته لنډه لار وباسي ، نو دوئ دا يسا رولو او قبضه کولو منصوبې روانې کړې که څه هم په بحر روم کښې اهم ځايونه دوئ قبضه کړي وو ، د مثال په توګه پر ۱۷۰۴ کښې دوئ جبرالټر د سپين نه نيولي وو ، په ۱۸۰۰ کښې يې مالټه قبضه کړه ، ۱۸۳۹ کښې عدن پسې ونيو ، او په ۱۸۵۷ کښې جزيره پريم قبضه کړه چې ورته باب ال مانديب ؛ - ( BAB-el-Mandeb ) و ئيلو ، او ۱۸۶۹ کښې د

نهر سویز افتتاح وشوه، او د نهریفک دپاره خلاص شو، او ددې سره مصر د بین الاقوامي سیاست فټ بال شو، او انګریزانو دغه نه شوه برداشت کړلے، چې نهر سویز باندې د دوئ د بنس قدرت پروت وي د جرمن چانسلر بناغلي بیسمارک نهر سویز ته د پرنګیانو د سلطنت د - مغزو رګ ویلے ؤ، نو دوئ ۱۸۷۵ کښې د مصر د عیاش خادیو ن بادشاه اسماعیل نه د پرنګیانو یهودي نسل وزیر - عظم ( DISRAELI ) د نهر سویز دده حصه واخیسته دا ځکه چې د ے ډېر عیاش ؤ، د دولت ورته ضرورت ؤ، چې ددې سره انګلینډ د مصر کورني سیاست ته لاس وړ ننه کړو، او د فرانس داثر ورسوخ دختمولو کوښښ یې شروع کړو، په ۱۸۷۷ کښې بیا د ترکانو او روسانو تر منځ جنګ جوړ شو، په دې جنګ کښې پرنګیانو د ترکانو د روسیانو خلاف ملاتړ وکړو، او د ویرې نه یې هندي فوج په مالټه کښې واچوو، او روس ته یې غوري ټړ ې شروع کړې، او د روسانو سره یې مالي غنمت کښې ځان شامل کړو، او د برلن کانفرنس ۱۸۷۸ کښې یې ځان نه ګټه ورکړه، او د ترکې خلافت یې بالکل د تباهۍ نه بچ کړو، او معاوضه کښې یې ځینې قبرص واخیسته، ددې سره که مصر کښې نه، خو مصر سره نږدې یې سمندري فوجي

اړه جوړه کړه چې د غه یوبل میخ و چې د هند دلارې
د حفاظت د پاره یې په بحره روم کښې تاک وهلو او روسانو
پرنګیانو نه وعده ورکړې وه، چې دوی به په هند
حمله نه کوي، مګر بیا هم په هند کښې پرنګیانو چرخې
جوړې کړې وې، چې امیر شیرعلي خان د روسانو
دوست دے، او دویم افغاني جنګ یې پرې وروتپلو
د دوی سیال فرانس ۱۸۷۱ کښې پروشین جرمنۍ سره په
جنګ وُ، او جرمنیانو فرانسویان وډبول، او ددې
سره، د فرانس اثر و رسوخ ته نقصان ورسیدو، نو
ددې سره فرانس او پرنګیانو مصر او نور، اهم په فوجي نقطه ډیر کمزوري
شو. او نور اهم فوجي ځایونو کښې ځان مضبوط کړو
او د نهر سویز د مالیې واک د فرانسویانو او پرنګیانو
په لاس کړه وو، خو ۱۸۸٤ کښې پرنګیانو په مصر قبضه وکړه
د فرانس رسوخ یې بالکل کم کړو، او دغه حالات
د فرانس سره تر اول جنګ عظیم ۱۹۱٤ پورې پاتې شول
خو د فرانس او برطانیه تر منځ په مصر باندې هر وخت
تعلقات خراب وو، او کله نه کله به د جنګ خطره جوړه
شوه، او دغه خطره ۱۸۹۸ کښې ډیره جوړه وه، سوډان
هم د فرانسویانو نه پرنګیانو لاس ته کړو، او د دوی
تعلقات هله جوړ شول، چې ۱۹۰٤ کښې مراکش پرنګیانو

فرانسویانو ته خوشي کړه، او دوئ ورته مصر وبخښه
دا ځکه چي اوس په یورپ کښې یو بل پلان پیدا شوے ؤ
چې هغه جرمني ؤ، نو زاړه دښمنان د نوي ملك خلاف
رو روسره یو ځاے شول، سوډان هم بحر احمر غاړه
وه، د هند د سلامتیا دپاره ضروري وه، نو ځکه پرنګیانو
په سوډان هم خیته واچوله، د دې منطقې نوله یدبخني
د هند د حفاظت او محفوظ ساتلو په وجه راغلې وه، په
دې ځاے خبره ختمه نه ده بلکې دوئ د هند د حفاظت
ته نوم لاندې ۱۸۸۶ کښې سومالیه لینډ قبضه کړو، او س
دوئ بحر احمر یا سور سمندر غاړې او خولې په خپل
واک لاندې راوستې، چې د دې لارې په ذریعه هند
ته تګ د پردي طاقت دپاره مشکل شو، خو د دوئ زړه
چیرته سړیدو، دوئ جنوبي افریقه، نائجریا او نورې
فوجي علاقه د افریقې براعظم د سمندر په غاړه غاړه
قبضه کړې، چې که چیرې بحر روم د دښمنانو په لاس
ورځي، نو د هند دپاره نورې لارې زموږ سره وي
نو د هند د حفاظت دپاره یې نیمه دنیا ترسینې لاندې
راوسته، خو اوس د بحر روم او افریقې نه بیرته هند
ته ځو، چې دوئ هلته کومې بخرې او کړې، چې د ځمکې
دلارې هند سرحد ونه مضبوط کړي، او هندوستان

دنوري دنیاځان ترګوشي بنکارګاه جوړه کړي، نودوئ داسي طریقي جوړې کړې، چې دهند سره لګیدلي ملکونه یې داش و رسوخ نوم لاندې د برطانیه جایزمفاداتو ترنوم لاندې، او دوئ تر دحفاظت او ساتني ترنوم لاندې پدې ملکونو یا علاقو کښې خپل مفادات وساتل، او دغیر او ددښمن قوتو مخه یې ونیوله، او په دې ذریعه یې تر هند پوره نمونه قلعه جوړه کړه، موبږه د هند دحفاظت ترنوم لاندې سیاست شروع اول دمشرق نه کوو، دوئ اول تهالینډ (سیام) د برټش انډیا او فرانسوي کالونه هندوچین تر منځ BUFFER ریاست پریښود، او تهالینډ ځکه آزاد پاتې شو، چې دفرانس او انګلینډ دلته مقابله وه، شمال مشرقي سرحد داسې ؤ چې ۱۸۶۵ پورې یې خاص سرحد نه ؤ. برما، آسام، چین تیبت ددوئ سرحدونه پوره جوت نه وو، بل خوا نه بهوټان دحال وو، چې په دې علاقه کښې دهند دسلامتیا دپاره څه خاص خطره نه وه، بیا هم په ۱۸۶۵ کښې دیهوټان سره جنګ - وشو، او هندوستان حکومت خارجي تعلقات وا خیستل چوګیال نه یعني بادشاه ته وظیفه مقرره کړه، چې سالانه به حکومت هند یو لاکه روپۍ ورکولې نیپال بادشاه خو خپل خلک د برطانیه دفوج دپاره په کرایه ورکړي وو، او حکومت هند به لس لاکه روپۍ دد په بدل کښې دنیپال بادشاه ته ماجب ورکولو -

نیپال، د دوئ جغرافیایي پوزشن داسې وُ چې هیڅ یورپې، قوت لاس ته ور سیدو، د دوئ ټولو ته د هند پورې تړلے وُ، بلکې نیپال خو خپل خلک د برطانیه د فوځ د پاره، وقف کړي وو، چې بادشاه به د دې په بدل کښې لس لاکه روپیه ماجب اخیستو، نو د دې نه هم څه خطره هند ته نه وه، شمالي برخې ته ریاست کشمیر وُ او ریاست چترال وُ، چې د افغانی واخان په وجه د روس بریدونه دوئ نه وو لګیدلي، او س موږ ته د پرنګیانو اصلي سرحد ته راورسیدو، د غه نور سرحدونه کپ وُ، د غه اصلي شمالي غربي سرحد چې دوئ ورته «SCIENTIFIC FRONTIER» ویلو، د دې اهمیت څکه وُ چې د افغانستان، بلوچستان خلیج فارس، مشرق اوسطی او بحره روم ترد غه سرحد رسیدو، موږ ته د غه او س معلومه شوه چې ۱۸۷۷ کښې د ترکانو او روسانو جنګ اثرات ز موږ په صوبه او افغانستان باندې څه وو، چې د دې شک ښتهاتو نه چې امیر شیر علي خان روسي وفد منلی دے، پرنګیانو دویم افغاني او پرنګي جنګ جوړ کړو. دا څکه چې د دوئ په خیال، اصلي سرحد یعنې د هند ټولو ته خطره وه، او ټول جنګونه او بدبختۍ په دې سرحد تیرې شوي دي، دوئ د ترکانو مدد څکه کولو، چې روسان دلته کمزوري کړي.

چې د هند طرف ته یې خیال نشي، او دوی د ترکانو سره مشغول وي، ګڼې نور ترکان د پرنګیانو خپلوان نه وو، صرف او صرف د هند په خاطر یې د دوی مدد کولو او روسانو به په هند زور راوړو چې ترکي کښې ګټې وکړي، دوی ته پته وه چې موږ به پرنګیانو سره وعده کوو، چې هند باندې به حمله نه کوو، نو پرنګیانو به بیا د ترکې په شوکولو یوه سترګه پټه کړه. او مرکزي ایشیا کښې زار د روس قبضې عین داسې روانې وې، لکه هند کښې پرنګیان چې وو، لکه برطانیه د هند د نوابانو او راجاګانو ریاستونه یو په بل پسې خوړل، همدغه شان روسي بخارا، سمرقند، او خیوه ریاستونه تیر کړل.

اول افغاني او پرنګي جنګ پورې موږ، وینو چې دوی قدم په قدم یو بل ته نیږدې کیږي، پرنګیانو به ۱۸۴۳ کښې سنده، ۱۸۴۹ کښې د سیکهانو ریاست او ۱۸۵٤ کښې هرات باندې د ایران د دوو حملو ځواب (۱۸۵٤-۱۸۵۲) او د امیر دوست محمد خان سره د دوستۍ لوظنامه ۱۸۵۵ کښې او روسانو دې وخت کښې ۱۸٦۵ کښې تاشقند، ۱۸٦۷ کښې سمرقند په خیټه کښې واچوه، او دے کال یې نوی صوبه ترکستان جوړه کړه، او دې نه پیش دوی د پرنګیانو سره ( NEUTRAL ZONE ) خبرې وکړې، یعنې ۱۸۷۳ کښې

او افغانستان او شمال کښې آمو دریا بدخشان او واخان د
ددوئ تر منځ شوې ، او د خیوې ریاست د آن ادعه ئې
روسانو د پرنګیا نو سره وکړه. مګر کال لاپوره نه وچې
دوئ خپله وعده ماته کړه ، او ۱۸۷۶ کښې خوکند Khokand
قبضه کړو ، نو ددوئ ترمینځ شک وشبهات نور هم زیات
شول ، چونکه پرنګیان او افغاني پرنګي جنګ یرولي وو ،
مګر اوس ۱۸۷٤ نه پس د قاروړه پالیسي خلک لګ لوئ
سامراجي یهودي ذهن پرنګي بناغلی ( Disraelle )
وخت را غلے ؤ ، دوئ د روس د مخې د نیولو نیته کړے ؤ ،
نو برشتې هند ۱۸۷٦ کښې خان قلات سره لوظنامه وکړه
چې ددې په ذریعه خان پرنګیانو ته د کوټې (مشال )
او دره بولان نیولو او قبضه کولو ، اجازت ورکړے
ؤ ، چې دوئ غوبنتل چې قندهار ته دومره ورنژدې
شي ، چې د ښېشو د توپ مصافه اوحد وي ، او د روسانو
امکاني په هرات راتګ مخه د مخکښې نه ونیسي ، دوئ
د خیبر نه تر مکران بلوچستان د ایراني سرحد پورې
د روسانو خلاف بند وبست وکړو ، دوئ ۱۸۸۲ -
کښې بولان درې ریلوے لائن جوړ کړو ، ۱۸۸۷ کښې
هرنائې ریلوے لائن جوړ کړو ، اوکرنیه یې د هندي
ریلوي سیسټم سره وتړله او دره خوجک باندې ،

چمن ته ریلوے لائن اوږد کړو، دغه ټول دهند دحفاظت

ترنوم لاندې، ریلوے لائن یې ترافغاني بریده پورې

اوږد کړو، اوبل اړخ ته یې ریلوے، کوئټې نوشکي نه

تر ایراني سرحد پورې اوږد کړو، دغه ټول دروسانو

خلاف بندوبست وو، او روسان هم ورته تر زمني لاس

نیولي ناست وو، دوی هم ریلوے لائن، Kransnowodsk

TASHKENT orenburg (BUKHARA)

ورته تیر کړو (Merw-kushk Post ) ریلوے

لائن هوباهو داسې وو، لکه دچمن اوکوئټه ریلوے لائن

دغه دواړه ریلوے لائنونه د مشرق اومغرب له غاړې

یعنې روس او دپرنګي لائنونه ترافغاني سرحداتو

پورې اوږده شوي وو، او دلته ختمیدل، دواړو

حکومتونو دضرورت دپاره دومره دریلوے سامان

جمع کړے و، چې په ٦٠ شپیته ورځوکښې روسانو

ترهرات پورې، دا یمرجنسي په وخت کښې ریلوے را

تیرولے شو، همدغه شان پرنګیانو دضرورت په وخت

ترقندهاره پورې.

اوس بیا موږ ته دد وی په بحره روم اوکوه قاف کښې

پهلوانۍ ته راځو، چې څه وخت ۷۸ – ۱۸۷۷ کښې پرنګیانو

دروس دړاریدو دپاره خپل فوجونه په مالټه کښې راجمع

کړل نو روس دے وخت کښې امیرشیرعلي خان د پرنګیانو خلاف د اتحاد ووئیل، دوئ کابل ته خپل مشن ولیږلو هلته په خیبر باندې د پرنګیانو وفد منع شو، نو ددې په وجه پرنګي په افغانستان ورودانګل چې دوئ د- ( scientific Frontier ) په تلاش کښې وو او ویلې یې لټولې، دکمال خبره خو دغه ده، چې روسانو به ترکان د ډبول، پرنګیانو به یې مدد کولو، او پرنګیانو به افغانانو سره جنګ کولو، او روسانو به په دروا غو وعدې کولې، ترک او افغان به وهل وخوړل، ګټه به عیسویې، روس او یا برطانیه کوله، او ډیرو مسئلو کښې ترکان افغانانو ته به غصه ؤو، چې دوئ ولې د پرنګیانو خلاف دي، پرنګیان خو اسلامي خلافت ساتي او دوئ ته دغه پته نه وه، چې پرنګیان اسلامي خلافت نه ژغوري، بلکې ددې په وجه او ذریعه د هندنږ د روسي مخه اړوي،

نو پرنګیانو په افغانستان کښې بیا هغه حالات ولیدل چې کوم اول افغاني پرنګي جنګ خوړ د کابل کښې په راغلي وو، خو داځل د شاه شجاع نه زیات امیرعبدالرحمن د دوئ ښه شاګرد ثابت شو، دوئ دافغانستان خارجه سیاست دځان سره وساته، او امیرعبدالرحمن یې د پیسو

او وسلو په ذریعه ټینګ کړو، او په ۱۸۹۳ کښې یې دغه
ددوئ تش په نوم ... scientfic Frontier تیر کړو
او پښتون اولس یې تقسیم کړو مګر ددې سره هم هند
دحفاظت او ژغورنې ویره ددوئ نه ونه وته هم په
دې وخت کښې روسان قلار ناست نه وو، دوئ ۱۸۸٤-
۱۸۸۱ کښې د ترکمن علاقې قبضه کړې، او په ۱۸۸۵ کښې د پنج
دې په مقام دافغانانو او روسانو جنګ وشو روسانو -
PAJDEH دافغانستان نه قبضه کړه، اوس دافغانستان
حکران دپرنګیانو دلاس بوتا یې وُ، نو دپرنګیانو او روسانو
دجنګ خطره جوړه شوه، نه دې حده پورې نږدې
وه، چې برټش انډیا په لندن پارلمنټ کښې دجنګ دخرڅ
دپاره درخواست وکړو، چې جنګ ونه شو هغه وجه
یې یوروپ کښې وه چې دلته Balanec of Power خراب شو
هغه داسې چې دفرانس نه بیا خطره جوړه شوې وه
چې مصر باندې حمله ونه کړي، نو دې وخت کښې
پرنګیان ویریدل، چې یوروپ کښې کوشي نه شي-
( Isalate ) او بل په یو وخت کښې مرکزي ایشیا
کښې دروس سره او بحره روم کښې دفرانس سره مقابله
رانه شي، هلدغه وجوهات وو چې دوئ دپنجدې د
قبضې ترخه ګولۍ تیره کړه، خبره جنګ ته نه لاړه

اوبل سوړان کېږي ورته مهدي پورته شوے وُچې خرطوم کښې پرنګي جنرال ګوردون مړکړے و، دنو روئ دافغانستان ته زيات په دې براعظم کښې ونيول شول، ددې مطلب دغه نه دے چې دوئ روس هير کړے وُ..

د پرنګيا نو قسمت ښه وُ، چې دجرمني دسلطنت بنيادېښنو دونکےچا نسلر بيسمارک او د روسانو دوست او د فرانسويانو دښمن په ۱۸۹۰ کښې شهنشاه قيصر وليم دوم سبکدوش کړو، داځکه چې شهنشاه يې جرمن مړشو، او ورپسې يې زوئ داتوميا شتو نه پس مړشو، چې حکومت دنيکه نه لمسي ته . . . شهنشاه قيصروليم دوم ۲۸ کلن نه پا تې شو. نو دے دډېر ځوان وُ، بيسمارک يې دنيکه په ځاے وُ، نو ددوئ په منځ کښې: —

ر . Generation GAPE ) دومره لوئ وُچې آخر بيسمارک دوزيرعظمى نه پښنې شو، دبيسمارک سياست دغه وُ، چې فرانس په يورپ کښې کوشي ( isolate وساتي او روسانو سره يې ښه تعلق وي، داځکه چې نه ده، غوښتل چې جرمني سلطنت په يو وخت دروس اوفرانس په منځ کښې را شي، نو ده د نپولين دوخت روسي او فرانسوي شک وشهبات ته لمن وهله، نو ده دروسانو

متباغي بسمارک د روسيانو او اسټراوي حکومتونو سره لوظنامې کړې وې ، چې -
څه وخت بيسمارک لاړو ، د دې سره روس په مرکزي
يورپ کښې يو باعتماده ملګرے و بائللو د دوئ
پوزشن کمزورے شو ، دلته وخت د پاؤ د پرنګيانو
په فايده تمام شو ، ۱۸۹۱ کښې د روس او جرمني سلطنت ،
ترمينځ د د وستۍ د معاهدې وخت ختميدلو ، مګر جرمنيانو
دغه معاهده د روس سره نوې نه کړه ، چې د دې په وجه
روس سره شک پيدا شو داځکه چې د شهنشاه مور-
د ملکے وکټوريه لور وه ، نو د بادشاه يعني
قيصر وليم تمائيل د برطانيه اړخ ته وُ ، چې دې باندې ،
فرانس او روس دواړه شکمن شول . دوی د ۱۸۱۲
د نپولين جنګونه هير کړل ، د جرمني او برطانيه خلاف
دوئ ۱۸۹۱ کښې پټه لوظنامه وکړه ، که څه هم دوئ په
ډګر داسې نه وئيل ، خو هر چا ته پته وه چې دوئ
د چا خلاف سره يوځائے شوي دي ، فرانس په
يورپ کښې جرمنيانو نه ډاريدو ، او نړۍ کښې يې
د پرنګيانو سره سيالي وه ، هم دغه شان ترکي ، ايران
افغانستان کښې ، د پرنګيانو او روسانو بزکشي وه ،
چې پرنګيان د هند په غم ککړوو ، نو د جرمني حکومت
د سياست په وجه فرانس او روس سره نژدې شول .

مگر د جرمني بادشاه که څه هم د وکټوریه لمسی وُ،
مگر دے یو مغرور جرمنیایي هم وو دده تعلقات د
برطانیه سره په دې خراب شول، چې ده اعلان وکړو
چې د جرمنیانو قسمت په اوبو کښې دے، یعني سمندري
فوج. چې دغه خبره په برطانیه بله ولګیده، دا ځکه چې
تر اوسه پورې، خو دوئ د سمندر بادشاهان وو،
نو دوئ بل طاقت نه شو برداشت کولے، قیصر ولیم
په سمندري فوجونو جوړولو باندې پیل وکړو ۱۸۷۱-
کښې د جرمن د سلطنت د بنیاد نه پس دوئ دومره،
ژر ترقي وکړه، چې نه صرف د فرانس دپاره خطره
شوه، بلکې د برطانیه دپاره هم دوئ خطره شول.

دغه تفصیل ضروري وُ، دا ځکه چې اوس سیاست
مقامي نه وُ، بلکې بین الاقوامي صورت یې نیولے
وُ، چې د یورپ د اشراتو نه هند آزاد نه وُ،
اوس بیا راځو د روسیانو او پرنګیانو سیالی ته:
اوس پرنګیانو د روس خلاف په شمال کښې ځانونه
ټینګول، دوي ۹۲/ ۱۸۹۱ کښې HUNZA ریاست او
( NAGAR ) قبضه کړل، او ۱۸۹۵ کښې چترال ئې نیو
او روسیانو ۱۸۹۲ کښې ټول د پامیر غرونه قبضه کړل
اوس د هند د حفاظت دپاره پرنګیانو یو سرحد

دافغانستان او روس ترمینځ دریا امو جوړکړه

بل یې د دیورند ترنوم لاندې په خیبرجوړکړ

او بل یې قبائیلي بندوبس سیمو ترمینځ جوړکړه،

دغه ټول بندونه اوس حدوته دوئ دهند

دحفاظت دپاره جوړول، اوس دافغانستان او ایران

خلیج فارس نه علاوه، تیبت هم ددوئ د پهلوانۍ

مرکزشو، خلیج فارس کښې خو پرنګیانو ځانونه

مضبوط کړي وو، دوئ پرتګــزیان شړلي وو.

او ددوئ په سمندري فوجي اډو باندې یې قبضه

کړې وه، داځکه چې د هند دسلامتۍ دپاره دغه

ضروري وه. خو ۱۹۰۰ خواوشا کښې خلیج کښې د

برطانیه پوزشن په یو وخت کښې دد واړو خوانو

نه خطره ورته پیښه‌شوه، چې روس دایران نه‌اوخله

ترتیبت پورې سیمه کښې یې جار خانه لاره دپرنګیانو

خلاف واخیسته. دوئ دایران سره پټه معاهده‌وکړه

بندرګاه بوشیر او بندر عباس کښې ایراني حکومت

روسیانو ته د جنګي جهازو تمکیدو اجازت

ورکړو، او روسیانو بندر عباس ته جنګي جهاز

ولیږلو، چې دغه دپراهم فوجي ځای ؤ، چې

دپرنګیانو دپاره د خطرې بګل و، او بل دترکانو

ليکوا جرمنيانو ته د بغداد د ريلوے لائن ټهيکه ورکوله
ؤ چې اوس د جرمني نه هم برطانيه ته خطره وه، مګر
پرنګيانو د مخکښې نه ۱۸۹۹ کښې د بغداد ريلوے لائن،
د خطرې له وجې نه د شيخ کويټ سره پټه لوظنامه
کړې وه چې دوئ به پرنګي د سمنه طاقتونو ترمراعات
نه ورکوي، او د کويټ نه يې خارجي سياست لاس ته
کړو، او دې لائن باندې روسيان هم نه وو خوشحال.
دا ځکه چې ترکيان او روسيان د ډيرو مودو سره
دښمنان وو، يعنې اوس عالمي سياست کښې د فرانس،
برطانيه او زاري روس نه علاوه يوبل ځلو رم -
لويغاړې جرمني کال په کال خر کند يلو، چې ټوله لوبه
يې ورانوله، او د دې ټولو خطرو په وجه
لارډکرزن ۱۹۰۳ کښې کلف ته سفر وکړو، او په دې
علاقه کښې د برطانيه مفادانو او دښمنو قوتونو
رانغوتلو ته يې دوئ خبر کړل. « ده ورته ووئيل،
چې خليج پارس کښې فوجي اډه جوړولو، يا دښمن
قوتونو سمندري بيړه ته ځايونه ورکول، دغه
ټول اقدامات زمونږ د مفاداتو سره په ټکر کښې
راځي، او مونږه به هر ممکن ذريعې په کار راولو
او دغه نمونه کار ته به هيڅوک پرې نږدو ».

۱۹۰۳ کښې برطانيه هندي حکومت ته ذرک ولګېدو چې روسيان د تيبت سره سفارتي تعلقات جوړ ولو په هڅه کښې دي، د دې وجه دغه وه چې يو روسيائي بودها عالم د ۱۹۰۱-۱۸۹۹ پورې په تيبت کښې وو، او د تبيت په دالائي لامه ، « Dalia Lama » باندې يې ډېر اثر جوړ کړے وُ . او ډېر اعتبار يئې په لاسه ( LAHSA ) کښې کيلے وُ ، او چې څه وخت دے مسکو ته لاړو، نو زار دده سره ملاقات وکړو. او دے يې د روس د مفاداتو دپاره د تيبت سره د رابطې دپاره مقرر کړو ، د دې سره برطانوي هند حکومت ډېر ګړوړ بشو ، نو لارډکرزن ( Dalai Lama ) ته خط وليکو او د تفصيل او صفائي هيله يې ځنې څرګنده کړه ، خو - دالايۍ لامه د دې ليکونو ځواب ورنکړو ، نو لارډ کرزن وارخطا شو ، په تيبت يې ۱۹۰۴ کښې حمله وکړه ، فوج تر لاهسا ( Lahsa ) پورې لاړو او Dalai Lama د بدهانو مذهبي مشر او بادشاه د پرنګيانو نه منګوليه ته وتښتيدو ، پرنګيانو په تيبت باندې دخپلې مرضۍ فيصله ومنله او دغسې د روس اثرات يې ختم کړل ، دغه لو به هم د هند تر سلامتۍ لاندې وشوه ، د لته بيا د پرنګيانو قسمت سنه و چې ۱۹۰۴-۱۹۰۵ کښې روسيان په مشرق کښې د جاپانيانو سره په جنګ وو او پرنګيانو

دهند په وجه روسیانو ته په مشرق بعید کښې جاپانیان تیار
کړل، څنګه داسې چې زاري روس د سایبریه په لاره مانچوریا
چیني علاقې نیولې، دوئ هم د هند په شان په مشرق کښې د چین،
کوریا په خاوره د زاري سلطنت د جوړولو خوبونه لیدل، چې
په دې باندې جاپانیان وارخطا شوندې وو، دا ځکه جاپانیانو
وئیل چې نن مانچوریا، سبا کوریا او بله ورځ جاپان، نو دلته
بیا د پرنګیانو مرکزي ایشیا دښمن او هند ته د امکاني خطرې
خاوندِ روس ته یو بله لومه بنخه کړه، نو دوئ ۱۹۰۲ کښې
د جاپان سره د اتحاد معاهده وکړه، دا ځکه چې روس اوس
د جاپان او برطانیه مشترکه سیال او دښمن و، او په دې معاهدۍ
کښې یې لیکلي وو، چې برطانیه د جاپان د سلامتۍ او ځکې
برقرارۍ ضمانت ورکوي، او جاپان لوظ وکړو چې دے د هند
د سرحدونو د محفوظ ساتلو د پاره هر قسم امداد ته تیار دے.
اوس د جاپان لاس د روس خلاف آزاد شو، مګر روسیان
دومره مغرور وو چې ایشائي خلک دوئ په هیڅ کښې نه
شمارل، او جاپانیانو ته یې زړه بیزوکان وئیل. چونکه جاپانیانو
په ۱۸۹۵ کښې چینایان ړبولي وو، خو د غه ایشائي قوم
وو، روسیانو وئیل، چې سپین باندې زړه نه شي بریدلے.
خو د ۱۹۰۲ د معاهدې نه پس د جاپان زړه برابر و، که څه
هم روس لوی قوت و، او جاپان یو ورکوټی ملک و، نو

روسي جنګ شروع کړو ۱۹۰٤ نه تر ۱۹۰۵ پورې يې دوام وکړو، اول روس روسيان په مانچوريا او کوريا کښې ورپول. او بيا يې سمندري جنګ کښې داسې شکست ورکړو، چې د هغه وخت دنيا جاپانيانو ته حيرانه وه، دغه اول ځل و چې ايشائي طاقت سپين پوستکي يورپي طاقت نه دوړي پورته کړې، نو ددې سره د زار روس په مشرق کښې د سلطنت جوړولو خوبونه ختم شول، او ده خپل مخ يورپ ته راوګرځولو، او د پرنګيانو د هند ازلي سيال او دښمن سپک اوکمزورے شو، اوس دغه تول لويه يورپ ته لاړه، دپهلوانۍ مرکز يا ميدان بالکان شو. سياسي حالات داسې جوړيدل، چې زاړه سيالان او دښمنان رو رو سره ملګري کيدل. دا ځکه چې اوس د دنيا په مخ يو بل سيال غځيدو چې هغه جرمني و، چې د ده نه فرانس ته خطره وه. د سمندري بيړۍ په وجه برطانيه ته خطره وه، او د ځمکې او د روسي بالکان سياست په وجه روس ته هم خطره وه. په ۱۹۰٤ کښې فرانسې او برطانيه خپل اختلافات ختم کړل، هغه داسې چې په ۱۹۰٤ کښې فرانس مراکش خپل دائره اثر کښې اعلان کړو، ددې مخالفت جرمني وکړو، او د فرانس خلاف يې جنګي بيړۍ ولېږله، برطانيه د فرانس طرفداري وکړه، او فرانس د برطانيه حق په مصر باندې ومنلو، په بالکان کښې پخوا د روس او اسټرليا دوستي

د ترکانو خلاف وه. چې بیا روسانو زربین د استرلیا . خلاف راپورته شول، چونکه روس سلاویش قوم ته تعلق درلوده د زربین حمایت یې وکړو، په یو وخت زربین نه استرلیا او ترکي ته خطره شوه ، نوبیخواني دښمنان ترکیان او استرلیان دمشترکه دښمن په وجه سره ملګري شول، چونکه استرلیان نسلاً جرمنیان دي نوجرمن سلطنت هم د دوئ اړخ ته شو ، او ترکیان ،جرمنیان اواسترلیان دریې واړه یوې غاړې ته شول ، اوس فرانس کوشش شروع کړو، چې دروس او برطانیه تر منځ روغه وکړي، فرانس په دې بریالی شو ، په ۱۹۰۵ کښې یې دروس او برطانیه په منځ کښې روغه وکړه ، دهند نه دروس خطره فی الحال ورکه شوه . همدغه وجه وه چې ، دوئ په ۱۹۰۷ کښې په افغاني سرحدانو باندې سره راضي شول. داځکه چې اوس روس، برطانیه او فرانس دریې واړو ته د دوستۍ ضرورت و ، چې د جرمن مخه ونیسي ، نو زاړه سیالان بیرته سره پخولا شول، چې د نوي دښمن مخه ونیسي ، د تفصیل ضرورت نه شته څو دومره به ووایو چې د دې کشمکش نه اول جهاني جنګ جوړ شو. چې روس ، برطانیه فرانس، او روستو امریکه یوه ډله شول ، ترکیه ، جرمني او استرلیا بله ډله شول ، د جنګ په

دوران کښې په روس کښې انقلاب راغئ، د ترکانو خلافت خلاص شو، او عرب د پرنګيانو او فرانسويانو په لاس ورا-غلل، مګر دلته بيا د هند د سلامتۍ غم د پرنګي د سر نه ونه وتو، دوئ د ترکانو ميراث داسې تقسيم کړو، چې پرنګيانو هند ته د سمندري لارونه علاوه حُکمۍ لاره هم جوړه کړه، هغه داسې چې دوئ د فلسطين ساتنه په غاړه واخيسته او بل يې د عثماني خلافت صوبه موصل او سلمانيه پرې کړل، يو نوے نوملك يې د عراق تر نوم لاندې جوړ کړو چې عرب او کردان يې د خپلو مفادو د پاره په يو ترنګر کښې واچول او شريف مکه زوئ شاه فيصل يې د عراق بادشاه کړو، چې دا هغه شاه فيصل وُ چې د پرنګيانو مدد يې د ترکانو خلاف کړے وُ. هغه بل ورور ته يې اردن ورکړه چې د غه ټول مصنوعي ملکونه وو، بلکې د اردن متعلق خو چرچل داسې ويلي وو: چې اردن ما يو ورځ قضاماسپښين په پنسل باندې جوړ کړو، خو داسې يې جوړ کړو چې د اردن او عراق لکۍ يې سره ولګولې، شام او لبنان د فرانس په لاس ورا غلل. او س هند ته دريمه لاره د بحرِ روم نه خليج پارس ته جوړه شوه، چې د فلسطين او اردن د اکابا بندرګي او هائفا ( Haifa ) بندرګي نه دوئ په حُکمه تر بصرې پورې بيا د بصرې نه خليج پارس هرمز په لاره

دمکران کودن، کراچۍ او بمبي هم دغه شان پورټ سعید، نهر سویز، عدن، کراچۍ، بمبۍ او بله لاره د افریقې د ختګ ځنګ سره ( Captown ) او بمبي او کراچۍ دغه ټولې لارې دوئ د هند دحفاظت دپاره جوړې کړې، اوس دوئ مصر، سوډان، صومالیه، عدن، عمان، شارجه کویټ بحرین، بصره، فلسطین بندرګاه، او اردن په اماېه بند رګاه، قبرص، مالټا، جبرالټر، جنوبي آفریقا دغه ټولې ددوئ په قبضه کښې وې، د فرانس سره ملګري وو، روسې کښې انقلاب شوے ؤ، دخپل ځان په غم وو، ترکیان ختم ؤ، او ایران د روسي او انګریزي اثر لاندې سره تقسیم شوے ؤ، خولېنن بیا دزاررسې ایراني برخه بیرته ورکړه، اوس په ایران کښې هم پرنګیان وو، د هند دسرو زرو تر مرغۍ ېې خوخوځله حفاظتې دیوالونه تاؤ کړل، لندن، ډهلی دواړه چُرت کښې وو، چې اوس به هند په مزو مزو خوروو، داځکه چې په ښ دې علاقه کښې دوئ څوک نه وو پرایښي. خو ددې ټولو تدبیرو لنډ ژوندؤ، یوه ورځې چې واشراځ ډهلی کښې سحردخوبه پاسیدو، نو نوکر یې چنجن مخ نیولے ؤ، واشراځ ځنې تپوس کړے ؤ، چې څه پلار دې مړدے چې خوار جن مخ دې نیولے دے؟ نوکر یې ځواب۔

ورکړے ؤ ، چې ددې نه هم غټ کار وران شوے دے د ناشتې په میزېې واشراۓ ته ویلي وو ، چې د مرحوم امیر عبدالرحمٰن خان زوئ ، زمونږ دوست حبیب الله خان چا شهید کړو ، چې په ځاۓ یې کشر زوئ امان الله خان بادشاه شوے دے ، ددې سره د واشراۓ نه د ناشتې تپوس پرېوتو ، چغه یې کړه چې زمونږه خیال ؤ چې اوس هند ته د شمال نه خطر ورک شو ، د آرام یو کال تیر نه شو ، چې زمونږ په شمالي مغربي سرحد بیا دښمن پیدا شو ، امان الله خان دوئ ته ورمعلوم ؤ ، چې دربار کښې دقوم پرستو د ولې نه ؤ ، نو غازي دوخت نه فایده وا خیسته په پرنګي یې دریم ځل دپاره برید وکړو ، چې نتیجه یې دافغانستان استقلال ؤ ، اوس دوئ سره بیا غم شو ، چې امان الله خان ورته کابل کښې کښېناستو ، نو دوئ دده دورکولو دپاره قسماقسم پیران ملایان او غله راپیدا کړل ، چې د چا نوم ګود ملا ؤ ، څوک کابړه وو څوک اوږده وو ، څوک باباګان وو څوک بچه سقه ګان وو ، په ۱۹۲۹ کښې امان الله خانه دوطن نه تیښتې ته مجبور کړو ، اوس پرنګیان خوشال وو ، چې افغانستان مو بیا سوړ کړو ، خو بیا یو سړي چې واشراۓ دخوب نه ویښ شو نو نوکریې بیاسپېره مخ نیولے ؤ واشراۓ بیا وارخطا شو ، ورته یې وویل چې امان الله خانه بیا څه

راغلي دي،؟ نوکر ځواب ورکړو چې نه د هغه نه ډېر خطرناک کار شوی دی، چې په چارسده اتمانزو کښې زمونږ يار خان عبدالغفار خان راته خدائي خدمتګار سره دسرو جامو جوړ کړل، او غټ مقصد يې مونږ ه يو، چې د هند نه مو وباسي، واشراي ورته وويل چې خپه کيږه مه، زه به دوئ درته د بالشويکانو په نوم داسې درته ورکړم چې پته يې ونه لګي، چې دوئ خدائي خدمتګارو ته د پهانسي پړي تيار ول، واشراي بيا خبر شو چې هغه يارانو د کانګرس سره اتحاد وکړو.

او س برطانيوي هند ته د بهر نه زياته داخلي مرض نه زياته خطره جوړه شوه، چې هغه د شمال مغرب له خوا د خدائي خدمتګارو تحريک وه، او هند کښې ورته ګاندهي لنګ و هلې وُ، او بل په ۱۹۳۳ کښې بيا جرمني د هټلر د مشرکړې لاندې کيدوته تياري کوله.

او په ۱۹۳۵ کښې وزيرستان بيا ورته راپورته شو، د دوئ خيال وُ چې وزير مسعود مو CIVILISED کړل، مګر د فقير ايپي د څرګنديدو سره په دوئ تبه راغله، او س دسې پښتون د عدم تشدد د فلسفې لاندې جنګيده، پاس غره کښې فقير ايپي توره پسې راخيستې وه، چې د ده تعلقات تر نازي جرمني پورې وو، نو يو ځل بيا ډېر لګې

سره د شمالي صوبې سرحد ختم شو ، او بل اړخ ته جاپان په مشرق یعنې کښې د مشرقوب په پښے کول ، د مشرق نه هم هند ته خطره جوړه شوه ، که څه هم دوئ کلکته ، رنګون سنګاپور ، هانګ کانګ او ملائشیا په لاس کښې وه ، خو بیا هم د جاپان نه دغه خطره وه . چې د نیوزی لینډ ، آسټریلیا او هند تر منځ سمندري لاره بنده کړي ، اوس بیا په پرنګیانو مینې یې اخته شول .

اوس هند ته د سمندری ، ځمکنی لارو نه علاوه هوائي لاره هم جوړه شوه ، چې هغه داسې وُ ، مصر سکندریه غزه ، ردت بان ، د بغداد بصره ، بحرین ، شارجه ، عمان ګوادر بلوچستان ، کراچۍ ، بمبۍ ، کلکته ، رنګون بنکاک ، سینګاپور ، ځمکني سلوني ، آسټریلیا او نیوزي لینډ ته به جهاز تلو ، د دې هوائي لاین په ذریعه برطانیه د خپل نړیوال سلطنت مختلفې حصې یې سره کنټرولې او تړلې وے . چې د جنګ په وخت کښې د دوئ پکار راتلې ، او هم جنګ عظیم کښې دوئ ډیره فایده ځنې اوچته کړه . یو جرمنی لیکوال د برطانیه د دې کوشش متعلق داسې لیکي :

Eine geschlossene Englische Front, ein lueckenloser Schutzwall um Indien zieht sich von Aegypten bis zum Himalaya, ein imposantes Britisches Bollwerk, das aber freilich die probe seiner inneren und aeusseren Festigkeit erst noch zu bestehen hat.

**ترجمه:** یو مضبوط برطانوي محاذ دے، دوئ د هند د حفاظت د پاره د مصر نه راواخله ترهمالیه پورې داسې دیوال جوړ کړي، چې هیڅ سوري پکښې نه شته دغه لوئ او مضبوط کار به هله مونږه مضبوط او کلک وبولو چې د دے داخلي او خارجي دباو تر ټینګ شي، او په امتحان پوره ووځي؟

دده لیکوال په قول، د دوئ دیوال د بهرني سیلاب مقابله وکړي، مګر داخلي دباؤ ته ټینګ نه شو، اوس په هندکښې ګاندي جي او باچا خان ورپسې راحنستي وه، په وزیرستان کښې ورته فقیر ایپي وو، د مشرق نه جاپان و، او یورپ کښې ورتر نازي جرمن وو، چې دنیا د دویم جنګ عظیم په غاړه ولاړ وه، چې هغه چا ود نه یکم ستمبر ۱۹۳۹ کښې د نازي جرمن له خوا په پولینډ، حمله وه، چې ددې سره دویم جنګ عظیم شروع شو، اوس

پرنګیانو باندې ګران هندوستان ته د بهراو د ننه
دواړو نه خطره شوه، د بهر ته اول شمالي غربي سرحدونه
وُ، چې د دوئ خیال وُ، او په پښتنو یې عتبار هم نه
وُ، کله چیرې هتلر سوېټ یونین ووهي، او په روایتي،
لاره یعنې د نپولین، او روسانو لاره مرکزي ایشیا، ایران
بلوچستان، افغانستان په لاره هندې باندې راځي، نو افغانان
او پښتانه به ضرور پرجرمني ملاتړ کوي، چې فقیر ایپي،
سره د دوئ رابطې وې، او افغاني دربار کښې هم د دوئ
رسوخ وُ، نو ځکه د پرنګیانو او روسیانو افغان حکومت
ته وئیلي وو: چې جاپاني او جرمني خلک د افغانستان
نه وباسي، دوئ د یا جوړ نه تر بلوچستان پورې دیورنډ
لائن او درې ( passes ) ټولې سمتې مورچې کړې
چې نازیان د هند د نیولو نه منع کړي. خو د نازیانو په
روس کښې د شکست په وجه پرنګیان لږ په قراره شول
د مغرب شمال دا ړخه خطره ورکه شوه او هتلر کوشش
کولو چې د باکو اذربائیجان د تیلو په کوهیانو قبضه
وکړي، او ایران بلوچستان او خلیج پارس په لاره هند
سمندر او په هند کښې پرنګیان وټکوي، هم دغه وجه وه
چې ایراني بادشاه رضا خان دوئ جنوبي افریقې ته وتښتولو
ملک یې روس او پرنګیانو سره تقسیم کړو، او تش په نوم یې ده

زوی کینولو، دغه هم دوی د نازیا نو څخه بیوله چې هند
ته راننه شي، او داخل کښې یې ټول کانګرس جیلونوا چولو،
سبوباش چندربوش څنې خلاص شو، جاپان ته لاړو،
ده خوښتل چې د مشرق دار څخه دجاپان په کمک هندوخلې
داځکه چې دجاپانیانو دعوی او نعره وه چې ایشیادایشیایانو
ده، نو دوی چې کوم کانفرانس توکیو کښې په ۱۹۴۳ کښې
جوړ کړې ؤ، د هند نمایندګی سوباش کوله، سوباش
هم زموږ په سرحد افغانستان او او بیا جاپان ته تللی ؤ، پدې
کانفرنس کښې چې مشرکړي دجاپان په غاړه وه دې ملکونو
حصه اخیستې وه، تهائي لینډ، برما، چین، جمهوریه جاپان
فلپین او هند (سوباش)، نو دمشرق دغاړې جاپان پسې
رانغی تر برما پورې علاقې یې ونیولې، او کلکته او چټاګانګ
یې بمبارکه کولې، د هند او نیوزی لینډ او آسټریلیا،
سمندري لارې یې دهند سره په خطره کښې راوستې،
په دې وخت کښې په ۱۹۴۲ کښې پرنګیانو افغان حکومت ته
وئیلي وو، چې که چیرې جاپان هند ونیسي، نو موږ ته تاسې
ته پښتون بلوچ سیمې درکوو، او تاسو یې داسلام تر نوم
لاندې هند کښې دجاپان خلاف وجنګوئ، او خدائي،
خدمتګار وخلاف دوی افغاني ملکانو، او قبائیلي ملکان،
تیار کړل او د دوی مشري باچاګل کوله، داځکه چې خدای

خدمتګارو باندې د دوی اعتبار نه ؤ، نو پرنګي کوشش کولو چې خدائي خدمتګارو تحریک، د افغاني سردارانو په ذریعه، وټکاوي، فرض که دوی د هند نه جاپان وباسي د دې نه معلومیږي چې دې سخت وخت کښې هم پرنګیانو د خدائي خدمتګارو د پاره څومره خیرن زړونه لرل. او افغاني واکدارو کومې ارادې وې.

با هر حال امریکیانو د برطانیه فرانس، او سویت یونین مدد وکړو، دوی اول هټلر ختم کړو، بیا یې ۱۹۴۵ کښې په جاپان اتومي بمونه واچول. هم دغسې دویم عالمي جنګ د پرنګیانو په خیر تمام شو، خو جهاني ملکي د دوی نه امریکې ته لاړه، دوی دومره کمزوري شوي وو، چې دغه په دوی ګران هند دوی نور نه شو سمبالولو د بهر نه یې بېچ کړو، خو داخلي دباو ته ټینګ نه شول، خو د خدائي خدمتګارو نه یې، بدله واخیستو، داځکه چې دوی ضدي پرنګي وو. هندوستان یې پرېښود، خو داسې یې پرېښود، چې تر نن ورځې پورې د نفرت کوم اور، چې دوی په هند کښې لګولې ؤ، هغه بلې ژی د کانګرس نه یې بدل داسې واخیستو، چې هند یې ځنې تقسیم کړو، او د پښتنو نه یې بدل داسې واخیستو چې دوی یې د نورو پرنګیانو په لاس ورکړل، او هغه شمالي غربي سرحد یې د دوی په لاس ورکړو، چې روستو دغه

شمالي غربي سرحد دکمیونزم خلاف سینه وهونکي لوظنامه تر نوم ـ
لاندې د امریکې په چارچ ورغئ چې تر تن ورځې پورې خدائ
خدمتکار و د دوئ د تشدد او پښتون د قوم پرست نښان دے.
او دغه سرحد مغربي دنیا ته د ومره اهم وُ، او دے چې څه
وخت په ۱۹۷۸ کښې په افغانستان کښې بدلون راغئ، نو بیا
مغربي دنیا د کمونیزم خلاف سره یوه شوه، افغاني بزکشي
کښې نه صرف سوویت یونین ختم شو، بلکې د کمونیزم سیستم یې
ختم کړو، او د پښتون کورې یو ځل بیا وران کړو.

# دهند ویش، دپرنګي سیاست

## دکانګرس غداري

# دخدائي خدمتګارو سره

په تیر باب کښې پدې تفصیلاً بحث وشو، چې پرنګیانو د هند دساتنې دپاره کومې کومې لوبې نه دي کړې، دوئ، ایشیا او افریقه صرف دهند دخاطره په اور کښې درولی وې سمندرې، هوائي او زمیني لارو په وجه دوئ اولسو نه په عذاب کړي وو، او صرف او صرف دیو مقصد دپاره چې دغه لارې هند ته دتګ راتګ دپاره دخطرې نه خلاصې وې، او دغې لوبې یونیم سل کاله دوام وکړو، او بیا چې څوک داسې ملغلره پرین دي، یا مجبور شي نوتا سو پخپله اندازه وکړئ، چې ددې سړي یا قوم به څه حال وي، او دغه دسرو زرو مرغئ دوئ په اګست ۱۹۴۷ کښې ازاده کړه، او داسې چې ددوئ په فایده وه.

دوئ دهند په تقسیم کښې څو فایدې لیدې، چې اوله فایده دوئ ته دا وه چې، دا ن ادعه به وجود چې دوئ ازاد

کړل، مګر هندوان او مسلمان یې بیا هم محتاج وساتلو دوئ د هندوانو او مسلمانانو نه د هند دښمنانو او ساتلو په دوران کښې په مختلفو مرحلو کښې فایدې وچتې کړې چې اول سر کښې مسلمانان د واک خاوندو، دوئ هندوان د ځان ملګري کړل مسلمانان یې پرې وډبول، چې مسلمانان یې ښه په سیاسي معاشرتي، اقتصادي، او تعلیمي توګه ځملول، نو هندوانو ورته را پورته شو، بیا یې ۱۸۵۷ نه پس مسلمانان ورته لاس کښې ونیو، د هندو جماعت یې په کولو، دوئ د غه د نفرت تخم ځکه کرلو چې دوئ په دې پوه وو، چې که دواړه راته یو لاس شي، نو زمونږ خیر نه شته، هند د دوئ د جهاني بادشاهۍ خښته وه چې هند لاړو، نو د دوئ جهاني ملکي هم لاړو دوئ د هند د اهمیت نه ښه خبرو، دوئ د هند په زور ایشیا افریقه، مشرق او سطی او مشرق بعید کښې کالونۍ جوړې کړې وې، دوئ د هند په زور براعظم افریقې خام مال خوړو، د دنیا لوې تجارتي لارې د بحر هند په وجه د دوئ په کنټرول کښې وې، نو ځکه دوئ هیڅوک دې ته نه پرېښودو چې د هند د قسمت سره لوبې وکړي، او هند په خپله د دوئ د پاره د خام مال او د دوئ د تیار شوې کارخانې د پیداوار د پاره لوتیه منډيي وه. نو دوئ د هندو او مسلمان نفرت اول سر کښې د دې د پاره جوړ کړے وُ چې، هند باندې د دوئ د حکومت او واکدارۍ عمر اوږد شي د دوئ نه مسلمان سره

مینه وه، او نه د هندو سره، د خپل مقصد او کټي د پاره ئې دوئ استعمالول، چې څه وخت په ۱۸۸۵ کښې کانګرس جوړ شو، او بیا د و ستو د سفارشتی ګوند په ځائے، د هند د آزادئ غورځنګ ځني جوړ یدو، نو دوئ اول سرکښې سر سید احمد خان ته پسې ګرم کړو، د هغه د مرګ نه پس د ده کالج شاګردانو دغه کار په غاړه واخیستو، چې د بنګال دتقسیم نه پس دوئ هم د پرنګي په لاربښوونه د مسلم لیګ په شکل کښې منظم شول، او د دوئ د منشور اولنے او اخري مقصد دغه ؤ، چې د کانګرس په مخالفت کوي او پرنګي ته به وفاداري کوي، نو د دوئ د ( start ) کولو چا بیانې واشرانے هند سره وې، چې څه وخت به ورته ضرورت شو نو دوئ به یې start کوله، چې څه وخت د پښتنو خوا پښتانه د باچا خان تر مشرکرئ د خدائی خدمتګارئ په شکل کښې منظم شول، او بیا د مشترکه مقصد د پاره د کانګرس سره یو ځائے ملګري شول، نو د کانګرس نه یو مکمل د آزادئ ګوند جوړ شو، نو ۱۹۳۰ نه پس د پرنګیانو د میز په دراز کښې دوه منصوبې وې:

۱- اوله دغه چې دوئ د دې بې اتفاقئ او نفرت په وجه هند کښې خپل حکومت ژوندا وږدولو، او هغه بله دغه وه چې که چیرې مونږه هند پرېښودو، او هغه یې داسې پرېښودو، (چې هغه د پښتنو متل چې، شیدې یې ورکړې

خو دیچوړکۍ ) نو پرنګیانو دغه دواړه منصوبې غبرګې
روانې کړې وې ، چې دوی به دې ته کله یوکښن نوم ورکوو
کله دبل ، خو دویم جنګ عظیم په دوران کښې ور ته پته
ولګیده چې دوی دجنګ په وجه ډېر کمزوري شول ، اوبیا د
جهانی مشرکړه ته امریکې په ځنه کړي وو ، نو دوی سوچ
وکړو چې دهند په ویش کښې به زموږه ځومره فائده وي .
او متحد کښې به څومره وي . د دې نه څوک هم انکار نشي
کولې ، چې تیل د شلمې پېړۍ داقتصادي ژوند دملا
هډوکۍ دی ، دغه اول ځل پرنګیانو محسوس کړي وو ،
چې څه وخت په ۱۸۹۰ کښې په باکو اذربائي جان کښې تیل
پنکاره شول ، نو دهغې ورځې نه دیورپ قومونو په ټوله
دنیا کښې تیلو پسې منډې شروع کړې ، چې روسو
پرنګیانو په ایراني تیلو باندې خیټه واچوله . اول جنګ عظیم
نه پس ئې دسلمانیه او موصول کردان ځکه د ترکې نه
پرې کړل ، چې دوی تیل لرل ، مصنوعي ملک عراق کښې شامل
کړل ، ملائشیا تل ، روستو کویټ ، سعودي عرب بحرین
تیل ور سره جمع شول ، چې داول جنګ عظیم سره که ټینک
و که لاری‌به او که ریل او دهوا یا او بو جهازونو بغیر دتیلو
نه بې کاره وو ، دفوج ټوله مشنري د تیلو مرهون منت وه ،
او داقتصاد دپاره یې هم اهم رول لوبولو . بلکه د تیلو په

زور هر څه روان وو، چې دوی د عربو د تیلو په خاطر اسرائیل ورته جوړ کړو، نو دوی خیال وکړو چې که هند متحده پاتې شي، نو اقتدار کانګرس او خدائی خدمتګارو ته په لاس ورځي، او د هند سرمایه دار هم ډېر بالغ خلک وو، دوی بمبه او کلکته کښې ډېرې پیسې ګټلی وې، نو دوی هم په دې پوزیشن کښې وو، چې هند په اقتصادي توګه مخ په وړاندې بوځي، او دوی مقابله د برطانیوي سرمایه دارو په مقابله کښې وو، د دوی زیات اکثریت د کانګرس ملاتړ کولو، بل اړخ ته د مسلمانانو سرمایه دارو، چې دوی هم د یوې داسې منډي په شکل وو، چې د هندوانو د مقابلې نه بغیر دوی په اسانۍ منډۍ باندې قبضه وکړي چې دغه منډي دوی ته د پاکستان په شکل کښې ښکاریده، او د پاکستاني تحریک مشر جناح په خپله د دې سرمایه دارې ډلې خپلوان وو، هغه بوره فرقې او خواجه، او اسماعلیه فرقې د بمبه سرمایه دارو چې روستو دوی د بمبه نه سره د جناح صاحب کراچۍ ته راغلل، نو مسلم لیګ پرګیانو د کانګرس د وهلو او د هند د تقسیمولو د پاره کال په کال تیارولو، او بهر دنیا ته به یې دغه تصور ورکولو چې دوی بې ګناه دي،

دغه د هندوستان، هندوانو او مسلمانانو ذهني ډېر پس مانده دي، که دوی نه وې نو دوی سره حلالوي.

پرنګیانو خیال وُ چې کانګرس یو قومي تحریک دے، که ټول هند ددوئ په لاس ورغئ، نو هند به ډېره زر ترقي وکړي اېتمي قوت به شي، دوئ به بیا موږ ته دامریکي په شان د دې منطقې دخوږو او ترخو نه وباسي، یعني امریکه هم اوله ددوئ کالونۍ وه، نو دوئ به بحرِ هند مشرق - اوسطیٰ، مرکزي ایشیا، مشرقِ بعید کښې داثرورسوخ خاوندان شي. او بحرِ هند تجارتي لاره به ددوئ په لاس ورشي دایران اوعربو تیل به د هند داجازت نه بغیر خوړلګران شي او بیا ۸۰٪ خام مالچې دافریقې نه یې موږ ته ورځي افریقه هند ته نږدې ده، نو دغه ته هم خطره پېښیدلے شي. او بیا به متحده هند دومره لوے ملک وي، چې زموږه خارجي سیاست ته به هیڅ اهمیت نه ورکوي، او لنډ وخت کښې ددوئ اندازه ۷۰ - ۱۹۶۵ پورې به هند اقتصادي اوفوجي سوپر پاورشي، نو هند به بیا ایشیا او افریقه کښې دغریبو او بې وسو ملکونو دپاره یوه پناه ګاه شي، اوچې څوک ځ زموږ نه تښتي. نو د هند جولۍ ته به غورځیږي، داځکه چې هند متحد پاتې شي، نوکاوندي ملکونو کښې هیڅ یو داسې ملک نه شته چې د هند مقابله وکړي، نو متحده هندوستان نه صرف د برطانیه دپاره خطرناک وُ، بلکې دامریکې دپاره هم وُ، داځکه چې دویم جنګ عظیم کښې ملکي امریکې اخستې

وه نو دوئ د مشرق اوسطیٰ د تیلو په خاطر، د ملایشیا، اندونیشیا، برونائ د تیلو په خاطر د هند په ویش کښې ډیات مفادات لیدل، با نسبت متحده هندوستان کښې.

په ویش کښې یې فایدې دغه وې، چې هند تقسیم شي نو اول خو به دغه تقسیم د نفرت په بنسټ وي یعنې هندو، او مسلمان دوئ به اقتصادي دواړه کمزوري وي، یو بل به د ډار په وجه کارخانه نه جوړوي، بلکې د ټوپک او کارتوسو په چکر کښې به وي نو دوئ به خپله کته په غیر پیداوري، سیکټر کښې لګوي، لکه فوج پولیس او د جنګ مشنري، او بل دوئ به په کور کښې سره اخته وي، مونږه مفاداتو ته په مشرق اوسطیٰ، مشرق بعید کښې به هیڅ خطره نه وي، دوئ چې څه کټې په کارتوس او ټوپک به یې خرچ کوي دغه به هم مونږ په خبرشو، او دا تقسیم به داسې وي چې د دوئ ټول عمر روغه ونه شي، دا ځکه چې هند دوئ ته معلوم ؤ، چې کوم کوم ځایونه مونږه مذب ن ب پرېښودو،

چې د دوئ به بیا په شلونو په بدګه وي، نو چې څه وخت دوئ پوه شول، چې نور په هند باندې حکومت نه شو کولے مسلم لیګ یې تقسیم ته تیار کړو، کانګرس کښې یې ځینې مشران لکه سردار پټېل دې ته اماده کړل چې هندوا فو په تقسیم کښې کټه ده، مسلمان د هند نه وباسئ چې سوچه هندوان پاتې شي، مسلمانانو به درته هره ورځ غوبل جوړ

کړې وي، دا اوس نه د هند اپریشن پکار دے، چې
قصه ړېر ستغه شوه نو پرنګیانو اعلان وکړو، چې موږ
هندوستان د هندو او مسلمان په بنیاد تقسیموو، خودغه
خو د پرنګي فیصله وه، کانګرس د دې مخالفت کولو ځکه
چې کانګرس تر ډېره حده پورې د دې په بدختیو پوه وو،
نو ځکه دوئ مخالفت کولو، چې ګاندهي جي یې په سرکښې
ؤ، مګر هندوان بیا هم هندوان وي، دوئ ته خپل مفادات
د خدائي خدمتګارو نه زیات ګران وو، د خدای خدمتګارو
پوزشن داسې ؤ چې د پرنګي په منطقي او بین الاقوامي
سیاست کښې دوئ نه ځائ کیدل، دوئ مذهباً مسلمانان
وو، په سیاسي توګه ضد ي پرنګي وو، او د کانګرس ملګري
وو، او د هند تقسیم په سیاست نه ؤ بلکې په مذهب وو،
نو د دوئ عجیبه پوزشن ؤ، چې نه یې د مسلم لیګ
طرفداري کوله شوه، چې دوئ ته پته وه چې دوئ
څوک دي، او نه یې د سیاسي مفاداتو د پاره مذهب بدله
ولے شي، چې ورته هندوان شوي وي، او بل دوئ د
هند قوم پرستی نه زیات پښتون قوم پرستا ؤ، د دوئ
په مذهب مسلم لیګ قبضه کړې وه، او سیاست باندې
کانګرس، د کانګرس او مسلم لیګ سره ورانه وه، یا په بله
معنیٰ، دوئ په سیاسي توګه کانګرس ته نږدې وو، او په

مذهبي تړوکه مسلم لیګ ته اوبل ددوی د صوبې جغرافیایي

پوزیشن داسې و چې د هند په اخري سرکښي وه، اودپرنګي

(scielific frenter) د دوی په څنګه وو، اوافغاني

دربې تولې ددوی په ملک کښې وے. چې پرنګیان د تقسیم نه

پس هم د دې سرحد نه لاس اخیستلوته تیار نه وو. نو دوی

هیڅ کله هم دې اهمه علاقه کښې پرنګي د بنیمنه دله خدای خدمتګار

نشو بر داشت کولے، دوی به هله دې ته تیار شوي وو.

چې کانګرس د هند د تقسیم نه صفا انکار کړے وے، مګر کانګرس

داسې و نه کړل. دخپل لنډو مقصد د پاره دوی د هند

تقسیم ومنلو، خدائی خدمتګارو سره یې په ټوکر غداري

وکړه، ترڅو پورې چې دوی ته ضرورت وو، ملګري

و، چې د دوی مفاد سرته ورسیدل، بیا یې خدائی خد-

متګارو ته شاه واړوله، دا څه نه وایم، بلکې څوبنن بابا

فخرافغان او د دوی د سنګر ملګري هم د دوی په دې بزدله

فیصله غمجن وو، نو دده دلاس لیکلې لیک ورانديکوم:

"لارډ موزنټ بیټن دلارډ دیول د برطرفۍ نه وروسته

د هندوستان ګورنر جنرل مقرر شو، د هندوستان د راتلونکي

حکومت د لیبر وزارت دے، دخپلو تولو مسایلو او خوا-

هشاتو نه خبرکړي وه، مسټراټلي هغه ته هدایت ورکړے

و، چې د ۳۰ جون ۱۹۴۸ ته حکومت بایدهندوستان ته اقتدار

ورکـړاے شي.»

یو بل ځاے لیکي: « مونږه ټپن ډېر ذهین او ځیرکسړے و، هغه به د خپلو ټولو هندوستاني ملګرو، د زړونو حال معلوملو، هغه چې ولیدل چې سردار پټیل د ده د نظرئي منلو ته تیار دے، نو ده په لاس راوړلو د پاره ې د خپل شخصیت او د لفریبه ټول طاقت په کار واچولو، په خپلو خبرو کښې به هغه سردار پټیل د غوز سره مشابه کولو، چې د هغه پوټکي کلکه دے، خو چې مات یې کړې نو د ننه چیغزی راوځي.»

د سردار پټیل د تسخیر نه وروستو هغه جواهرلال ته متوجه شو، اول سرکښې جواهرلال د تقسیم خبرو نه اوریدلو او عکس العمل به یې ډېر سخت و، لیکن مونټ بیټن ورپسې وو تردې چې ورو ورو د جواهرلال د مخالفت قوت هم مات شو.

څنګه چې دا حالت معلومیدل چې سردار پټیل سره جواهرلال نهرو هم د مونټ بیټن د دې منصوبې سره مني، نو زه ډېر زهیر شوم ولې چې مونږه د هند تقسیم نه، بلکه د مسلمان تقسیم ګڼلو ».

یو بل ځاے لیکي: « مولانا آزاد وایي: چې ما پدې ټولو مسلو ډېر غور وکه، ما سوچ وکړو چې ګاندهي جي دومره

زرخپله رائې څنګه بدله کړه، زما خيال دی چې سردار پټيل د اثر نتيجه ده سردار پټيل به ښکاره ويل، چې بې تقسيم نه بله چاره نشته، د تجربې نه ثابته شوه، چې مسلم ليګ سره يوځائ کار کول ممکن نه دي، کيدای شي سردار پټيل يوه بله خبره ته هم اهميت ورکړے وي، چې لاړه نوی مونږ بهتن ويل چې کانګرس د مرکزي حکومت په کمزورو ساتلو صرف د مسلم ليګ د اعتراض جواب ورکولو دپاره راضي شوي وو، او د دې په وجه صوبو ته ډيوره داخلي خودمختياره حق ورکړل شوے وُ، په يو داسې ملک چې هلته د ټولې مذهب او تهذيب دومره اختلاف وي، د مرکز کمزوري اتحاد د بنسمو نظريو ته قوت ورکوي، دليګ نه چې ځان جدا کړے شي، نو بيا ديو مضبوط مرکزي حکومت انتظام کيدای شي، او داسې قانون جوړيدے شي، چې هندوستان د متحده ساتلو دپاره فايده من وي مونږ بهتن مشوره ورکړه، چې په شمال مشرق او شمال مغرب کښې چې يو څو وړې ټوکړې مسلم ليګ له ورکړے شي، نو د باقي هندوستان به يو مضبوط او مستحکم رياست جوړ کړے شي، په سردار پټيل باندې د دې دليل زيات اثر وشو، چې د مسلم ليګ سره د اتحاد په وجه به هندوستان اتحاد او استحکام په خطر کښې پريوځي، زما خيال دا دے چې يو اځې سردار پټيل نه بلکې، په جواهر لال نهرو هم د دے دليل اثر شوے وُ، د غه دليلونه چې سردار پټيل او مونږ بهتن

دوباره وویل، نو دتقسیم په مخالفت کښې دکانګرس غوښتنې په نظر بیر
کښې هم کمزورې راغله ». ۱

هدغسې مخکښې لیکي: « په دوئ کښې بعضې انګریزپرست
هندوان هم وو، چې د پرنګیانو او لیګیانو په اشاره ګرځیدل، او دا
مطالبه کوله چې خدائي خدمتګار وحکومتا دې لیرې کړې شي.
او صوبه کښې دې ګورنر راج قائم شي، په دې نه پوهیدل چې
داټوله قیصه چا جوړه کړې وه. دا خو ګورنر جوړه کړې وه،
خو چې څه وخت دلاړ لوئ مونټ بیټن او دکانګرس مشرانو
په منځ کښې زموږ په سر سودا وشوه، سودا په دې وشوه،
چې لارډ مونټ بیټن ورته وویل چې پنجاب، بنګال به زه درته
تقسیم کړم، خو تاسې ددې په بدل کښې صوبه سرحد پرینږدئ
او ریفرنډم ومنئ، بیا یې په دریم جون ۱۹۴۷ دهندوستان د
تقسیم علان وکړ، او ویې هم وویل، چې په سرحد کښې به
د خلکو نه تپوس کیږي، نو تاسو خو ددې پرنګي دې ظلم
او بې انصافۍ ته وګورئ، چې پنجاب تقسیمږي، بنګال تقسیمږي
هلته دخلکو نه تپوس نه کیږي، بلکې دا سمبلۍ نه کیږي
او دلته زموږ په صوبه کښې داسمبلۍ نه څوک تپوس نه کوي».

بل ځائے لیکي: زه هم ډهلي کښې وم، هلته ما دوئ
ولیدل او ثمین جان خان ته وویل: چې یه هلکه دا پاکستان
چې جوړ وي، نو لږ فکر خو وکړئ، چې دې کښې به پښتون

څه حال وي، اکثریت خو دپنجاب دے، نواقتدار به هم دپنجاب وي؟ نو ده راته وویل، چې اوس یې جوړو، که بیا یکښې، زموږ خیر نه وو انو بیا به یې وران کړو، افسوس دے چې ثمین جان خان اوس شته کنې ما به ترې تپوس کړے وے، چې راشه وګوره چې پاکستان کښې دپښتنو څه حال دے؟

باچاخان دکانګرس او مونټ بیټن سازش، ترعنوان لاندې داسې لیکي: ,, زه یې ټکي په ټکي لیکم:

,, اصله خبره داده چې دالویه واقعه چې څنګه وشوه همدغسې کیدونکې وه، ولې چې ددې دپاره دپخوانه تیار شوے ؤ، هغه وخت چې مونټ بیټن د تقسیم داعلان نه مخکښې د سرحد په دوره راغلے ؤ، په سرحد کښې دفعه (۱٤٤) لګیدلې وه، او په جلسو پابندي وه، د صوبه سرحد ګورنر سراولف کیرو چې زموږ سخت مخالف ؤ، او د مسلم لیګ لوئے حامي ؤ، هغه په لارډ مونټ بیټن داثر اچولو دپاره د سرحدي قبائیلو نه په ډیر زیات شمیر کښې د پولیټکل ایجنټ ټولوخیلو ملکانو په ذریعه خلک راجمع کړل، او لارډ مونټ بیټن ته یې یوه لویه تماشه جوړه کړه، او دتللو په وخت کښې یې لارډ مونټ بیټن ته داوویل: چې دې د پښتنو له داسې سزا ورکول پکار ده چې د دوئ بچي یې یاد ولري. ولې چې په هندوستان کښې لس کروړه مسلمانان وو، هغوئ زموږ مخالفت ونه کړو، اودوئ

زموږ مخالفت کښې دکانګرس سره ملګرې شول . لارډ مونټ
بېټن دا ټولې خبرې په زړه کښې واچولې ، او د هلې نه روان
شو ، هلته خو پټېل د هند تقسیم غوښتو او ده دا غوښتل چې
پښتنو ته سزا ورکړي او د مسلم لیګ په حواله یې کړي ، د
دې دواړو اتفاق په دې وشو چې کانګرس غوښتل چې بنګال
او پنجاب دې تقسیم شي ، او لارډ مونټ بېټن غوښتل چې سرحد
کښې دې ریفرنډم وشي ، نو لارډ مونټ بېټن دوئ ته داوویل
چې زه ستاسو دا خبره منم چې ، بنګال او پنجاب به درته تقسیم
کړم خو د دې په بدله کښې تاسې زما داومنئ چې په صوبه سرحد
کښې دې ریفرنډم وشي . نو کانګرس په صوبه سرحد کښې ریفرنډم
او مونټ بېټن ورته پنجاب او بنګال تقسیم کړل ، او د دوئ ،
دواړو سودا زموږ په سر وشوه ، موږ خدائي خدمتګارو
ډېره خواري وکړه چې هندو او مسلمان سره مينه دې شي
او زه که په کور کښې وم که صوبه سرحد کښې وم که په هندوستان
کښې ما د دې دپاره ډېر کوشش کړے دے ، چې هندو او
مسلمان ترمنځه مينه ، محبت ، اتحاد او اتفاق پيدا کړم ، او نفرت
او دښمني ترې لرې کړم ، داکار تر ډېره حده پورې وشو ،
مګر د تقسیم نه پس تاسې وګورئ چې اوس څه حال دے؟ هغه
موږ چې څه کړي وو ، هغه په سيند لاهو کړے شو ، په
پاکستان کښې به هندوانو او سکهانو څه تېر شول ، او په هندوستان

کښې په مسلمانانو څه تیریږي؟ داسې نفرت او داسې نفاق پیداشو، چې داصلاح اُمید یې هم له منځه لاړو، او ډیرې لانجې تریې راپیدا شوې.»

د کانګرس مشرانو باندې د لارډ مونټ بیټن نه زیات دلیډي بیګم مونټ بیټن ډیر اثر شوے وُ. داځکه چې دغه ښځه ډیره چالاکه وه، اوبل دهندوانو sub conscious کښې دپرنګیانو دبرترۍ او ثقافتي غلامۍ اثرات وُ، او بل جواهر لال نهرو د ډیر وخت نه کونډ وُ، چې دغه پرنګۍ ورته دې شوه نو دثقافتي غلامۍ وهلے نهرو په وارخطاشو

لارډ مونټ بیټن ددې په ذریعه دکانګرس مشران راضي کړل، او خدائي خدمتګار یې ځینې هیرکړل، دلیډي مونټ بیټن او نهرو دمینې او محبت خبرې روانې وې،

دې ښځې دخپل خاوند دپاره دهندوستان دګورنر-جنرالي نوکرۍ کړه کړه، او دوئ ته یې نیم بنګال، نیم پنجاب، کشمیر، جوناګړ حیدرآباد دکن او ضلع ګوردا-سپور ورکړه، او دوئ یعنې کانګرس خدائي خدمتګار، پرنګیانو او مسلم لیګیانو ته حواله کړل، نو دخدائي خدمت ګارو په سر ډیل سودا او یا درې اړخه سودا وشوه، کانګرس بنګال پنجاب واخیستو، لارډ مونټ بیټن ددوئ په سر د هندوستان ګورنر جنرال شو، او پرنګۍ ګورنر الیف کیدو،

د دوئ په تکولو گورنخوشحال شو ، مسلم لیگ په مزو کښې، کانگرس په مزو کښې ، لار، مونږ او الفاکیرو په مزو کښې. دخدائے خدمتگارو په سر خاورې، داځکه چې دوئ، د هندو او مسلمان ورور ولي جوړوله ، چې ددې خلاف پرنگي ټول عمر کار کړے ؤ ، او بل داچې پښتون اول کښې د پرنگي مخالف ؤ ، او دټکا په وخت هم ، هندوانو اول سرکښې ددوئ خدمت کړے ؤ. انعام یې واخیستو د هندو- اچهوت ذات نه مسلمان شوي مسلم لیګیانو په اخر کښې خپل انعام واخیستو، نو مونږ ته به یې ولې سزا نه راکوله د پرنگي نه کله نه شته ، هغه خو دښمن ؤ مگر کانگرس چې کوم ظلم وکړ ، ددې دپاره هیڅ دمعافۍ گنجایش نه شته .

دپرنگي نه خو ځکه گله نه شته ، چې پښتون هغه قوم دے ، چې ټول هندوستان دپرنگي بوټ پالش کول مونږه ورسره جنگونه کول ، ۱۸٤۲ کښې افغانستان کښې ددوئ تباهي دمیکناټن مرگ ، کیوناري مرگ او نور داسې ډېر پرنگیانو ددوئ دلاسه ژوبل شوي دي ، نو دغه ۱ برنگیانو څرنګي دیادو وتل او اخري پرنگی ، په وزیرستان کښې داسې حالاتو کښې مړ شو چې پولیټکل ایجنټ         ار وغه کښې جرگه راغوښتې وه ، چې محسود

نه رخصت واخلي، او یو ځوان محسود په دې جرګه کښې ناست وُ، چې پرنګي وویل: چې نه آخري پرنګے یم، بس موږ روان یو، نو دې ځوان دچانه تپوس وکړ چې بس نور پرنګیان ځي، دغه آخري دے، هغه ځواب ورکړو چې هو! ده ورته ټوپک سم کړو، پرنګے یې دستیج د پاسه مړ کړو، او ویې ویل چې زما پلار دوئ شهید کړے دے، خپل بدل مې واخیستو، لندن ته بیا څوک پسې تللے شي، دغه دکتاب میږدرګ ټ به انګریزي، سرېږه کښې یې ډاکټر سید اکبر لیکلي دي:

" The last British political agent, Mr. Duncan, was killed during a tribal assembly (Jirga) at the Sararogha Scouts Fort by a young Mahsud whose father had last his life fighting the British. He had been advised that if he wished to take revenge, the primary law of the Pakhtun Code, he had best get on with it and kill Mr. Duncan, for soon there would no Englishman left and London was a long way from Waziristan".

ترجمه: د برتش اخري پولیټیکل ایجنټ جناب مسټر ډنکن یو ځوان او ځلمي محسود د سرارو غه په مقام هغه وخت قتل کړو، چې قبایلي جرګه راغونډه شوې وه، داځکه چې دده پلار د پرنګیانو سره په جنګ کښې ژوند دلاسه ورکړے وُ، ده ته لار ښودنه شوې وه، چې که چیرې یې دپلار بدل اخلي، اوس او دغه یې ښه موقع ده، مسټر ډنکن اخیري پرنګے دے، اوس یې قتل کړه، بیا به بل پرنګے نه وي.

بدل اخیستل د پښتونولۍ ښستېي قانون دے۔ هم دغسې
د پېغور نه خلاصدے شي» ،

چې د چا قوم دغه نمونه کارونه د پرنګیانو سره کوي، نو دغه
څه د حیرانتیا خبره نه ده، چې پرنګیانو څومره سره وکړل
او پښتانه یې د سپینو نه تورو پرنګیانو ته وسپارل او،
پاکستاني تر نګرکښې تر ننه ورځې پورې لتې وهي، هم دغه
شان پرنګیانو بدل واخیستو، خود باچاخان زیاته ګله د
کانګرس نه ده دے دکانګرس بې وفائي تر عنوان لاندې
داسې لیکي:
«کانګرس خو د پرنګیانو سره د شپیتوکالو داسې د۔
آزادۍ اخیستلو دپاره په جدو جهد لګیاؤ، خوانګریزانو
ورته پوره آزادي څه چې ینګرېي آزادي هم نه ورکوله
مګر کله چې پښتانه ورسره په دغه جنګ کښې ملګري شول.
او پښتنو قیصه خواني، ټکر، اتمانزو، کوهاټ، هاتي۔
خیلو او میروېس کښې قرباني ورکړې، او دغه شان،
زموږ قبایلي علاقې غیرتي پښتنو سره د هندوستان،
د آزادۍ په لاره کښې غزا کانې وکړې۔
د انګریزانو توپونو او ټینکونو ته یې خپلې سینې،

وال کړے ، او د دوئ مخې ته لکه غرو دریدل، نوانګریزانو
هله د هندوستان آزادیه ته غاړه کښېنوده ، مونږ خو دکانګرس
سره په دې وعده دآزادیه په جنګ کښې ملګري شوي
وو، چې وطن به په ګډه ازادوو ، او د پردیه غلامیه نه
به ځانونه خلاصوو ، مګر چې وخت راغلئ ، بیا مونږ سره
د شوو وعدو هیڅ خیال ونه ساتلے شو ، زمونږ نه زمونږ
د مستقبل په هکله هیڅ پوښتنه ونه شوه ، بلکې دپاکستان
او هندوستان دیو ځائے کیدو ، ریفرنډم راباندې ، په
زور راوتپلے شو ، او زمونږ په سر دغه لویه سودا وشوه .
قربانۍ مونږه وکړې، وینې زمونږ توئ شوې، مالونه
جایدادونه ، زمونږ تباه شول ، اوکله یې نوروته ورسیدې
دکانګرس مشرانو خو به په ټولو معاملو کښې زمانه تپوس
کولو، زما د سلا او مشورې نه بغیر به یې هیڅ نه کول،
مګر په دې لویه او همه مسئله کښې زما سره مشوره څه چې
خبرهم نه کړے شوم ، زما په دې خبره خپګان دے چې
کانګرس ورکنګ کیمټي هم زمونږ سره . امداد او همدردے
ښکاره نه کړه ، دوئ مونږ له پښنو ، لاسونه وتړلو
مسلم لیګ ته یې حواله کړو، مونږ خو دمسلم لیګ نه
الیکشن ګټلے و ، نو بیا بل الیکشن ته څه ضرورت وګه چا
زمونږ سره نوے ریفرنډم کولے ، نو په کار وو چې زمونږ

په مطالبه يې د پاکستان او پښتونستان په سوال کړے واې دريفرنډم خو په پاکستان او هندوستان وُ ، او موږ د کانګرس د بې وفايي په وجه د هندوستان سره نه تلو نو ځکه مو په دې ريفرنډم کښې شريکيدل نه غوښتل او بائيکاټ مو ورسره وکړو ، موږ ته به پرتګيانو ويل ، چې د کانګرس ملګرتيا پوې بر دئ ، نو موږ چې هندوستان نه څه ورکو د هغوئ نه به زيات تاسې له درکړو ، ليکن موږ کانګرس پرې نه ښودو ، خو دوئ موږ پريښودو ، دومره افسوس خبره خو داده چې موږ دوئ سره څه وکړل او دوئ راسره څه وکړل ، د سردار پټيل او راجه ګوپال اچاريه نه خو زما ګله نشته ، زما ګله د جواهرلال نهرو او ګاندهي جي نه کيږي ، چې هغوئ هم په دې معامله کښې ورسره اتفاق وکړو ، د کانګراس ليډرانو ويل ، چې اوس داسې حالات پيدا شوي دي ، چې بله لار نه شته نو زه وايم چې دا حالات چې راپيدا کړل ؟ دا حالات خو دوئ ، را پيدا کړل ، که دوئ هندوستان تقسيم کړے نه وائ ، نو د هندوستان او هندو مسلمانان دا دومره تباهي او برباد ي به نه وے شوے . څه چې وشول هغه وشول . او د مولانا آزاد خبره څه چې مې وليدل دا يو خوب وُ ، خو زه وايم چې دا يو سانحه وُ ، دا يوه بې وفايي وه دا يوه غداري وه چې زموږ سره وشوه .

# حاجي ميرزا علي خــان

## (فقير آف ايپي)

دحاجي صاحب متعلق ښاغلي ګل ايوب خان سيفي په خپل کتاب «بنوں او وزيرستان تاريخ» کښې داسې ليکي: «حاجي ميرزا علي خان د توچي په يوا يپي کلي کښې پيدا شوي وُ، دحاجي ميرزا علي خان دپلار نوم ارسلا خان دے، دے بنوں ته ديو چاتړی (جماعت طالب علم) په حيث راغی دے نور ږو مولوئ صاحب مولوی ګل خوا ئېداد بازار احمد خان او داسې نور ونځايونو کښې يې سبق ووئيلو، حاجي صاحب د دوږو عالمانو نه هم سبق وئيلي دي، حاجي صاحب ته په بنوکښې يو عالم د خدائ په نوم لور هم ورکړه، حاجي صاحب په دې وخت عالم شوے وُ، د دې واقعې نه يې ځان نه شو پاتې کولے.

**نوټ:** د واقعې نه د ګل سيفي مطلب د اسلام بي بي مسله ده چې يوه هندوه پيغله په يوه بنوچي ځلمي مينه وه او بيا يې اسلام قبول کړے وُ، په دې باندې پرجنګونه

وشول، او دغه جینه داسلام بي بي په نوم مشوره شوه)
دې بنوڅو په ټولو جلسو کښې حاجي صاحب شرکت
کړے ؤ، هغه مجبور شو، او دوړو ته لاړو، او هلته نه
یې جهاد کولو، اراده وکړه، فرنګي هم دې حاجي صاحب له
ارادې نه خبر شو، دې بنوڅو او دېا دوړو عالمانو یو
وفد پولیټکل ایجنټ شمالي وزیرستان ته لاړو، او ورته
یې وویل، چې مونږ حاجي صاحب منع کوو، ته په ایپي
لښکر کشي مه کوه، پولیټکل ایجنټ ورته وویل، چې زه خو
لښکر کشي خا مخواکوم، ولې چې دوړ ډېر مست شوي دي،
چې کلکته کښې چیر ته د وه مسلمانا ن او هندوان سره معامله
شي نو دې هندوستان په ټولو مسلمانانو کښې قراره قرار ي
وي، خو دوړ راپاسي ډولونه راواخلي، او له حکومت سره
جګړه جوړه کړي، زه د دوړو نشه ماتوم، چې اینده
دوړ داسې قدم اوچت نه کړي، چې برطانیه حکومت
ته د تکلیف باعث وي، د ی سوکړو قاضي حبیب الرحمن رحه
ځواب کښې وویل، چې صاحب! تاته انتقامي قدم، اخیستل
نه دے پکار، د حکومت رویه دې شفیق استاد په
شان پکار ده، پرنګي پولیټکل ایجنټ په دې خبره راضي
شو، او ورته یې وویل، چې تاسو زماله طرفه
حاجي صاحب ته ورشي، او ورته ووایي، چې زه په

په ایپي لښکر کښي نه کوم . لیکن فقیر صاحب دې له ایپي
نه بهرخیسور ته دروﻣي، اوکه چیرې له ایپي نه بهر
نه وتلو، نو زه به په لښکرکښې کولو مجبوریم .

دبنو او د دوړو عالمان راغلل، په عیدګ کلي، ـ
(دوړوکښي) د میرزا علي خان سره ملاقات وکړو، حاجي
صاحب ورته وویل: چې ما ته ښه پته ده چې د پرنګي
حکومت سره جهاد کولو باندې له پیرنګي حکومت نشم اخیستے
زما وسائل ډیرمحدود دي، لیکن زما پرنګي سره د جنګ کولو
مدعا داده، چې اسلام بي.بي په شان واقعي نه په هندوستاني
مسلمانان کم ازکم تر شلو کالو پورې بچ پاتې شي، او
ورته صفايې وویل: چې له ایپي نه بهر ځم او له پرنګي سره
جهاد کوم .

اول جنګ نیساتي کښې وشو، دویم جنګ خیسور کښې
وشو، د غه شان د حاجي صاحب او پرنګیانو تر منځ یولوئ
جنګ شروع شو، صیفي صاحب په دې کتاب کښې تر دې حده
پورې لیکلي دي .

یو بل لیکوال ښاغلي عبدالحمید ترین چې دوئ په ـ
فقیر ایپي باندې په اردو ژبه کښې کتاب لیکلے دے، او
مئ ۱۹۸٤ کښې د تاج کمپنۍ لیمټډ کراچۍ نه خورشوے
دے، داسې لیکلي دي :

درویش مجاهد ، حاجي میرزا علي خان، فقیرایپي

آپ کا نام مرزا علي خان هے، اور عرف عام میں حاجي صاحب آپ کے نام کے ساتھ میرزا کے لفظ کے معنی وزیرستان کی ازهری زبان میں بھائي کے هیں، بھائی ایپي نام انگریزون کے خلاف جهاد کے زمانے میں ایپي گاوں کی نسبت سے پڑگیاتھا جهاں آپ ۱۹۳۶ء تک رهائش رکھتے تھے جو میرعلی کیمپ - (شمالي وزیرستان کے قریب واقع هے، اپ ۱۸۹۷ میں کھجوری پوسٹ کے قریب شنگائي گھاٹی ایک چھوٹے سے گاوں میں ایک متقی عالم دین ارسلاخان کے گھر میں پیدا هوئے آپ کا تعلق شمالي وزیرستان کی طوری خیل وزیرو کی شاخ هبتی مدی خیل سے تھا۔

مولا ارسلاخان مولوی گلاب دین سرکی خیل وزیر کے دست راست تھے، اپ ۱۹۳۱ میں انگریزو کے خلاف جهاد میں شریک هوئے تھے۔

اپ کے دو بڑے بیٹے گل زار علي او میر زمان اِس جهاد میں شهید هوئے تھے ، جب کے مرزا علی جلال آباد میں تھے مگر قوم کے جهاد کی قربانیوں سے کافی متاثر تھے فقیرایپي امن پسند عالم دین تھے ، اپ نے ۱۹۲۸ میں پهلا فریضه حج اداکیا، اور دوسری مرتبه بھی سعادت، حاصل کی، آپ علمائے دین کی ملاقاتوں کو جاتے اورصوفیائے

اکرام کی زیارتوں میں مشغول رہتے آپ نے سید حسین
نقیب صاحب جلال اباد چار باغ کے دست مبارک پر سلسلہ،
قادریہ میں بیعت کی، اور خرقہ خلافت حاصل کیا، وطن
واپسی سے قبل اپ نے قاضی حیات الدین صاحب (عرف شیرزاد)
کی صاحبزادی سے نکاح کیا، جو تحریک خلافت کے دوران،
فاطمہ خیل کلدن ضلع بنوں سے افغانستان ھجرت فرما گئے تھے
لیکن حاجی صاحب لاولد رہے، اپ نے اپنی گاوں میں خاموش
مذھبی طرز کے زندگی اختیار کی اور روحانیت کی پختگی میں
لگے رھے، اور خود کو نمایان نہیں کیا، اپ کی دعا میں اثر تھا
وزیر، دوڑ اور دیگر قوموں میں کافی ھر دلعزیز تھے، آپ
نے کبھی سیاسی پارٹی مین یا تحریک میں حصہ نہی لیا، حتیٰ
کہ خان عبدالغفار خان کی تحریک ""خدائی خدمتگار"" میں
شریک نہ ھوئے تھے، فقیر صاحب چھوٹے قد کے دُبلے پتلے
انسان تھے غاروں میں کافی عرصہ گذارنے کے سبب دمہ کی
شکایت ھوگئی تھے. اخر عمر میں اپ معذور ھوگئے تھے، چنانچہ
لوگ آپ کو چارپائی، پر اٹھا کر ایک جگہ سے دوسری جگہ لے جاتے
فقیر صاحب کا دل روشن تھا. اور آنکھوں میں گہرائی تھی، آپ کو
خطرے کا پیشتر احساس ھو جاتا تھا. جہاں بھی قیام کرتے
تیز رفتار گھوڑے موجود رھتے کبھی یو ھوتا کہ آپ آدھی
رات کو حکم دیتے، کہ یہاں سے نکل چلو، راستے میں اطلاع ملتی

کہ پیچھے انگریزوں نے گولہ باری شروع کردی،
چونکہ یہ ایک مذہبی جنگ تھی، اسلام بی بی کے بارے میں صوبہ سرحد کے سب مسلمان ناراض تھے۔ خاصکر بنوں کوھاٹ اور ڈیرہ اسماعیل خان کے مسلمان، لھذا فقیر ایپی کے پاس ھر طرف سے مجاھد بھی انا شروع ھوئے، او مالی امداد بھی پنچے لگی، شمالی اور جنوبی وزیرستان، اور صوبہ سرحد کے دوسری ضلعوں سے لوگ زکواۃ قربانی کے چمڑی اور دیگر چندے جمع کر کے فقیر صاحب کے لنگر کے لئے بھیجا کرتے، درج ذیل علماء نے ... مذھب اسلام کے نام پر مذھبی جدوجھد فقیر صاحب کی امداد کی نقیب صاحب، جلال آباد افغانستان، سید نسیم شاہ اف لنڈائے، سپین گل فقیر اف شوہ، سکی نقیر محمد خان دین فقر بھٹنی، شہزاد فضل دین محسود، (پسر مولا پوندہ مرحوم) مُلاشیرعلی محسود، مولوی وارث شاہ منظر خیل، جب فقیر صاحب کا لنگر پوری طرح قائم ھوگیا، اور چندے انے شروع ھوگی تو صوبہ سرحد کے لوگ، بنوچی خٹک وغیرہ، اور افغانستان کے کچھ زدران اوتنی بھی انے شروع ھوگئے اور جھاد میں حصہ لینے لگے، وزیرستان میں ھر جگہ انگریزو کے خلاف آگ لگ گئ، مجاھدین کیلئے دوڑ قوم کے کھانے ھر وقت تیار رھتے جو گاوں می چھپے رھتے اور وھاں سے نکل کر سڑک پر وار رات کر کے واپس، گاوں کے لوگ بھی حملے میں مل جاتے تھے۔ سڑک کے

ھر دو طرف ٹین کے ڈبوں میں مصنوعی بم دبا دیئے جاتے جن سے فوجی کا نسوانی کا نقصان ھوتا، فقیرصاحب نے وزیرستان کے تمام قبائیل وزیر، محسود، دوڑ اوربھٹنی میں اتحاد قایم کیا، جوقتل مقاتلے کے سبب ھسشہ آپس میں سروپیکار رھتے تھے یہ بھی قدرت کا ایک معجزہ تھا، چنانچہ جب دسمبر۱۹۳۶ میں طوری خیل وزیر و کے اِرُ بلا کیڈ کی گئی تو محسودوں نے ان کو اپنے، علاقے میں پناہ دی، سمت جنوب کے افغان قبائیل بھی جہاد میں فقیر صاحب کے ساتھ شریک ھوگئے، آپ نے ۲۲ تاریخ ماہ صفر کو جہاد کی بعیت شروع بمقام نطاسی ( AMBUSH ) وادی ٹوچی کی پار شروع کی، آپ ابھی جہاد کے تیاری کرد ھے تھے کہ انگریزوں نے پیش قدمی شروع کردی۔

۶ رمضان المبارک کو تلیکان قبرستان کے پاس، شدید جنگ ھوئی، اِس موقعے پر قبائیلی لشکر نے پتھر کی گولیا اپنی رائفلوں میں استعمال کیں، جو فوجی زخمیوں کے بدن سے نکالی گئیں، اور فوج کا کافی جانی نقصان ھوا، اور فوج کا اسلحہ اور سامان طوری خیل کے مجاھدین کے ھاتھ ایا، فقیرایپی نے ایک مجلس شوریٰ قایم کی، جس کے سامنے تمام منصوبے او ضروری مسائل پیش ھوتے، اور گرما گرم بحث ھوتیں، صرف اھم مسائل فقیرصاحب کو پیش کئے،

جاتے آپ مختصر الفاظ میں اپنا فیصلہ سنا دیتے، جس
پر سب عمل کرتے تھے۔

فقیر ایپي صاحب یو سنجیده طبیعت خاوند ؤ،
ډیر کم به یې خندل، او ډیر لږ به غصه کېده، پدې
کښې قدرتي جوهر ؤ، مگر دغه هغه وخت ښکاره شول
چې څه وخت د اسلام بي بي واقعه(۳۶-۱۹۳۵) او په-
لاهور کښې، د سکهانو د لاسه مسجد گنجي د پرنگیانو په
اشاره شهید کړاے شو، حاجي صاحب دغه یو قیمتي
موقع وګڼله، د پرنګیانو خلاف یې علان جهاد
وکړو، او پرنګیانو باندې یې تور ولګولو، چې دوی
مداخلت فی الدین وکړو، نو ده چې څه وخت
علان جهاد کولو، پدې وخت کښې دے په یوه سپینه
آسپه سور ؤ، د ملک اژدر په مقام یې دغه علان وکړو،
بیا روستو ده د فوجي مهماتو د پاره څینی جرنیلان مقرر
کړل، چې دوی به د پرنګي خلاف عملیات کول. هغه
جرنیلان دغه وو:

خلیفه شیرعلي خان محسود، خونیا خیل محسود،
خلیفه دین فقر بهټني، خلیفه مهردل، ختک، خلیفه
گل نواز، غازي مرجان طوري خیل وزیر، جنرل مشک عالم
خان او دغسې نور۔

په ۳۷ - ۱۹۳۶ کښې وزیرستان کښې د

# فقیر صاحب

خلاف په آپریشن باندې د میجر جنرل جے جی ایلیټ تبصره

په وزیرستان کښې پوره دولس میاشتې جنګ صرف دیو سړي خلاف و، چې هغه فقیر ایپي و، که په ده باندې یو بم پریوتے وے نو جنګ به فوراً ختم شوے وے، د ده مثال د غسرځنې سړکل په شان و، چې فوج د ده په تلاش کښې سرګردانه وو، او د ده اندازه لګول مشکل دي، محسود، وزیر بهټني نه علاوه، د سرحد هغې غاړې ټول قبائیل د ده مریدان دي، ټول وزیرستان د سپین وام نه وا خله تروانا پورې دغه ټوله علاقه د ده میدان جنګ و - چې یو ځائې کښې به آمن شو نو بل ځاے به مات شو، د حکومت د پاره د دې ذمه واري، یقین کول مشکل وو، د شام علاقه چې د وزیرطوري خیلو علاقه ده، مګر زیات جنګ د شکتو نه اخوا محسودو وکړو، او بیا د خوست قبائیل وو، د ده د جنګ بهترینه طریقه دغه وه چې دے موقعې شناس و، او په پخه اراده او جمع زړه به یې منصوبه سرته رسوله، او کوشش یې و، چې د برطانیه۔

حکومت دپاره زیات نه زیاته سر دردي جوړه کړي، او داسې په یوځای دفوج سره مقابله ندے راغلے، لکه څنګښې چنګونو کښې، یعنې ۲۰-۱۹۱۹ اُپریشن راغلي و ے.

## جنرل هولسورته دفقیر صاحب متعلق لیکي:

«فقیر صاحب د خپل لښکر پخپله جرنیل و،او د دوی تنظیم یې ډېر په مهارت سره کولو، ده په قبائیلو باندې زکوٰة لګولے و. او د نړۍ زمانې توپے سره جوړې کړی، او د لښکر کتنه به ده پخپله کوله چې څه وخت به لښکر جمع شو، نو دوی به دلسو ورځو خوراک دځانو سره اخیستو چې خوراک به خلاص شو، نو لښکر به د نوی خوراک دپاره خور شو. د فوجي نقطه نظره دوی لښکر په ډېر لږ وخت کښې میدان جنګ ته تیار ولے شو ۱۹۳۷ کښې ۳۰ زره فوج د فقیر صاحب د مقابلې دپاره سرپیکار و، مګر بیا هم فوج ته څه خاص کامیابی حاصله نه شوه فقیر صاحب پخپله دکاب په بیان د فوج دلاسه وتو». حواله:

« The PATHAN Border Land »

دپرنګیانو په پښتنو باندې دظلمونه څه حدنه وو، دوی لاندې خدائ خدمتګار وهل ټکول دغرو پښتنانه د دوی د هوائی او زمیني اسلحو کباب وو، هم دغسې دفقیر صاحب یوخلیفه مهردل یوه واقع بیانوي: « چې ۱۹۳٦ کښې

خیسوړ کښې انګریزانو په هوایي جهازونو په ذریعه په -
وحشیانه طریقه ځوموږ کورونه ورانول، نوموږ مجبور شو
چې (سمتسه) په غرونو کښې غارونه کښې پناه واخلو، نو د حضرت
خواجه د انیال غرونو کښې پناه واخیسته، مګر د دې پناه ګاه
د رک ٔ انګریزانو ته ولګیده نو په بې خبرۍ کښې یې پرموږ
باندې بمباري شروع کړه، سرې، ښځې او ماشومان ټول د
بمبارۍ ن د کښې راغلل، یو شور د ژړا جوړ شو، دا سې
پوه شو ٔ چې ځمکه باندې یو زلزله راغله، پښتنې ښځې سرې
او بلې پښې د اوسو ٔ په څیر د بمونو منډې وهلې، او دوی ډېرې
د بمونو خوراک ٔ شوې او شهیدانې شوې، نو ځما د زړه نه یو لوخړه
یعنې لوګی ٔ پورته شو چې ما د ماشومانو دوجود ټکړې ولیدے نو
بدحال هې شو زه د یو غر په پټه کونجه کښې ناست وم د -
مشین ګن په لندے ها شه باندې ګوته نیولې وه چې د دې انتظار
کښې وم چې هوائي جهاز دا سې موقع ته برابر کړم چې ناکاره
یې کړم،

په دا سې حالاتو کښې څه وینم چې زما نه لرې درې واړه
ماشومان چې د دوی عمر به د څلورو کالو نه زیات نه و ٔ، د ځان
خوندي کولو د پاره منډې وهي او درې واړه د یو بل لاسونه
نیولي دي، منډې یې وهلې خو چې څه وخت به جهاز په
دوی د کولی ٔ چلولو د پاره ګوته وهله نو دوی به فوراً څملاستل

چې جهاز به پورته شو، نو دوئ به بیا جګ شول. منډه به یې شروع کړه. ما دوئ لیدل چې درې ځله جهاز په غوټه وکړه، هر ځل دوئ ځنې خملاسل. اخیرکار په دې طریقه دغه درې واړه ماشومان ما ته راورسیدل، د دوئ ویریله ونکي حالاتو په وجه ما ګلک کلک ونیول. مګر د دوئ د فوجي منظم توب ته زه ډیر متاثره شوم او ورته حق حیران وم، ما دوئ په اوږې واخیستل، د لیونو پرشان مې په زوره زوره وخندل، او چغه مې کړه چې دغه د راتلونکي وخت غازیان دي. دا ځکه چې قدرت دوئ ته دومره ماشوموالي کښې دغه تربیت ورکړے دے».

دغه یو مثال و، د پښتنو غرونه د چترال نه تر بولان پورې د داسې مثالونو نه ډک دي، مګر خداې پاک د محسودو او وزیرو، د ماشومانو او سړتورو بدل ورځنې واخیستو په ۱۹۳۹ کښې د دوئ ماشومان د هټلر د جهازو او بمو ښکار شول.

د دوئ ماشومان د هټلر د جهازو او بمو ښکار شول چې په لندن کښې یې چغار جوړ کړے و، د شاهور تنګي تباهي جنوبي وزیرستان د پرنګي فوجي تاریخ کښې د جور د کابل میوند، وانا د تباهۍ نه کمه نه وه، دغه یوه تنګه دره ده چې قبایل محسود ورته ډیر په چالاکۍ سره مورچې نیولې وې داسې ځائونه پټ کړي وو، چې د هوائي جهازو د پاره مشکله وه چې دوئ جاوت کړي، د محسودو د لښکر دغه ډیر کامیاب شب خون و، چې څه وخت

فوجي کانوا ئي ، ددې ته ور داخله شوې وه ، چې ARMED کار
هم پکښې و ، محسودو یکدم حمله په وکړه ، چې دې جنګ کښې
اووه (۷) برطانوي افسران مړه شول ، پنځه يې سخت زخميان کړل
او ۳٦ هندي افسران مړه ، او د سپاهیانو شمېر خو ډېر وو ، دغه
حمله د حاجي صاحب مشهور جنرال ، خو نیاخیل محسود د مشرکرۍ
لاندې شوې وه ، کمال دغه دے چې دوئ صرف ٤٠ ځلوېښت کسان ،
او د پرنګیانو پوره کانوائي وه ، خو ددې نه معلومېږي چې محسود
په ګوریلائي کاروایي کښې څومره مهارت درلوده ، ددې بې عزتي
او مرګ ژوبلې په وجه د وزیرستان د فوج کمانډر ئې ماتکړو ،
شرمیدلې يې لندن ته ولیږلو ، دغه د فقیر صاحب جنګونه څه مقامي
جنګونه نه وو ، بلکې ټوله دنیا له دې نه خبره وه چې څه وخت
پرنګیانو په محسودو او وزیرو باندې ، بمبارۍ تېزکړې ، چې ډېر
ماشومان به پکښې شهیدیدل ، نو دې باندې لیګ اف (NATIONS)
کښې برطانوي حکومت په رویه باندې سخت تنقیدونه وشول ،
د برټش پارلیمنټ یو سوشلیسټ لیډر مسټر جارج لینز برې د
لیګ آف نیشنز توجوئې برطانوي ظلم اړخ ته راواړوله ، هم
ددې په وجه برطانیه حکومت وارخطا شو ، نو دوئ ۱۹۳۷ -
کښې په وزیرستان بمبارۍ بنده کړه او د طورې خیل وزیرته
يې د روغې پیشکش وکړو ، مګر دوئ رد کړو . پدې باندې وزیر
هند برطانیه پارلیمنټ کښې د فقیر صاحب په هلوځلو باندې اوږد

تقریر اوکړه او فقیر صاحب باندې یې تور اولګولو چې د مسحکومت خلاف فوجي کاروایو

کښې مشغول دې. د څه وخت نه پس دوئ بیا په وزیرستان بمباري شروع کړې.

د فقیر ایپي متعلق یو جرمني پخپل کتاب (افغانستان د هندوستان اړخ ته دروازه) کښې لیکي

Afghanistan, das Tor nach Indien, Herbert Tichy, Ausstellungsjahr 1940

Manche dieser Bergstaemme, wie die Afridi, Waziri, und Mahsud, und Mahmund, sind durch ihre tollkuehnen einfaelle auf Britisch-Indisches Gebiet in der ganzen Welt bekannt geworden. Alle diese Staemme sind Afghanen; wo sie auf indischem Gebiet leben, werden sie von den Englaendern aus politischen Gruenden PATHANS genannt, und sie on Afghanen als selbstaendigen volkskoerper zu trennen.

Der Fakir von Ipi, der den letzten jahren eine fuehrende Rolle unter den Bergstaemmen einnimmt und den Englischen Militaers an der Nordwestgrenze manche schlaflose Naechte bereitet hat, ist nur ein religioeser Fanatiker und wilder Krieger, sondern zeigt auch staatsmaennische Ambitionen. Er veroeffentlichte eine "Regierungserklaerung", in der er fuer die Bergstaemme territoriale Freiheit und eine unabhaengige Regierung forderte.

Der Fakir gekannt bei den Staemmen eine legendaere Gestalt zu werden. Man erzaehlt von seinen uebernatuerlichen Faehigkeiten. So soll ein junger Englaender in Afghanischer Verkleidung sich aufgemacht haben, um bis dem Fakir vorzudringen und ihn, wenn moeglich, zu toeten. Trotz der gelungenen Verkleidung und Vollkommenen Sprachkenntnisse wird der Englaender von dem Fakir entdeckt. Der laesst ihn aber nicht, wie es seine Gefolgsleute fordern, umbringen, sondern er schickt ihn ins Englische Lager zurueck.

**ترجمه :-** ځینې دغه غرېزه قبیلې لکه افریدي، وزیري، محسود، او مومند چې هندوستاني برطانوي علاقو بانـدې دیرغلونو په وجـه پتولـه نړۍ کښې مشهـورې دي، دغه ټولې قبیلې افغاني قبیلې دي چې دوئ دهند غاړې ته اوسي، مګـر پرنګیانو په سیاسي وجوهاتو باندې، دوئ ته پټهان وائي، چې دوئ دافغانانو نه ترېوبل خپل نوم لاندې جدا کړي، او دافغاني وجود نه یې بېلې کړي.

فقـیراف آیپي چې دغه قبایلو کښې تیروکالـونو کښې یـو د مشرتوب رول لوبوي، او شمال مغرب سرحد باندې یې پرنګیانو فـوج ته یې بې خـوبه شپې تیارې کـړې، دے یو مـذهبي انتها پسند او وحشي ځـنګلي، جنګیالي، ندے، بلکې یو سیاسي ریاستي مشر رول لوبولوخواهشات لري، د په خپل حکومتي فـرمان کښې دقبائیلو د پاره علاقې خودمختیاري او یو آزاد حکومت غوښتنه کړې ده، او کـوي یې.

فقـیرصاحب په قبائیلو کښې یو لـوئ شخصت جوړ ېږي خلک د ده متعلق دکرامت خـبرې کوي، چې دے ډېر کـرامت لري، هغه داسې چې یوځل یوځوان پرنګي په افغاني جـامـو کښې، او په پښتو ژبه باندې قادر دفقیر دمـرګ دپاره ته ده ورسیدو، باوجود جامې اوژبې فقـیرصاحب دےوپیژندو اوجوت یې کړو، ده دغه پرنګے معاف کړو، باوجود دے

چې د ده مریدانو د ده د مرګ غوښتنه کوله، پرنګې يې پېرته
خپل کېمپ ته ولېږلو، او پرنګيانو ته يې د ده په لاس يو پيغام وکړو:
هم د ے ليکوال يو بل ځای ليکي:

Und wenn der Fakir von Ipi heute zum Heiligen Krieg aufruft, denn wiederholt, was seine vorgaenger tausend Jahre vor ihm taten. Das Rad der Geschichte dreht sich langsam in den kahlen Grenzbergen Afghanistan.

دغه چې فقیرآيپي دجهاد علان کوي ، دغه د تير وخت
دوره وال دی، چې د ده مخکښې نورو کړي وو، يعنې زرکاله
پخوا دوی کړي وو، دغه د تاريخ چرخ دافغاني سرحد سره
جوخت خړو غرونو کښې چرخي.
دليکوال مطلب دغه د ے، چې د هندوستان فيصله
هميشه دپاره دافغانستان نه شوې ده، چې داريانه راواخله
تر فقیرآيپي پورې، د ده مطلب لب لبا دغه د ے، چې فقيرايپي
تش فقير نه ے، بلکې د تاريخ يو سلسله ده.
يو بل جرمنی د فقيرصاحب متعلق ليکي:
دکتاب نوم INDIEN:
دليکوال نوم: LUDWIG ALSDORF
صفحه: (۳۱۸)

" 1936/37 wurde wiederum Waziristan, das man schon weitgehend "zivilisiert" geglaubt hatte, von einem schweren Aufstand erschuettert. Ein von einem jungen Mohammedaner entfuehrtes und angeblich zum Islam uebergetretenes minderjaehriges Hindu-Maedchen war vom Gericht seinen Eltern zurueckgegeben worden. Ausserdem hatte das Gericht in Lahore einen Streit zwischen Sikhs und Mohammedanern um eine ehemalige Moschee. Wir entsinnen uns der altererbten Feindschaft zwischen Sikhs und Mohammedanern – zugunsten der Sikhs entschieden. Diese beiden Faelle genuegten dem auch in unserem Zeitungen viel genannten (Fakir von Ipi), den religioesen Fanatismus der Torikhel Wazirs zu einem Krieg zu entflammen, der auf englischer Seite bis zu 5000 man im Felde sah. Ende 1937 war die Ruhe wiederhergestellt, ohne dass man aber des Fakir habhaft geworden waere. 1938 gan es schon wieder neue unruhen. Keinen Kenner konnte es ueberraschen, dass gleich nach beginn des letzten Krieges.

Nachrichten von einem neuen Aufstand in Waziristan aus Indien kamen und Nachrichten ueber unruhen an der Nordwestgrenze seitdem nicht abgerissen sind; es waere durchaus nicht verwunderlich, wenn die gute Gelegenheit des europaeischen Krieges und der durch den neuen Kongressfeldzug zunehmenden Unruhe in Indien frueher oder spaeter zu einem neuen umfassenden Aufstand der Pathan-Staemme fuehren sollte.

**ترجمه:** ۳۷-۱۹۳۶ کښې بیا وزیرستان کښې کوم سختا پاڅون راغئ او منطقي یې وځوځولې، د پرنګیانو خیال وچې وزیرستان مو مهذب کړے دے، دغه واقعي یا د پاڅون وجې دوه وې؛ یوه دغه چې هندوه کم سنه جینۍ یو مسلمان اغوئ او بیا مسلمانه شوې وه، خو عدالت مور او پلار ته واپس وکړه، بله وجه یې دلاهور د جماعت وه، چې د سکهانو او مسلمانانو ترمینځ پرې تنازه روانه وه، او دغه هم عدالت د سکهانو په حق کښې فیصله وکړه، چې د دې سره د سکهانو او مسلمانانو زاړه بدي او دښمنۍ د نوي سر نه لمبه واخیسته.

دغه دواړه وجې د مذهبي انتها پسند و طوري خیل وزیر د پاره کافي وې چې د جنګ شعلی جوړې کړي چې نمونې په اخبارونو کښې ډېر ډېر یاد شوي دي، فقیر اف ایپي خلاف برټش انډیا پنځوس زره فوځ راجمع کړے دے، په ۱۹۳۷ کښې حکومت لږه قراري راوسته بغیر د دې نه چې فقیر د دوئ لاس ته ورشي او په ۱۹۳۸ کښې بیا شورش او بې آرامي جوړه شوه، د وزیرستان نه خبر خلکو ته دغه څه د حیرانئ خبره نه ده، چې کوم نوي جنګونه شروع شول، او د هندوستان شمال مغربي سرحدونه مسلسل دغه خبرونه راځي چې هلته نه قراري ده، او د دې تسلسل کټ شوے نه دے، دغه څه د حیرانئ

خبره نه ده چې د یورپې جنګونو په وجه دکانګرس ګوند
به دې بې آرامۍ ته لمن وهي، اوس یا روستو به پټهان،
قبائیل یوه لوئ پاڅون مشرکریه وکړي.

**نوټ:-** دغه کتاب بنیا دي ددې دپاره لیکلی شوی
دی، چې دویم جنګ عظیم کښې جرمنیانو ته دپرنګیانو دښمنان
په هند کښې ور په ګوته کړي، چې دوئ ورسره بیا رابطه
وساتي، هم دغه وجه ده چې دجرمن جاسوسي محکمې دلته ډیرې
ګرمې وي، دوئ غوښتل چې دپښتنو او پرنګیانو ددښمنئ نه
فایده واخلي، اودفقیرایپي په ذریعه پرنګیانو ته مشکلات،
جوړ کړي، نوځکه جرمنیان دوزیرستان پاڅون ته
ډیر په اُمید وو، بلکې دوئ د فقیرایپي صاحب سره رابطه
جوړه کړې وه. یوځل ماته خلیفه لطیف وزیر په کابل کښې
ویل: چې د پرنګې سره جنګ کښې له مونږه سره المانیانو کمک، کولو،
ده یو مثال راکړو چې مونږه یوځل په رزمک کیمپ باندې د
توپونو ډزې کولې، چې ګوله به کله دکیمپ نه لنډه شوه، او کله
به په واوښته، خوکیمپ په مینځ کښې نه لګیده، ده ویل چې
مونږه حیران وو، چې څه وکړو، ویل یې چې یو وزیر
وویل: چې ما خوب لیدلی دی چې زمونږ نه شاه ولي زیات
خفه دی، هغه راته خوب کښې وویل چې ترڅو موزه خو-
شحاله کړې نه ووم ستاسو توپ به صحیح ګوزار ونکړي.

وبې ویل : چې ماځینې خوب کښې تپوس وکړو ، چې ته به په څه راضي کیږې ې؟ شاه ولي زبات راته وویل : چې تاسې صبا په ما یوه غوا قرباني او حلاله کړئ ، زه به راضي شم ، او توپه به صحیح شي . خلیفه وویل چې موږ ه دغسې وکړل ، خو توپه بیا هم نه سمیده ، بیا ماخیال وکړو چې گورویک مرکز ته لاړ شه ، سور مُلا راوله چې ما سور مُلا راوستو او د توپې معائنه یې وکړه دوه ورځې یې په وکړل ، چې کله به لنډ اوکله به په واوښتو ، بیا یې دتوپ گولۍ تول کړه ، تول یې برابر کړو ، اولاس یې پورته کړو ، چې دعا اوکړي ، چې خدای ځموږ توپه په مرکز د کیمپ کښې ولګي ، موږ ه دعا وکړه ، سور مُلا په کیمپ ډز وکړو چې په مرکز کښې ولګیدو ، موږ ه ټول خوشحاله شو ، په حقیقت کښې دغه یو جرمني وُ ، سور سپین او سر زیره یې وه موږ ورته سور مولا څکه وئیلو ، چې پرنګیان یې ونه پیژني موږ یو څو خاص کسانو ته پته وه ، دے یو فوجي تیکنیکل سړے و ، د دې نه معلومیږي چې څومره بړ دې رابطه وه .

دحاجي صاحب متعلق خلک قسما قسم خبرې کوي ، خو حاجي صاحب یو پښتون قوم پرست او ضدې سامراج ، مسلمان وُ ، دے هند کښې دپرنګي مخالف وُ ، او د پاکستان هم مخالف وُ ، د ده په مخالفت او باچا خان په مخالفت کښې هیڅ فرق نه وُ ، دوا ړو د هند تقسیم د هند د مسلمانانو تقسیم ګڼلو ،

تر بن صاحب دده متعلق په خپل کتاب صفحه ۱۸۹ کښې داسې لیکي:

فقیرایپي کا قیام پاکستان پر انتباه:

فقیر صاحب نے ۱۹٤٦ می پاکستان کے قیام پر خون خرابه هونے پر انتباه کیا تھا، که یه غلط طریقې سے بنایا جارهاتا، مجاهد کبیر فقیر حاجي مرزا علي خان المعروف فقیر ایپي کي عظیم تاریخي شخصیت کو اج تک پیچانا نهی گیا، پاکستان کے قیام سے پهلے، انگریز انٹلیجنس بیوریو کے کارکن، ان کے پیر کاروں کے ٹھکانے کی نشاندهي کرتے اور فوج حملے کیا کرتی، اور هوائي جهازو سے بمباري کی جاتی رهي، اور قیام پاکستان کے بعد اس مجاهد کبیر کے کردار کو غلط رنگ می پیش کیا گیا اور ان کے خلاف غلط مهمیاں پهلائی گئی.
فقیر صاحب ایپي پاکستان کے قیام کے بعد بعض پاکستان کے مخالف رهے تھے اس لئے نهی که یه مسلمانوں کی حکومت هے، بلکه اِس لئے که یه غلط طریقه سے بنا هے، اِس سے هندوستانی مسلمانوں کو تین حصوں میں تقسیم هونا پڑا۔ اِس وجه سے پاکستان کی اینٹلجنس کے ادمی ان کے سلسلے میں کام کرتے رهے. فقیر صاحب ۱۹٤٦ می فرما رهے تھے، که جس طرح پاکستان بن رها هے میں اِس کا مخالف هوں، اِس سے مسلمان تین حصو می بٹ جائیں گے اور پاکستان کے قیام کیلے جتنے مسلمان عورتوں اور معصوم

بچوں کا خون بھا جانے والا ھے ،میں اسکا مخالف ھوں،اِس سلسلےمیں مولانا ابوالکلام آزادکی یہ تجویز قبول نھی کی جائے گی، مشرقی پاکستان کی جگہ مشرقی پنجاب کا مطالبہ کیاجائے جس میں دھلی بھی اٰئے گا ، اورکشمیر بھی مغربی پاکستان والے مشرقی پاکستان کیے پنچیں گے ، ھندوستان میں رھنے والو کا کیا بنے گا ، جس شکل میں پاکستان بنایا جارھا ھے ، اِس میں کشمیر شامل نھیں ھوگا ، اس پر خون خرابہ ھوگامیں اِس کے ، خلاف ھو“اِس قسم کے تیز کشف والے بزرگ اب کھاں ،کہ پاکستان کے قیام سے پھلے پاکستان کا پورہ نقشہ کھینچ کردکردیا“

نوٹ: یہ باتیں فقیرصاحب ایپي کے دومریدوں نے ۱۹٤٦ می دوابہ ،کوھاٹ می خود عبدالحلیم اثر سے کھی تھے ، جب ابھی پاکستان نھیں بنا تھا او عبدالحلیم اثر اورکزئی کے علاقی ماموزئی میں پاکستان کے حق میں ایک بڑا اجتماع کراکر واپس آرھے تھے .

مشھورپښتون لیډرمشرخان عبدالولی خان بخپل کتاب FACTS ARE SACRED
صفحہ ۸۸ کښې د فقیرایپي متعلق داسےلیکي؛

There is an interesting story of earlier days. At the start of German trouble making Europe, the British pressed the Afghan government to expel all Germans from their territory. To add to the pressure they let loose a Shami Pir in the tribal areas. His brief was to spread disaffection against Afghan ruling family. After achieving their objectivein Afghanistan, the Shami Pir was brought over to Wana Cantonment in Waziristan and paid a fee of f. 25000-. In England, the Secretary of State for India liked

the stratagem immensely, and write to the Viceroy to try for a similar arrangement with Fakir Ipi. The Viceroy wrote back to him on July 14, 1938 this:

There is, I fear, . no possible chance of dealing with him(Fakir Ipi) on the same lines as the Shami Pir. He is not only implacable but also completely incorruptible ---- who would rid me of this turbulent Priest!

**ترجمه:** دلته یوه دلچسپه قیصه ده دهغې وخت چې څه وخت جرمنیانو یورپ کښې مصیبت جوړولو نوحکومت. برطانیه افغان حکومت ته په کلکه وویل، چې دخپلې علاقې نه ټول جرمنیان اوباسه، د دباو دنیا نوتلو د پاره یې شامي پیر قبایلي علاقو ته خوشې کړو، دده میشن دغه وچې دے په شاهي کورنۍ خلاف کرکه او نفرت جوړوي، او بې ارامي به راولي، چې څه وخت د دوئ مقصد ترسره شونوشامي پیر یې په خپل وانړه کیمپ نه راوستو... ۲۵ زره پونډه پیسې یې ورکړو، د دې سوداپه وجه سکرټرۍ د هندوستان د پاره په لندن کښې ډېرمتاثره شو، او دغه سوداورته ډېره ښه وښکاریده، نوواشراۓ هندته یې ولیکل چې دغه فارموله په فقیر ایپي استعال کړي، نوواشراۓ هند په ۱٤ جولائ ۱۹۳۸ واپس ورته ولیکل:

دلته زماسره دغه خوف دے، زه یقین نه کوم چې د پیرشامي والا سودا به په فقیرایپي باندے تطبیق شي، د دې امکان بیخي نشته دے صرف نه څو بزکلک مخالف دے بلکې مکمل دلالچ نه آزاد دے، د دولت په وجه یې په بیعه ددے مذهبي مستر اخیستل ناممکن دي د غه لـوئ انسـان او-

مجاهد، مسلمان او قوم پرست پښتون د ژوند تر اخري
سلګۍ پورې، پخپلو نظریاتو باندې ټینګ ولاړ وُ، روستو دده
عمر او روغتیا داسې مرحلې ته رسیدلې وه، چې فقیر صاحب
به دخپل مرکز ګورویک څخه ناست وُ خو دغه لوی پښتون
نه پرنګي او یا پاکستاني او نه افغاني واکدارانو په قیمت واخیستے شو،
او نه دوی هیرولے شو، ده پخپل ساده ژوند صبر کړے وُ نو
ځکه دوی ټول عمر په ارام پاتې شو، د نورو باباګانو غوندې
د مغلو، پرنګیانو او پاکستانیانو، د حلوے تال ته مجبور نه شو،
چې دښمن پرنګي هم ددې اعتراف کوي چې حاجي صاحب خر-
څیدونکے نه دے. چې دشاهي پیر غوندې خرڅ شي، همدغه د
ده لوی وه، چې ده جهان او ځان دواړه پیژاندله، دخپل خادر
مطابق یې پښې غزولې، دے د پیر روښان، ملا پیوند نه پس
وزیرستاني خاوره کښې، زرغون شوے وُ، خو انسان وُ، لخر
دے هم د فاني نړۍ نه په ۱۶ اپریل ۱۹۶۰ کښې لاړو، او ۲ شوال
۱۳۷۲ هـ ق نمازِ عشاء دادا کولو نه پس لس بجې ۴۵ منټ باندې
یې ساه ورکړه او دده په وفات باندې ټول پښتانه او ضد سامراج
خلک ډیر خپه او غمجن شول، د جهان د عامو ریډیو سټشنونو
نه ددوی د مرګ خبر خپور شو، او اخبارو په ادارئے ولیکلې، چونکه
حاجي صاحب بې اولاده وُ نو ددوی دوصیت مطابق ددوی وراره او ورور
شیر زمان زوی بناغلي نیاز علي خان ته د مشر کړۍ پګړۍ ور په سر کړه، او د امیر منصب
یې خپل کړو.

# پاکستان او د باچاخان قید

چې څه وخت د هند د تقسیم فیصله وشوه، نو ددې سره د هند د مسلمانانو د تقسیم فیصله هم وشوه، چې باچاخان ددې مخالف ؤ، نه صرف باچاخان یې مخالف ؤ بلکې ابوالکلام آزاد، او نور مسلمانه قوم پرست مشران هم وو، جماعت اسلامي، خاکسار تنظیم هم ؤ او د هند ویش جغرافیایي نه ؤ، قومي بنیادونو نه ؤو، نژادي او ژبني نه وو، او اقتصادي نه وو، بلکې د مذهب په نوم وو، چې پاکستان اول ملک ؤ چې د مذهب په نوم جوړ شو، نو باچاخان یو منطقي انسان ؤ، پښتانه هند کښې وو، او مسلمانان وو، نو خپل پخپله دوئ پاکستان برخه کښې راتلل، او بل جغرافیائي پوزیشن داسې ؤ چې د هند سره یوځائ پاتې کېدو، هیڅ امکان نه ؤ، او بل کانګرس هسې هم د خدائي خدمتګارو سره غداري او بې وفائي کړې وه، مګر دد ټولو منفي حوادثو باوجود خدائي خدمتګار تحریک، په پښتنو کښې له ټولو نه مقبول تحریک دے، نو که په پاکستان کښې جمهوریت وے، نو د دوئ حکومت چا د مینځه نه شو وړے، مګر پاکستان د جمهوریت دپاره نه ؤ جوړ، بلکې،

شمالي مغربي سرحد، پرنګيانو او امريکا يانو خپلو بريځو په لاس
کښې، ساتل غوښتل، چې د سوويټ يونين او کمونيزم مخه ونيسي
چې ګرمو اوبو ته رګوز نه شي، د تقسيم باوجود دوی
په سکيم کښې خدائي خدمتګار يوخنډ وو، نو روا و سپينو
پرنګيانو سوچ وکړو، چې خدائي خدمتګار به په پښتنو کښې
څرنګې بې عزته او بې اعتبار کوو، نو دوئ د دې تمو او
فکر نه پس، د ريفرنډم ( Drama ) رامينځ ته کړو،
چې هيڅ منطق يې نه مني. د هند فيصله د مذهب په بنياد شوې
وه، او پښتانه مسلمانان وو، نو دوئ د پاکستان حصه جوړ شوي
وو، خو مسلم ليګيانو ته پته وه، چې خدائي خدمتګار په حقيقت
کښې د کانګرس نه جدا تنظيم دے، چې مرکزيې هند کښې
نه بلکې پښتونخوا کښې دے، دوئ پښتون قوم پرست،
او ضد پرنګي دي، او خپلو خلقو کښې مقبوليت لري. پرنګي نوکرشاهي
او مسلم ليګيانو په شريکه ريفرنډم سازش وکړو، چې خدائي
خدمتګار خلقو ته ور په ګوته کړي، چې دوئ د اسلام او مسلمان
او پاکستان مخالف دي او بهر دنيا ته وښائي چې مونږه دومره،
جمهوريت پسند يو، چې د پاکستان د پاره مونږه د پښتنو نه
تپوس کوو، چې که ستاسې خوښه وي راشئ او که خوښه مو نه
وي، نو بهر پاتې کېدائے شئ، چې دغه ټوله يوه نمائشي ډرامه
وه. باچاخان ورته صفا وويلي وو، چې د هند د تقسيم فيصله

د مذهب په نوم شوې ده، ددې سره د پښتنو د قسمت فیصله هم تاسوکړې ده، د هند او پاکستان په نوم باندې، ریفرنډوم هیڅ معنیٰ نه لري، اوکه تاسوخامخوا یې کول غواړئ نو پښتنو ته یوه د ریمه خوښه کیږدئ، چې هغه پښتونستان دے مګر دغه دوئ چیرته کول، د دوئ مقصد خود خدائي خدمتګارو د بې عزته کولو او د صوبائي حکومت د ړنګولو د پاره. پلمې لټولې نو پاچا خان ددې ډرامې نه باٹي کاټ وکړو. چې دغه بالکل صیح قدم وو، او بل باچاخان جناح ته ویلي وو، چې زه اُصولاً د هند د مسلمانانو د تقسیم مخالف وم، چې اوس وشو، نو د پاکستان د مسلمانانو خدمت ته تیاریم، جناح سیاسي سړے وُ، هغه د پاچاخان د خبرې سره اتفاق وکړو، دا ځکه چې جناح پخپله د کانګرس غړے پاتې وو، خو مسلم لیګ خوڅه داسې ګوند نه وُ، چې دوئ سیاسي جدوجهد کړے وو، دغه خو د پرنګیانو چمچې وې، چې صاحب تلو، نو دوئ ته یې د هند یوه ټکړه پریکړه او وریې کړه، او جناح صاحب په خپله د مسلم لیګ د جاګیردارو نه تر پوزې پورې وو، او ده ځکه ویلي وُ، چې مسلم لیګ څه دے، (حُماتایپ رائټر او زه) چونکه دوئ مفاد پرست خلك وو، نو د دوئ نه په مسلمانانو کار وُ او نه په پاکستان په دوئ کښې به چیرته دوه فیصده یا درې فیصده صح خلك وو، اکثریت یې غلط خلك وو، دوئ د اسلام او مسلمانان دښمنان

وو، هم دغه وجه ده چې پاکستان کښې استحکام نه راځي، داځکه چې دغه د مسلم لیګ لاتړي راوتې وه، دوئ څه سیاسي ګټ و دوئ نه وکړے، جناح صاحب په خپل اوږ ده سیاسي ژوند کښې، دیو منټ دپاره جیل کښې ناست نه دے، اوبل اړخ ته ګاندهي باچاخان، نهرو، ابولکلام آزاد عبدالصمد خان اڅکزی او نور سیاسي لیډران، جیلونو ته بوتلل شول، مګر مسلم لیګ نه، داولې؟ داځکه چې دوئ د استاد خلک وو، (یعنې دپرنګي)، هم دغه وجه وه چې پاکستان کښې نه جمهوریت ولیځ و، کړي، نه اسلام راغځ، نه انصاف او نه اقتصادي خوشحالي بلکې دتقسیم نه وروسته دهندو او مسلمان په ځائ دبنګالي پنجابي مهاجر ترمنځ نفرت جوړ شو، د دوئ په اقتیدار جنګ جوړ شو، جناح په خپله یوجمهوري سړے نه وُ، دده په قلم د ډاکټرخانصاحب وزارت ماتې کړے شو، چې دغه اولنۍ پاکستانۍ تحفه وه، چې پښتنو ته یې ورکړه، د دوئ خلاف په اسمبلۍ کښې عدم اعتماد تحریک پیښ نه کړے شو، بلکې دکراچۍ نه جناح صاحب د قلم په کرښه دغه کار وکړو چې دې کښې قیوم خان ډېر رول لوبولے وُ، دجناح او باچاخان په مینځ کښې یې شیطانت کولو، داځکه چې دے په خپله دپاکستان د جوړیدو نه لږ مخکښې دکانګرس ممبر وُ، څو صرف ممبر نه وُ بلکې د هند قومي مرکزي اسمبلۍ کښې دکانګرس دغاړې،

دپارلیمنټ د ډیپټي سپیکر ؤ، نو چې حالات یې ولیدل چې اوس پاکستان جوړیږي، ...زړیې مسلم لیګ کښې نوم درج کړو، او اصلي مسلم لیګیان یې صوبه سرحد کښې وټکول، او ده به ویل چې زه د بهر نه شین یم او د ننه سور یم، یعنې په ظاهره مسلم لیګې یم، او حقیقت کښې کانګرسي، څه دغه نمونه خلک دملک مشران شي د هغې وطن خدا حافظ.

باچا خان پاکستان کښې اولنۍ سیاسي مشر و، چې دپاکستان په قومي اسمبلۍ کراچۍ کښې ۱۹٤۷ کښې سوګند پوره کړے ؤ مګر مفاد پرستو دپاره دغه کانی نه ؤ، دوئ په حقیقت کښې دباچاخان دصافه او بې داغه سیاست او خدمت مخالف ؤ، دوئ خو تول غله ؤ، نو داسې سړے د دوئ بدي شو، چې هغه به د دوئ په خیر نه ؤ، پاکستاني واکدارانو یو پسې بل سازش تیار ولو، اوس دوئ باچاخان ته لاس اچولو، او همیشه دپاره خدائی خدمتګار دسیاسي ستیج نه ورکولو په منصوبې کار شروع کړو. حکومت پاکستان ۱۵ جون ۱۹٤۸ کښې باچاخان بهادرخیل کوهاټ سره ګرفتار کړو، باچاخان بنوں ته روان ؤ، چې دخدائی خدمتګارو په جلسه کښې شرکت وکړي، باچاخان داسلام ترنوم لاندې جوړ پاکستان د دفعه ٤۰ سرحدي لاندې ونیولو چې F.C.R دغه قانون پرنګیانو ۱۸۱۸ کښې دهندوستانیانو خلاف جوړ کړي ؤ، چې دغه قانون روستو صرف دپښتنو۔

دپاره و، چې دغه‌ولاندې پښتنو نه پاچاخان ختم کړے وُ، او قبائیلي علاقه کښې ترُنن ورځې پورې هاوی دے، په دې، قانون کښې نه‌مقدومه شته او نه صفائي او نه وکیل دغه دحکومت په لاس کښې یوه چاره ده چې چا ته یې مرضي راشي، په حلال یې کړي، چونکه باچا خان خلاف ددوئ سره څه ثبوت نه وُ، نوځکه دوئ دغه رنده انسان دښمنه دفعه په ده ولګوله، او بغیر مقدمې یې د درې کالو دپاره جیل ته ولیږلو او الزام یې دغه په ولګولو، چې باچاخان دفقیر ایپي سره سازش کولو نو دغه دپښتنو او خاصکر دخدای خدمتګارو دپاره پاکستان کښې نوره ورځ وه، چې ورپسې پاکستاني واکدارانو پر امن جلسه باندې بابړه چارسده کښې ګولۍ وچلولې، چې د پښتنو دماشومانو، ښځو او سړو په وینو دوئ بابړه سره کړه، دغه بله اسلامي او پاکستاني تحفه وه، چې دپاکستان یوکال پوره شوے نه وُ، چې پښتنو ته یې درې تحفې ورکړې، ددوئ صوبائي حکومت یې مات کړو، ددوئ مشریې ونیو، او خدای خدمتګارو تحریک او پښتون اخبار یې ورته ممنوع کړل، او دریم یې ددوئ په وینو بابړه سره کړه، که څه هم باچاخان په دې سبه خبر وچې پاکستان جوړ شي، د دوئ به څه حیثیت وي، نوځکه اصلي مسلم لیګیان نقلي قیوم لیګي وه بول، دوئ یې جیلونو ته ددننه کړل، دبنوبومسلم لیګي

وُ چې ډمساز خان نوم يې وُ ، چې پاکستان جوړ شو
قيوم خان د ے جيل ته کړو. يو بنوچي شاعر دغه،
شعر پسې جوړ کړے وُ ، چې پاکستان دې جوړ وه :
اوس وير ته تهم شه ، دمسازه کير (کور) دې ړنګ شه.

نو پاکستان کښې يو د دمساز کور ړنګ نه شو بلکې ډېرو ملي خلکو دغه حال وُ ، ځکه پاکستاني او پرنګي سياست کښې پښتنو ته څه فرق نه معلوميده ، . دوئ کښې مشهوره شوه ، ( خرهغه دے خوکته يې بدله ده )

بس پاکستان څه وُ ، د مهاجرو او پنجابيانو دبزکشۍ ميدان وُ ، چې بنګاليان ، سندهيان ، بلوڅيان او پښتانه پکښې دل کيدل ، د مقامي خلکو په لاس هيڅ ورنه راغلل، ژبه ، دلکهنوهند نه راغله ، صنعت او بانکونو باندې د بمبۍ والاقبضه وکړه ، د هندوانو کورونو او جائيدادونو باندې مهاجرو او مقامي مسلم ليګيانو قبضه وکړه ، نوکرو باندې هندوستانيانو او پنجابيانو قبضه وکړه ، په پاکستان کښې د پښتون په لاس ، هيڅ نه ورغلل ، بس کراچۍ کښې بيلچه يا چوکيداري ورپاتې شوه بنګالي يې په خپله ژبه پورې ورېبولو ، سندهي زمکه لاړه او د پښتون او د بلوچ هرڅه لاړل ، د اسلام او پاکستان ترنوم لاندې . او باچاخان دوئ بغيرڅه ثبوت تر ۱۹۵٤ پورې زندان کښې وساتلو ، دا ځکه چې باچاخان دغلو

او لوټ مار و ړلـه کښې نه شامیلیدو ، دجناح صاحب له هم دوئ ځان خلاص کړو ، هغه داسې چې پاکستان جوړ شو ، جناح صاحب سخت بیمار ؤ ، نو ده لیاقت علي خان ته ویلي ؤو ، چې اوس ماته لږ ارام پکار دے . زه غواړم چې دلنډ وخت دپاره سویټ زرلینډ یا بل یورپي هیواد ته لاړشم ، چې لږ مې هوا بدلـه شي لیاقت علي خان ورته وئیلي وو ، چې دغه غول اوس مونږ ته پرېږدي ، دلته پاکستان کښې چیرته مرې یا کوئټې زیارت ته لاړشه ، دهوائي اډې کراچۍ او ګورنر جنرال هاوس ترمینځ درې ځلور ، ابمولینس خراب شوي وو ، جناح بابا یې قوم یې د- کراچۍ په مچانو اوماشو سبه وخوړو ، چې مړ ترانږه دې شو ، بیا یې راوړو ، او قسمت یې سبه ؤ چې زر خدای مړ کړو ، که اوږ د ژوند یې وے ، نو پاکستاني جرنیل به په کودتا کړې وه یا لیاقت علي خان غوندې به یې چا کار تمام کړے ؤ ، چې دیو قوم د بابا سره دغه سلوک کیږي او هغه وطن کښې دباچا . خان یا خدائ خدمتګار و سره د سړي تو ب سلوک کول د بې وقوفانو جنت کښې اوسیدل دي .

# ون یونټ

# او

# پاچا خان

چې څه وخت اقتدار د مسلم لیګیانو په لاس ورغلو، نو دوئ اول د ښکاره سیاسي د ښمنانو نه بدل واخیستو چې هغه باچاخان او خدائي خدمتګار وو، او ور پسې د جناح نه خلاص شول او بیا یې لیاقت علي خان ځائې ته ورساوه، او نا اړه او لږ اُصولي مسلم لیګیانو نه یې دوړې پورته کړې، لکه جی، ایم- سید، پیر مانکی، او دغسې بنګال کښې اوس مرکز کښې په آئین او اختیاراتو باندې د بنګالیانو او پنجابیانو جنګ جوړ شو، په نوکر شاهي کښې پنجابیان زورور وو، مګر د آبادئ په لحاظ بنګالیان ډیر وو، نو د دې علاج د پاره پنجابیانو او مهاجرو مافیا یو سکیم جوړ کړو، چې د دې سکیم مقصد څو ډوله وُ؛

یو مخ یې دغه وُ چې بنګالیانو د پاره یو بند جوړ کړي، چې دوئ د اقتیدار نه لرې وساتي، او بل یې دغه وُ؛

چې ددې نوم لاندې د صوبو ځان خلاص کړي، نو بنګالي به سندهي، پښتون یا بلوچ په لاس کښې را نه شي، نیولے، او موږه به ورته دون یونټ یعنې مغربي پاکستان تر نوم لاندې بنګالي ته ځان جوړ کړو، او بل به د سیاسي فایدې په ځائے اقتصادي واک زموږ په لاس راشي، او موږه به د سندهي زمکه د بلوچې او پښتون قدرتي ذرایع باندې قبضه وکړو. چونکه مسلم لیګ مفاد پرست ګوند، دے. بلکې ګوند ورته وویل، د ګوند بې عزتي ده، بلکه یوه ډله د مافیا وه، نو د دوئ په ویش سره ورانه شوې وه. تر ۱۹۵٤ پورې دوئ پاکستاني چیکر کښې یو یل سبه راکښلي وو، اخر هغه نمائشي پارلیمنټ هم غلام محمد چاړه ورته پټنګ کړو، او س هغه په نوم سیاست دانو نه واک سول او فوجي پنجابي او مهاجر بیورو کراسي ته لاړو، نو د خپلو مفادانو ساتلو دپاره دوئ ته بیا پښتوانی، په دوئ ډیر ګران او د ډېره سر وریاد شوا یعنې باچا خان.

نو بیا دوئ کښې څینو خیال وکړو چې باچا خان به جیل کښې تنګ شوے او سم شوے وي، چې موږ یې آزاد کړو دے به ډیر ممنون وي، او هرې خبرې ته به تیار وي، نو دے ډیر اثر لري، نو موږ سره به دون یونټ جوړولو کښې، مدد وکړي، نو د دوئ دوست اخبارونو کښې د باچا خان،

په حق کښې د مګر ځچه اوښکو تویول، شروع کړل، اوبل پدې
وخت کښې په ډاکټر صاحب باندې څه چل شوے ؤ، کېدا ئې
شي چې دده دغه خيال ؤ، چې په دغه نمونه به زه د پښتنو
د پاره پاکستان کښې د عزت ځائ پيدا کړم، يا به کيداى شي چې
داقتيدار ملېرے حمله په کړې وى، بهرحال دده ناسته
پاسته دباچا خان داصولي، ملي سياست سره سمون نرخوړه.
نو مخاليفونو په ډاکټر صاحب تر دې کوتې وهلې وې، چې
دده او باچا خان ځپله دون يونټ په سر سياسي لارې جدا شوې.
باچا خان ځپله دون يونټ متعلق داسې ليکي:
« په ابتدا کښې د بعضو ساده او ناپوهه خلقو داخيال
ؤ، چې دا هرڅه چې کيږي، نو د خدائ خدمتګارو سره
کيږي، ولې ډېر زر داخبره څرګنده شوه چې د سازش
يوازې ديوجماعت خلاف نه وو، او هرڅه چې يې وکړل،
هغوئ ټول قام پښتون قام سره وکړل، ولې چې هرکله دوئ
په دې خپلو پليتو غرضونو کښې کامياب نه شو. او د پښتون
نه يې هغه پاګه جذبه ونه ښکلي شوه، نو بيا يې لکه دمداريانو
ورپسې د پټيار نه نوې لوبه راوښکله **يونيونټ**: اول
خو دوئ ډېر کوشش وکړو، چې هغه به په پارليمنټ کښې
پاس کړي، په دې سلسله کښې ما باندې هم ډېرې جرګې
اونتوانې اوکړې، خو چې يو يونټ په پارليمنټ کښې پاس نه

شو، نو بیا یې د زونل فیډریشن د جوړولو کوشش وکړو، ولې

چې په دې کښې هم کامیاب نه شو نو بیا ګورنر جنرل غلام محمد

ولګیدو پارلیمنټ یې په زور مات کړو، ولې چې هغوئ هیله په

اته کاله پس د پاکستان آئین تیار کړو، خوچونکه یونټ یې و نه

منه، نو هغه کړې خواري یې ورله په سین لاهو کړه، او ملک

بیا بې آئین پاتې شو، او عجیبه خبره خو دا ده چې څو پورې آئین

نه وو جوړ نو پارلیمنټ قایم ؤ، خو چې څه وخت آئین جوړ شو

نو پارلیمنټ یې مات کړو، د دې نه پس یې د خپلې خوښې پارلیمنټ

جوړ کړو، او د هر څه نه اګاهو پرې د یونټ منصوبه پاس کړه

او د آئین غوښتنې ضروري کار په ځائ پاتې شو، دا هر څه

دوئ څله وکړل،؟ د دې جواب به هرچا ته د هغې خفیه سرکاري

دستاویز و نه معلوم شي کوم چې د یونټ د منصوبې په نوم

ګورنر جنرل غلام محمد، چودهري محمد علي سابق وزیر اعظم

ممتاز دولتانه، ګورماني او نورو سرکرده پنجابیانو جوړ

کړے دے، زه د هغې لیکلې شوے خفیه دستاویز نه

ځینې خبرې د قام مخکښې بدم، چې هغوئ هغه وګوري

او د یو یونټ په حقیقت او غرض ځان پوه کړي، قام د

سردار عبدالرشید خان ډېر مشکور دے، چې هغوئ په

پارلیمنټ کښې دغه دستاویز ښکاره کړے او قام ئې د دې لوئ

او خطرناک سازش نه خبردار کړے دے.

د دغه دستاویز هغه ځینې ځینې حصې دا دي:

مونږ د مسلم لیګیانو د خولې د پاکستان د سالمیت او د وحدت ډیرې اوږدې خطبې شاءمدام اورو، ولې ددې لاندینو دلیلونو په لوستلو سړی په تاسو ته معلومه شي، چې دوی په خپله ددې وحدت او سالمیت په باره کښې څومره عقیده لري. او ترکومه حده پورې پرې ملا تړي، په دغه خفیه دستاویز کښې د (دا یونټ ولې پکار دے) د سرخي لاندې لیکي:

« د مشرقي او مغربي پاکستان ترمینځه جغرافیائي او انتظامي مشکلات دومره ډیر دي، چې د دواړو برخو یو مضبوط او پائیدار تړون عمل کښې ناممکن دے، . . . . په مشرقي او مغربي پاکستان کښې د پاکستان تقسیم د پاکستان د پاره یو داسې پیچیده مسئله جوړه شوې ده چې په هیڅ وجه حل کیدلے نه شي، لکه د مشرقي او مغربي پاکستان ترمینځه د زرګونو میلو فاصله د هندوانو په قبضه کښې ده، همدارنګه د دواړو برخو د بالکل مختلفې ژبې دي، هغه ځای خلق ډیرګڼ دي، ولې د امدن ذریعې یې ډیرې دي، انتظامي معاملې یې جلا جدا پالنه غواړي، دا ټولې داسې مسلې دي، چې هسې خبرې نه دي، بلکې ښیا دي او حقیقي مشکلات لري. او هم په دې به د دواړو برخو او سیدونکو کښې دیو بل خلاف شکونه راپیدا کیږي، بله به ترې نه هیڅ نه جوړیږي » (خفیه دستاویز صفحه ۲).

که چیرې هم د دوئ دوینا مطابق د بنګال او مغربي پاکستان په یوځای کیدو کښې دا مشکلات شته ، نو مونږ تش دومره ځان پوهوو ، چې دا مشکلات د ټولو مختلف ټ بې دي او که نور؟

۲ - « پښتنو سره بجلي ده ، بلوچستان کښې معدنیات دي او په سند کښې ډېره زمکه ده ، نو د سرحد د بجلۍ خوا مخوا به پنجاب ته فایده ورکول غواړي ، د بلوچستان او قبائیلي علاقو معدني دولت ته به ترقي ورکولو په وجه په معاش کښې برابري راوستے شي ، د سند او بهاولپور د زمکو په سبب به قبائیلو خلقو له به د سر سورے ورکیدے شي ، دا کارونه لګیا دي او س هم کیږي ، خو په دې کښې ډېر مشکلات دي او دا به ډېر وخت اخلي ، ولې دا سې طریقه راوښکل غواړي ، چې دا کارونه په خپله په یوه ډېره منظمه او روانه طریقه ، په لږ وخت کښې وشي ، او دا بې د صوبو دورانولو نه نشي کیدے ».

د مغربي پاکستان صوبې دا سې جوړې دي ، چې هره صوبه په خپل کور نه ده پوره ، خوا مخوا په یوه بله تر محتاجه دي ، او عمر له به یې سره لکه د ساهوکار او قرضدار ګران وي

« خفیه دستاویز صفحه ٥٤ »

د دې پورتنیو دلیلونو په رڼا کښې دا خبره خومره صفا معلومیږي ، چې په خوله که څوک هرڅه وایي ، خو ټول چل د صوبه سرحد بجلي ، او د بلوچستان معدني دولت او د سند له

مرکز ته جوړ دے.

۳- «اوس خوحالات داسې جوړ دي چې واک اختیار تول د مرکز سره دے، د دغه واک اختیار ډېره مشري د بنګال ده، زمونږه برخه ورکښې ډېره لږه ده، خو چې یونټ جوړ شي، نو واک اختیار به مشرقي او مغربي خصو ته یو شان ګوتو له ورسي، او په دې به مکمل اختیار په اوځل د قبلیز پاکستان لاس ته ورشي «خفیه دستاوین ص نمبر ۷».

اوس خو بنګال چې مرکز ته څومره رقم ورکوي، په خپله دهغې ډېر زیات واپس د مرکزي حکومت نه د خپل خرڅ د پاره اخلي، خو دیو یونټ جوړېدو سره به په وفاقي حکومت کښې دا بوج زمونږ داوږو نه ډېره حده کوز شي.

«خفیه دستاویز ص نمبر ۷».

٤- یونټ څنګه جوړول پکار دي؟:

«ولې قبل ددې نه چې مونږ دسیاسي اقتدار دحاصلولو د پاره کار شروع کړو، مونږ له پکار دي چې څه موده، اول، دهغه ټولو مخالفو قوتو خاتمه وکړو، کوم چې به مونږ ته زمونږ دسیاسي اقتدار د حاصلولو په لار کښې رکاوټ کېږي مونږ له اول داسې فضا پیدا کول پکار دي، چې خلق یوازې هم زمونږ خبره اوري، او دا فضا به هله پیدا کېږي چې مونږ هغه اختیارات پوره په پوره او بنه په سختۍ سره استعمال کړو.

کوم چې زمونږ لاس له راشي ، او که چیرې مونږ دغه وخت ، پورې مخالیفت قطعي او مکمل طور سره ختم نه کړو ، او په دغه گیر چاپیره خاموشه کښې مونږ خپل آواز کښې اثر او طاقت پیدا نه کړے شو ، او دخپل سیاسي اقتدار دحاصلولو دپاره مونږ کار شروع کړو ، نو دا به زمونږ ډېره خطرناکه غلطي وي .
په دغه اړه گړي کښې به زمونږ دسیاسي اقتدار حاصلولو دپاره هسې گوابنې هم زمونږ اصلي مقصد ته نقصان ورسوي ،
(خفیه دستاویز ص نمبر ۹)
۵ - هغه دپاکستان دجوړیدو هغه جوش وخروش اوس ، نه دے پاتې ، او دخلقو د رالاندې کولو ، کرتبونه هم خلاص شوے دی ، په خلقو کښې ډېره لویه مایوسي او پریشاني را پیدا شوې ده ، د مایوسه په دې حال کښې خلقو غاړه ایښې ده ، چې کوم خوا ته یې بیایي بیولی یې شي ، دا اوس دقدم اخیستو وخت دے ، او که دا موقعې لاړه نو خدائے خبر که بله موقعې راشي ، او مونږ په خلق خپلې لارې ته راواړو ، چې مونږ په زور داسې حالات پیدا کړو ، چې خلق بې زمونږ د وینا نه بغیر دبل چا وینا ته هډو غوږ نه ږدي ،
" خفیه دستاویز ص نمبر "
" د دې دپاره لاره دا ده چې مونږ په هره صوبه کښې خپل خلق او ملاتړ پیدا کړو ، او هغوئ پوره مضبوط کړو ،

او مکمل اختیار ورله ورکړوچې، هرحالت دپاره چې څنګه ـ
هغوئ غواړي، هغه شان اقدامات وکړي، موږ له دخیرپوړ
ذواقع، کارکښې یې ډېر لوئ رکاوټ واچوؤ، د صوبوپه اسمبلو
اعتبار نه دے پکار، خیر دے که تپوس نتر نه کوئ، خو په
اسمبلوکښې دپاس کولو، دپاره به دتجویز هغه لفظونه هم په
خپله جوړوي، او د خپلې نګرانۍ لاندې به یې پاس کوي، یوخو
به د مشهورو خلقو بیانات نشرکول غواړي، بل به داسې منظم
اخباري پروپیګنډه پکار دے، چې هغه هم ستاسو په لاس
کښې وي، دریم طریقه د نشرو اشاعت به پمفلیټونو او پوسټرونو
دي، څلورمه طریقه یې دا ده چې وکیلانو، ډاکټرانو، پروفیسرانو
او طالب عالمانو ته توجه وکړے شي. «خفیه دستاویز ص نمبر۱۱»

۶ـ «دیونټ د نشرو اشاعت په سلسله کښې دمُلیانو نه هم
کار اخیستل غواړي، خو دې مُلیانو ته ډېر فکرکول غواړي، د
مُلیانو څه عجیبه غونډې طریقه ده، دوئ ته چې کار ورپرغاړه
کړې، نو دوئ به یې کوي، خو اکثر به ورسره دځان نه نورې
خبرې یوځائ کړي، دکوموچې د اصلي مقصد سره هیڅ تعلق
نه وي، بلکې هغه به د دوئ دخپل غرض خبرې وي، او پدې
طریقه دوئ ځان له په خلقوکښې دحیثیت پیدا کولو کوششونه
کوي، نو که د دې غرض دپاره مُلیان بهرتي کوے، نو داسې،
مشهور کسان به نه بهرتي کوئ، چاچې دبل دپاره په پیسو ـ

باندې کاب کول خپله پېشه گرځولې ده، دعامو جلسو په ذریعه په عوام هم خیر ول غواړي، خو دې خبرې ته به فکر کول غواړي چې بې ستاسو دجوړ شوي تقریرونو نه بل یو تکې هم څوک دے خو اخوا ونه ویئ. (خفیه دستاویز ص نمبر ۱۲)

۷- فی الحال موښ له پنجاب کښې دیونټ په حمایت ډېر زور ته دے اچول پکار، دا به دوړ وصوبو خلق را وپاروي، او دهغوئ په نړونو کښې به شکونه را پیدا کړي، زموږ لیډرانو له هم په بیانانو ورکولو کښې ډېر محتاط او سیدل پکار دي، او ځان پکښې دومره مدعي کول نه دي پکار چې دخلقو وربانډې دمحاصلانو گمان را پیدا شي، خو دا خبره یاد ساتل پکار دي، چې په دې حقله زموږ بهترین او ددې خبرې د پاره تیارول پکار دي، چې هرچیرته او هر وخت دې هغوئ دکار ضرورت پېښ شو، نو دوئ به پرې ورځي، نو پکار دي چې دپنجاب لیډرشپ د اوس نه ځان منظم کړي، او یوموټی شي او په ځان کښې داسې اهلیت پیدا کړي چې، څه وخت هغه فیصله کن وخت راشي نو دوئ ترې نه مکمله فایده اوچته کړے شي، او په دې وجه به دا ضروري وي، چې هر قرار داد چې په پنجاب کښې پاس کیږي، هغه دې ورله په کراچۍ لیکلے شي.

«خفیه دستاویز ص نمبر ۱۳».

. . . . په یونټ کښې به پنجاب کښې دخلقو آبادي

په سلوکښې شپږ پنځوس ۵۶٪ وي، باقي د کل یونټ آبادي به په سلوکښې څلور څلویښت ۴۴٪ فی صدي وي، «خفیه دستاویزص نمبر۱۴»

۸- پکار دي چې دا خبره هرچاته واضحه کړے شي چې مرکز یونټ جوړول غواړي، د تالپور غونډې خلقو له هډو موقع نه دي ورکول پکار چې په مخالفت کښې څه ووېلے شي، او ډیره زیاتره توجه د بنګالیانو هغه ټولي ته پکار ده، څوک چې هر وخت بې مطلبه لګیا وي، او داسې ذهنیت چې نه په خپله دیوشي د خوراک وي، او نه به ورته بل پریږدي، د هغوئ غرض تش هډومره دے چې دا موجوده حکومت وران شي «خفیه دستاویز کښې».

۹- صوبه سرحد کښې هرڅه خراب شو، سردار عبدالرشید او زړو مسلم لیګیانو به خوامخوا د یونټ مرسته کوله، د قیوم زوال هغوئ ته لاره صفا کړې ده. د قیوم بد دیانت او بې ایمانه حکومت تش په پروپیګنډو چلیدو، د دغه خټمولو د هغوئ اثر ډېر زیات شوے و، خو کار دا ځائ خراب شو، چې د قیوم په ځائ دقیوم نه هم زیات مضبوط طاقت سردوباره راڅرګندے کړے شو، دغه طاقت سرخپوشان او د هغوئ هغه عظیم الشان طاقت دے، اګر که عبدالغفارخان په آسانه ګیریدے نه شي، او نه پرې اعتبار کیدائے شي، خو بیا هم که سرخپوش د څه شرطونو لاندې را پریښودے شوے.

اوس خلق ګڼلیا دي ډاکټرخانصاحب له د عبدالغفارخان

نه جدا سیاسي اهمیت ورکوي ، خو ورپسې ژر به دغه خلق

محسوس کړي چې دوئ سخت په غلطئ کښې پراته وو. ځکه

چې که دواړه وروڼه کدیو ځائ وي خو د دواړو طاقت به

وي ، او که دواړه دې دیو بل نه ځان ځان له کړل ،نوعبدالغفار

خان خو به په خپل ځائ ولاړ پاتې شي ، او ډاکټرخانصاحب

به پرهغې نسکور راپریوزي، ځکه چې ځان له د هغه هیڅ

حیثیت نه شته ، د موجوده حالت سمدستي بدلول پکاردي،

او هغه داسې کیږي چې رښیاه زموږه مکمل تعاون .

حاصل شي ، چې د هغه شکونه رفع شي ، هغه مضبوطول،

پکار دي ، هغه له زړه ورکول پکار دي چې سرخپوشان

هیڅ نه دي ، زاړه مسلم لیګیانو هم مضبوطول پکار دي،

په دې طریقه به دسرخپوشانو په راونو چې کوم اثر د صوبه

سرحد په ګوټ ګوټ شوے دے ، هغه به ختم شي ، دا کار

د قربان علی خان په حواله کول پکار دي هغه دا کار ډېر

ښه کولے شي ، ځکه خوبې قربان علي خان د صوبه سرحد

ګورنر کړے وُ ، بل دا چې عبدالغفارخان طرف ته هیڅ توجو

نه دي ورکول پکار . د هیڅ قسم خبرې اترې او صلاح مشوره

نه دي کول پکار ، که موږه هغه سرہ ئ خبرې اترې کوو ، نو

هغه به سیاسي طور خپل ځان مضبوط کړي او د خپل طاقت

په زور به زمونږ د پښتو لوا اثر ختم کړي ، ځکه چې په دې خبره ،
کښې هیڅ شک نشته چې په سیاست کښې مونږ یو کس هم دهغه
خوب نه یو ، څه لږ ه ډیره نظریاتي برتري ، چې مونږ لره هغه
مونږ دخپله لاسه ختمه کړ ، سي د ه ، « خفیه دستاویز ص ۲۲ » .

دا زه چې دوئ کیر په کیږ جیل ساتلم دا د دې غرض .
دپاره چې هسې نه زه بهر راونه وځم ، او د دوئ د دې منصوبې
یعنې یونټ برخلاف جد وجهد جاري وساتم .

۱۰- « پنجاب که سه کوي نو دې وخت کښې دې غلي ناست
وي ، ځومونږ دغه دپنجاب دوستان هغه وخت وي چې دپنجاب
با اثره تعلیم یافته خلق هم په مرکز او هم په لاهور کښې داقتدار
مالکان وي » .

۱۱- د بلوچستان د مسلم لیگ لیډران به په ډیره لږه ،
خواری خوا مخوا هم زمونږ مرسته کوي ، او شاهي جرګې ،
په خپل ټول عمر کښې حکومت ته نه د ے کړ ے .

خفیه دستاویز ص نمبر ۲۳ » .

۱۲- او هرکله چې مونږ مغربي پاکستان را قابو کړو ، نو
بنګال کښې بس سهروردي یو داسې سړ ے د ے ، چې هغه
سره ځمونږ د یونټ په معامله کښې فیصله کیدا ے شي ، چې یا
خو هغه بنګال ځمونږه په مرسته میدان ته راوځي ، او یا زمونږ
په ملګرتیا کښې بالکل غیر جانبدار پاتې شي . « خفیه دستاویز ص ۲۳ » .

۱۳ - « په سنده او صوبه سرحد کښې به داثر او رسوخ،
خاوندانو سره تعلق ساتل غواړي، هاله به دلته څه سیاسي کار
وکړے شي، څینو کسانو ته به څه نه څه سیاسي رشوت ورکول
هم غوښتے شي، لکه وزارتونه او سفارتونه، ځکه چې څیني خلق
به د یونټ په وجه مخالفت کوي، چې د هغوئ نه به پکښې نوکرۍ
ځي، او په اسمبلو به دیونټ په حمایت کښې تجویزونه پاس
کول غوښتے شي، او مسلم لیګ به هم دغه رنګې تجویزونه خوا
مخوا پاس کوي، (خ - د - ص نمبر ۲۳ »).
۱٤ - « دغه رنګ بلوچستان، بهاولپور، او ریاستونه به
ډیر په آسانه راقابو شي، که چیرته څوک د سیاسي اثرورسوخ
سره زمونږ لاس ته راشي، یوا ځې په ډیپټي کمشنرانو ملا تړل
نه دي پکار.» خ - د - ص ۲۳ ».
۱۵ - « یوه دوره به داسې راشي چې سهرورد ي به په
سنکاو زمونږ خوا مخوا مرسته کوي، (خ - د - ص ۲۳).
« دیونټ په مقابله کښې یو متبادل تجویز هم وائي چې کیدا ے
شي. لکه دا هم یو تجویز دے، چې دیونټ په ځائې مونږ له
ابتداء کښې وړې وړې ټوټې یو ځای کول پکار دي، وړې
علاقې او ریاستونه دې اول ځان په لویو علاقو پورې
ونښلوي، کراچي او د بلوچستان بعضې علاقې دې سنده
سره شي، د بلوچستان څه حصې دې سرحد سره یو ځې شي،

نو بیا د صوبه سرحد د ګیرولو د پاره پنجاب او سندهـ یو ځای کول پکار دي . د خلقو دا خیال دے چې کنې دا طریقه به اسانه وي، بهاولپور او بلوچستان مونږه دومره په اسانه دې خبرې ته اماده کولے نه شو چې ځانونه لویځ برخي سره یو ځای شي ، لکه څومره په اسانه چې به یې مغربي پاکستان سره ضم کړے شي ، بلکه چیري مونږ د یونټ په ځای په دې بل سکیم ـ شروع وکړو، خو چې مغربي پاکستان د دې برخې شو ، نو بس هم په دغه ځای به په تپه او درېږو ، دغه کته خوهلو څه کته نه ده ، د دې یا دوه یونټه جوړول خو څه مطلب نه لري ، ځکه چې دا د پاکستان د هغه بچیده آئین مسلې صحي حل نه دے . او په دې طریقه به مونږ نور هیڅ ونه کړو، خو د خپله لاسه به پښتونستان جوړ کړو .» خ ـ د ـ ص نمبر۲٤ »

۱٦ ـ « هرکله چې مغربي پاکستان لیډرشپ د یونټ منصوبه منظوره کړي، او د دې کنې د هضمولو د پاره اقتدار په لاس کښې واخلي نو ، سمدستي د بنګال د خلقو او خاصکر سهروردي ، سره خبرې اترې کول پکار دي ، سهروردی هوښیار هم دے ، او خود غرض هم ، هغه به مونږ سره خبرو ته تیار شي ، هغه سره به مونږ په دې خبرې کوو چې مرکز لره ، به تش څلور مدونه ( SUBJECTS ) وي صوبې به فقط دوه وي ( بنګال او مغربي پاکستان ) د واړو صوبو ته

به مکمله خودمختیاري حاصله وي، مرکز کښې به نمائندګي په، مساوات وي ( Parity ) سهرور دي سره څمونږ سودا څه دومره ګرانه نه ده، خو پکار دي چې څه وخت دے دیورې نه راستون شي، نو مشرقي پاکستان ته د تللو نه اګاهو به مونږ هغه سره فیصله وکړو، (خ - د - ص نمبر ۲٤)۔

اوس باچاخان تبصیره په کوي :،، د دې پورتنیو اقتباساتو لوستو نه پس ته به هرچا ته دا خبره څرګنده شي، چې یونټ چا جوړ و، دڅه د پاره یې جوړ وو، او څنګه یې جوړ وو، دوئ خو وئیلي چې د یونټ په جوړیدو سره به د مختلفو صوبو خلق، وروڼه وروڼه شي، اتحاد او اتفاق به پکښې پیدا شي، خو د دې اقتباساتو د لوستو نه پس دا خبره ښکاره شوه، چې دوئ په دې نیت یونټ نه جوړ وو، او نه یې د هغې د جوړولو دپاره د مینې محبت او ورورولی لارې خوښولې، بلکې هرځائ دروغ چل، مکر، فریب، سیاسي رشوتونو او نورو بد دیانتو نه کار اخیستے دے، ځکه خو د محبت په ځائ نفرت پیدا شو، او د رانیږدې کیدو په ځائ خلق دیو بل نه نور هم ډیر لرې شو، او د اعتماد په ځائ بې اعتمادي پیدا شوه۔

د ویه خبره یې دا کوله، چې د یونټ په جوړیدو به خرڅونه کم شي۔ او مونږ ته به روپۍ بچې شي، چې هغه به مونږ د ملک په نورو د ښیګړو کارونو کښې ولګو، خو دا خبره

همدوئ دروغ کوله کښې ماخو دوئ ته په هغه وخت کښې په پارليمنټ کښې داويلي وو، چې فی لحال ديوونټ په حق کښې حالات سازګار نه دي، نوکه تاسې په رښتيا بچت کول غواړې ي، نودې موجوده شل يونټ په ځای ځا په خپله رانئ خو دا ده چې درې يونټه جوړ کړې، خو د پنجاب دوروړو د خاطره زه دې ته هم تيار يم، چې دوه يونټه جوړ شي، او فی الحال د شلوکروړ روپيو بچ کولو په ځای به لس کروړه روپيه بچ کړو، ولې چې دوئ وائي چې يو يونټ کښې به شل کروړه روپۍ مونږ ته بچ شي، خو چودهري محمد علي، (چې په دغه وخت کښې دخزانې وزير وو) ماله دا ځواب راکړو، چې، نه، لا به يو يونټ جوړيږي اوکښې نو هم دا شل په شل به وي، اوهم په دې خبره زمونږه جګړه خوره شوه،،،

ديونټ خلاف باچا خان او بيا روستو N-A-P دولي خان تر مشرکړی لاندې تر ۱۹۷۰ پورې مبارزه وکړه، دغه منحوس يونټ دايوب خان دزوال نه پس دخلقو په زور، جنرال يحيیٰ خان مات کړو، چې دې کښې P-S-F يعني، پښتونو سټوډنټس فيډريشن، او بلوچ سټوډنټس آرګانائزيشن ډيره کلکه برخه اخستې وه، او ديونټ د ماتيدونه پس دبلوچو په تاريخ کښې دوئ دا ول ځل دپاره دصوبې خاوندان شول، دا يونټ په ظاهره دا تفاق او بچت او وروروولۍ کور

ښکاريدو، خوحقيقت کښې پنجابيانو د پښتنو، بلوچو، اوسندهيانو
په سيمو باندې قبضه کولو منصوبه وه، چې باچاخان ورته
په ښه طريقه بيان کړيده، او ددوئ پټ نيتونه يې په ډاګه
کړي دي، ددې نه دا اندازه لګي چې دوئ څومره مسلماني
لرله. دوئ هغه د خپلو باداراتو په پښه کول، او دغه نورې
صوبې يې د پنجاب کالونۍ جوړولې، د سندهـ په مزکه دوئ
قبضه کول غوښتل، د پښتونخوا بجلي، تمباکو کني او څنګلونه
او سنګ مرمرو باندې يې خيته اچول غوښتل، او د بلوچستان
ګيس، کوئله او نورو معدنياتو باندې، او بل دوئ د پنجاب
د فاضل آبادۍ، د پاره يې د بلوچستان ټول غوښتل، چې
پنجابيان په پنجاب کښې د پرېږي، نو بلوچستان کښې به يې
آبادول، نو يوه ورځ به داسې راشي، چې بلوچ به د ريډ-
انډ نين غوندې ورک شي، او دغه علاقه به هم د پنجابيانو شي.

# د ایوب خان مارشل لاء

# او د باچا خان جمهوري جد وجهد

(۲۷ اکتوبر ۱۹۵۸ ء)

چې څه وخت پنجابیان په دې سازش کښې کامیاب شول، چې د یو یونټ تر نوم لاندې، صوبه سنده، بلوچستان او صوبه سرحد د پنجاب تر واک لاندې راولي، نو د دې سره د باچا خان او ډاکټر خانصاحب سیاسي لارې جدا شوې، چې یو د مغربي پاکستان وزیرعظم شو، هغه بل (باچا خان) جیل ته ولیږلے شو. ۶- ستمبر ۱۹۵۶ کښې یې خپل تاریخي عدالتي بیان په تحریري شکل کښې عدالت ته پیش کړو، لیکن د دې باوجود باچا خان عدالت په جیل کښې واچوه، او بیا ۲۵ جنوري ۱۹۵۷ کښې آزاد شو، او بیا یې N.A.P نیشنل عوامي پارټۍ جوړه کړه. په دې ګوند کښې ټول ضد سامراج او جمهوري غیرفریقه وار سوچ والا خلک او ګوندونه او تنظیمونه راجمع وو، سنده هاري کیمیټۍ، آزاد پاکستان پارټۍ، خدائي خدمتګار، سنده متحده محاذ او د سابقه مشرقي پاکستان نه د بهاشاني عوامي لیګ شامل وو، چې بهاشاني بنګالي د Natoinl Awamy perty

اولنے صدر وو، او دوی دیوئی د ختمه ولو. او پاکستان کښې د آزادو
انتخاباتو کولو او داسلامي او جمهوري حقوقو خیال ساتلو
باندي، زور ورکولو، او یو جمهوري داولس دلاسه منتخب
شوے پارلیمنټ مطالبه یې کوله، دیو آزاد او بې طرفه خارجه
سیاست غوښتنه کوله، د قومي دولت او مرکزي منصفانه.
تقسیم او اولسي عدالت د دوی مطالبې وې، هر بالغ د شهري
په سر د ووټ مطالبه وه. خو دوی دجمهوریت او قومي
حقوقو په لاره کښې له ټولو نه غټ خنډ ون یونټ ګنړلو، چې
دغه د ټولو مرضونو مور وه. او ددې په وجه مهاجر او
پنجابي سول او فوجي نوکر شاهي دغه نورو واړه قومونه
ګیر کړي وو، او د دوی شتمني یې لوټلې، او بل دوی ضد
سامراج وو، دوی دیو آزاد او غیر جانبدار خارجه سیاست
وکالت کولو، چې دغه نوئز پروګرام نه سامراجي مغربي
ملکونو ته قبول ؤ، او نه داخلي د دوی دلالانو ته. داځکه چې
دوی خو پاکستان د دې دپاره نه ؤ جوړ کړے چې روستو
ورته پلار شي، او د مغرب د دښمنانو او د مسلمان اولس هډ رو
په لاس ورشي، او دوی یو آزاد سیاست وکړي. پاکستان خو دوی
د خپل زور شمالي مغرب سرحد د ساتلو د پاره او بل د مشرق
اوسطیٰ او ایران د تیلو لوټلو په غرض جوړ کړے و، او د.
روس خلاف دوی پاکستان د سینټو سیټو فوجي تړونونو کښې

ورگړلا کړے وه، د دوئ خدمت کښې ولاړ وو، د روس خلاف

دوئ د پیښور BOOD/ BEERA ورکړي وو نو دوئ په پاکستان

کښې یو اولسي عوامي حکومت او پارلیمنټ نه شو برداشت کولے

او باچا خان دوئ ته معلوم وُ چې دے څوک دے، د ده

په شخصیت باندې دغه نور د اولس هډرد خلک راجمع وو.

نو سامراج او د دوئ داخلي پاکستاني دلالان وارخطا وو،

چونکه پاکستان په حقیقت کښې د پرنګي د بهور وکراسۍ پیداوار

وُ، او دوئ پاکستاني بابوګانو هم د دوی په پښے کول، اولسي رائې

ته یې د سره اهمیت نه ورکولو، جناح او لیاقت یو په بل پسې زر

لاړل، اوس پاکستان د نوکرشاهي جاګیر جوړ شوے وُ، چې

غلام محمد په ډګر راغئ. هغه تش په نوم جمهوریت ته یې لته

ورکړه، د سول سره فوجي نوکرشاهي هم شامله شوه، چې

ایوب هم کمانډر انچیپ وُ او هم په ۱۹۵٤ کښې وزیر دفاع وُ،

او پرنګیانو سابقه د پښتي کیمشنر سکندر مرزا د پاکستان صدر

شو، چې دچا د لاسه خدائي خدمتګار د پر وهلے شوي او شهیدان

شوي وو، داځکه چې دوئ د پرنګي مخالف او د آزادۍ طرفدار

وو، سکندرمرزا د پرنګي نوکر او د آزادۍ دښمن وُ. نو اوس

پاکستانے واک تول د پرنګي د نوکرانو سره په لاس کښې وُ، دوئ

په جمهوریت او پارلیمنټ باندې هیڅ باور نه درلوده، چې

چا به دون یونټ د ماتولو او د آزادو انتخاباتو مطالبه کوله

هغه د دوئ دښمنان وو، چې دغه کار N.A.P کولو، نور داخلي او خارجي دښمنانو د N.A.P خلاف لاسونه سره یو کړل خپل سول نوکر یعني سکندر مرزا، او فوجي نوکر جنرل ایوب خان یې ولمسول. او پاکستان کښې یې په تاریخ کښې اول ځل د پاره د عوامي سیلاب ایسار ولو د پاره یې د مارشلا بند وتړلو او ملک یې د فوجي قانون لاندې راوستلو. اکتوبر ۱۹۵۸ کښې دوئ ټولې سیاسي پارټۍ بندې کړې او حکومت کښې یې د برخې اخیستو نه منعې کړې، او مشران یې په جیلو کښې بند کړل، دغه نور خو د دوئ یاران وو، مګر اصلي چل یې نیپ ته جوړ کړے وُ، هغه د پښتنو متل چې ,,دغلو خُـه خوږه یاري وي، خو په ویش یې تالا والا شي،، هم دغه چل د سکندر مرزا او ایوب خان وُ. چې ورو ستو فوجیانو سول بیوروکراسۍ نه واک د راټیکو په خپل لاس کښې واخیستو، اکتوبر ۱۹۵۸ - کښې جنرال ایوب خان ترین سکندر مرزا یې بې واکه کړو، او لندن ته یې ولیږلو، هم دغه شان د اول ځل د پاره د پاکستان مشر یو فوجي جنرال شو، چې مارچ ۱۹۶۹ پورې په پاکستان حکومت وکړو، چونکه باچا خان او د دوئ ملګري ډیموکریټ خلق وو، نو دوئ دغه بې لاسَنسه ډرائیور ایوب خان د پاکستان د واکدار په شکل نه منلو، دوئ به د دستور مطابق د ون یونټ (one unite) د ماتولو او جمهوري او انساني

حقوق بحال کولو مطالبې کولې ، او د مارشل لې يعنې دفوجي قانون مخالفت يې کولو، چې ددې سره د ايوب خان او باچاخان تر منځ اختلافات راغلل ، دا ځکه چې باچاخانه ورتر ويل، چې غل يې او د ايوب خان طمعه وه، چې باچاخان به غلې شي، خو باچاخان دده د نوکرېده دپاره خپل اصول نه شو قربانې کولې، دده د مالک خلاف يې جدوجهد کړے وُ ، نودنوکرو يې څرنګې منلے وے . چې باچاخان خپل جدوجهد تيز کړو ، نو امريکې ايوب خان ته وويل: چې دده علاج جيل دے. بس څه وه نه صرف باچاخان بلکې دنيپ نه يې جيلونه ډک کړل ، په بلوچستان کښې يې هغه ظلمونه وکړل ، چې تر دې وخت پورې يې مثال نه وُ ، دفوج او بلوچو تر منځ جنګ جوړ شو ، چې روستو دوئ د بلوچو د مشرانو سره په قرآن شريف قسم پورته کړے وُ ، چې دوئ راشي نو مونږ به هيڅ ورته نه وايو ، مګر پاکستاني حکومت په دوئ قرآن وخوړو، در وغې نه پس يې دوئ ونيول او اوه (۷) لوئ لوئ بلوچ مشران دايوب خان د لاسه پهانسي شول، او هغه شان ۱۷ کسان نور دنيپ خلګ د ـ ايوب خان په دور کښې په جيلونو کښې مړه کړے شول ، او د دوئ ماشومان يې يتيمان او ميرمنې يې کونډې شوې ، او جايئدادونه يې ضبط شول ، دا ځکه چې دوئ ويل چې يونټ دے مات شي ، مونږ ته خپلې صوبې او حقوق راکړئ ، په

ملک کښې د ې جمهوریت وي ، آزا د انتخابات د ې وشي ، دغه ددوئ قصورو ، نو باچا خان او عبدالصمد خان اڅکزئي ، شهید شهزاده عبدالکریم ، او نور مشران په جیلونو کښې جدا جدا وساتل شول هغه ظلمونه یې ورسره وکړل ، چې داسې ددوئ مالک پرنګي هم نه وو کړي.

چې د نیپ نه بې غمه شول ، نو دغه نور خو تول پریو شکل او په بل شکل ددوئ خلک وو ، ایوب خان ورمېته کنونیشن مسلم لیګ جوړ کړو ، دغه د پرنګي دلالان او د سرسید احمد خان لمسي تول بیا پکښې راجمع شول ، او س ددوئ پلار جناح او لیاقت نه وو ، بلکې یو فوجي جنرال وو ، ددې په ذریعه دوئ دپاکستان په خوږو اوترخو باندې قبضه وکړه . پر پاکستان کښې د جمهوریت په نوم بنیا دي - جمهوریت رواج کړے نشو ، چې دغه تش دغولولو دپاره یوه پلمه وه ، د مسلسل پاکستان جیلونو کښې ساتلو په وجه ، د باچا خان صحت ډېر خراب شوے و ، د مثال په توګه پرنګي دخپل حکومت په دوران کښې د ۱۹۱۹ نه تر ۱۹۴۷ پورې پنځلس کاله باچا خان جیل کښې ساتلے و ، او دپاکستان د زیږیدو نه څه موده پس یعنې جون ۱۹۴۸ کښې بندي کړو او ۱۹۶۴ پورې یې ۱۷ اولس کاله جیل کښې وساتو ، دغه د اسلام قلعه وه ، او د مسلمان حکومت و ، او دغه امیرالمومنین و ، دده قصور دغه

و، چې ده پاکستان نه مخکښې د هند د مسلمانانو د تقسیم مخالفت کړے و،
او پاکستان نه پس یې عوامي حکومت، آزاد پارلیمنټ او انتها یا تو
غیر جانبداره سیاست، او د دولت د مناسب تقسیم مطالبه یې کوله
دغه د ده او د N.A.P ټول قصور و، چونکه پاکستان باندې غلو
قبضه کړې وه، نو دوی داسې خلک او ګوندونه نه شو برداشت،
کولے، چې د دوی په لوټ مارېې اعتراض کولو، او د دوی
د نائیکانو خلاف به یې خبرې کولې. هم دغه وجه وه چې د
پاکستاني سامراجي (INSTITUTIONS) یعنې سول او فوجي
د پرنګي په وخت هم دوی د خدائی خدمتګارو هډوکي مات
کړي وو، هغه تها نیدار او د پټې کمشنر اوس لوی لوی خلک و
نو دوی خپل سلوک او چلن کښې د خدائی خدمتګارو متعلق
هیڅ بدلون نه وو راوستے، بلکې د سینځه او کرکې سوره
هم زیاته کړې وه. هم دغه وجه وه چې دوی جمهوریت
پسنده خلک نه شو برداشت کولے. دا ځکه چې جمهوریت
کښې به اولسي واک و، او رڼا به وه. نو غل خو هله غلا کولے
شي چې تیاره وي، نو دوی هر جمهوري چراغ وژلو، او
تیاره یې جوړوله، چې دوی ښه لوټ مار وکړي، او دغه
ټول کار دوی د اسلام او پاکستان د ښادر لاندې کولو، چونکه
باچاخان یوه رڼا وه، نو دوی هر ممکن کوشش کولو، چې دغه
رڼا خلکو ته خوره نشي، او یو کوټ کښې پټه وساتله شي، هغه کوټ

جیل وُ ، چې دباچاخان صحت جیل کښې ډېر خراب شو او

بل ایوب خان بهر پتول جمهوري قوتونه بنه وټکول ، د پاکستان

په کـدېـه یې ځان تپنګ او کلک محسوس کړو ، نو بیا ورته انسانیت

وریاد شو، دا ځکه چې مشاورینو ( Adviseers ) مشوره ورکړې

وه ، چې باچاخان دعلاج دپاره چې بهر لاړ شي ، نو مونږ ته فایده

ده ، دخلکو نه به کټ شي ، او داخلي تماس به یې ختم شي ، اومونږ

به ورپسې پروپیګنډا کوو ، چې بهر لاړو مزې کوي ، خپل پښتانه

ځیني هیرشول ، او بل ددوئ خیال وُ ، چې خدائي خدمتګاران اوس

پټول ، دشپیتو(٦٠) اوښتي دي ، نو دوئ کښې هغه انرجي پاتې نه ده

چې زمونږ دپاره دمصیبت وجه شي ، او بل دباچاخان دتګ پروجه

به د " N.A.P » لیډرشپ کمزوړ شي، نو حقیقت کښې یې دغه

مقصدونه په نظر کښې وو ، مګر په ظاهره دوئ داانسان دوستۍ

مظاهره کوله ، او دغه تصور به یې جوړولو ، چې ګنې دوئ دباچا

خان دصحت دخرابۍ په وجه بې قراره دي ، چې دغه پټول مګر

وُ دوئ خپل فائده او نقصان ته کتل ، د دوئ خیال وُ چې باچاخان

بهر تګ په سیاسي توګه ددوئ دپاره فائده‌من دے ، او بل پر

۱۹٦۲ کښې ایمنسټي انټرنشنل باچاخان یو مثالي قیدي علان کړې

وه ، او بل به ځائي په ځائي جواهرلال نهرو هم دباچاخان سره

د بې انصافۍ خلاف خبرې کولې ، او افغان حکومت هم دباچا

خان د رهایۍ روایتي مطالبې کولې ، چې سرې تر پوره درکځ

نه لګیدو ، چې کابل حکومت یې په قید خوشحاله دے اوکه په آزادۍ مګر د مکي نه یې او پښتنو د غولو ، دپاره یې چغې ، جوړې وې ، اوپیل ۱۹۶۳ کښې د داود خان حکومت ختم شوے و ، د پښتونستان مسله سړه شوې وه ، او دغه ټول حالات سره یوځائ شول ، ایوب خان حکومت باچا خان ته د علاج دپاره بهرته د تګ اجازت ورکړو ، او ستمبر ۱۹۶٤ بهرته لاړو ، یعنې انګلینډ او ۱۲ دسمبر ۱۹۶٤ کښې کابل افغانستان ته راغلو او دسمبر ۱۹۷۲ پورې افغانستان کښې پاتې شو ، د باچا خان متعلق ریمینټی انټرنیشنل بیان په جرمني ژبه :

Der erste war 1961 ein staatenloser Suedafrikaner, Christopher Payi, gewesen. Payi nachfolger fuer 1962 als >>Gefangener des Jahres>> war Abdul Ghaffar Khan, der 72 jaehrige Leiter einer religioes-nationalen Sekte in Nordwesten Pakistan, der seit 1947, als Pakistan selbstaendig wurde, eingesperrt war. Seine >>>Verbrechen >>> war, dass er fuer die vier Millionen Pathaner die Unabhaengigkeit gefordert hat, fuer einen Stamm freiheitliebender Menschen, der dieses Gebiet bevoelkerten. Amnesty International startete eine intensive Kampagne fuer Abdul Ghaffar Khan, und dieser wurde 1964 in Freiheit gesetzt.

# باچاخان په افغانستان کښې

## (۱۹۶۴ - ۱۹۷۲ء)

د دغه قیصه خو بیان شوه، چې ستمبر ۱۹٦٤ کښې باچاخان ته حکومت پاکستان د علاج د پاره د وړچانړ تګ اجازت ورکړو باچاخان ستمبر ۱۹٦٤ کښې لندن ته لاړو، ډاکټرانو مشوره ورکړه، چې په ژمي کښې امریکې کلوفورنیا ته لاړ شه، د هغې ځائ موسم ښه دے، د ستاسو د پاره موزون دے، د باچاخان د پاره مشهور پښتون ډاکټر اورنګزیب منډړ وهلي چې باچاخان امریکه ته بوځي، ډاکټر اورنګزیب خان په امریکه کښې پښتنو جرګه جوړه کړې وه، چې غټ مقصد یې د پښتنو سیاسي، کلتوري او اقتصادي حقوقو د پاره کوشش وُ، او د نړۍ په سطحه یې نورو قومونه د پښتنو سره د پاکستان حکومت د ظلمونه خبرول، نو د ے ن پښتون کوشش وکړو مګر امریکې ورله ویزه ورنکړه.

د کابل ته تګ نه مخکښې بايد د افغانستان په سياست باندې لږه رڼا واچولى شي، د افغانستان سياست د امير دوست محمد خان د وخت نه د لاندې پښتنو سره هميشه د منافقت په بنياد شوے

دے ، دوئ ته دلاندې پښتانه هله وریاد شوي دي چې دمحمدزیو خپل تخت او عشن او عشرت په خطره کښې لوید لے دے ، چې دغم کښې دافغان قوم هیڅ قصور نشته دغه منافقت تش دشاهي کورنۍ دۍ.

چې څه وخت دویم جنګ عظیم کښې پرنګیان په مشرق بعید کښې جاپانیانو په مخه کړي وو، نو دوئ په ۱۹٤۲ کښې دافغان شاهي حکومت سره خبره کړې وه ، چې موږ به پښتانه او بلوچ تاسو ته درکړو ، او تاسو یې بیا په هند کښې دجاپان خلاف وجنګوئ په دې شرط چې موږ نه هند پاتې کیږي ، دې سکیم ته ظاهرشاه او دده ترونه لکه وزیرعظم محمد هاشم خان او نور ټول تیار وو، خو دې وخت کښې لاندې پښتنو ځانونه دخدائ خدمتګارو په شکل کښې منظم کړي وو، نو دپرنګي او افغاني واکدارانو دپاره دوئ خطرناک وو، نو پرنګیانو او افغاني حکومت په ګډه دباچاخان او خدائ خدمتګارو خلاف یوه منصوبه جوړه کړه ، چې د هغې منصوبې یا دولې مشر مشهور مجاهد حاجي ترنګروزوئ باچاکل و ، چې دوئ دافغان حکومت په وینا او دپرنګي په لارښوونه دباچاخان او خدائ خدمتګارو دانګرو رسوخ دکمولو دپاره په پښتنو کښې کار شروع کړے ؤ. خو دې کښې جاپان ددې ، قابل نه شو چې پرنګیان دهند نه وباسي ، هم دغه شان پرنګي افغاني منصوبه دخدائ خدمتګارو په خلاف په نیمایې کښې پاتې

شوه خو نيـوتـه معلوم شول ، داځکه چې افغان شاهي کورنۍ په پښـتونکښې قومي تحريک د خان دپاره مرګ ګڼلو ، که څه هم دوئ ددې شي اظهار په ډاګه نه کولو، چې پاکستان جوړ شو نو افغان حکومت اوهند حکومت دپښتونستان ډهول ته سپېـ ورکړي که ځکه نکړس ، ټمونږ ه سره مينه وائي ، نو تقسيم به يې نرمنلو خو دوئ ته دکښېې خلاف يوه پلمه پکار وه، اوافغاني شاهي، حکومت ته پښـتونستان نعره پکار وه ،چې يو اړخ ته يې د افغانسـتان داخل پښتانه وغولول ، اوبل اړخ ته يې دپښتونستان په مسئله باندې دهند نه روپۍ اخيستې ،چې سردارانو مزې په کولې ، اوبل ډېر ماهرانه چل دغه وُ ،چې دوئ به په جوته د مکر مچهو اوښکې تويولې ، مګرپه حقيقت کښې دوئ دخدای څـه منکاروو دغورځنګ په نکولـو خوشحاله وو ،داځکه چې دوئ ۱۹٤۲ کښې دپرنګي ،سره لاس يوکړے وه ، نوپاکستان سره يې مرضي وه ، مګر دغه دوی په ډګر نه شوکولے ، داځکه چې دوئ سره ، ويره وه ، چې ددې به بيا داخل افغانستان کښې سخت ردعمل وي ، خو دوئ دغه کار دخپلو قبائلي ملکانو اوجاسوسانو په ذريعه کولو،چې غټ مرکـز ونه يې رياست قبائيل دپښتونستان ريډيو ،اوپېښـور اوکوټه کښې دافغان کونسل خانې وې،چې څـه وخت ايوب خان په قدرت راغئ ،چونکه دے داسې پښتون وُ لکه دکابل محمدزيان ، نو دوئ وارخطا شول ،داځکه چې ،

ایوب خان به د شرافت نه باچاخان ته کاکا ویلې، د دې مطلب دا نه ؤ چې د کاکا د سیاست سره یې اتفاق ؤ، نو محمدزیان وار خطا شوي وو، چې هسې نه چې پښتون صدر پاکستان او پښتون لیډر باچا خان رانزدې یو ځائ نه شي، او راته ونه وايي چې هلکه تاسو د څه پښتونستان غواړئ، چې پښتو هم نه درځي، نو افغان حکومت، د ایوب خان او باچاخان ترمنځ د نفرت د کرلو د پاره کار شروع کړو، پښتون کونسلر یې پیښور ته د دې غرض د پاره راولیږلو، چې د غه بې اعتمادي نوره هم سوا کړي، دے دلال او ایجنټ پښتون کونسلر به د ځان پوسټرې چھاپ کولې چې په غیر ذمه وار مواد پکښې وو، چې د ټیپ او باچاخان د سیاست سره یې هیڅ تعلق نه درلوده، د غه یې د خپلو جاسوسانو په ذریعه خورولې، او ځائ په ځائ یې بمونه خلاصول، چې د غه کار هم د خدائي خدمتګارو د عدم تشدد د سیاست خلاف ؤ نو د پښتونو د غورځنګ خلاف افغاني شاهي، نوکري شاهي او مهاجر او پنجابي پاکستاني نوکر شاهي سره لاس و نه یو کړل، د ایوب خان او باچاخان ترمنځ یې لرې وتکول، که څه هم باچاخان او ایوب خان په خپل عمرکښې په سیاسي نکه دوئ ملګري کیدا ے نه شول، مګر د دې باوجود مهاجر او پنجابیان او کابلي پارسي بانه بیورکرسي اعتبار نه کیدو، نو د دې

په وجه ایوب خان ۱۹۶۱ کښې باچا خان بندي کړو، چې د دې سره هغه افغاني پروپیګنډې وړکې وشوې، هغه کونسل بدل شو، د دې کار په بدل کښې، یې انډونیشیاء کښې سفیر کړو، افغان حکومت د پښتون لیډر او پښتون جنرال په فتح کښې د بډه جوړولو یا ندې کامیاب شول. باچا خان نه بلکې ټول نیپ نه یې ځانونه خلاص شول مګر د مکر د پاره به یې تړلې کوله، هم د دې پس منظر کښې چې باچا خان ستمبر ۱۹۶٤ کښې لندن ته لاړو، نو کابل په محمد زیانو بیا تبه ولګیده چې اوس باچا خان د پاکستان نه بهر دے، چې داسې ونشي چې چیرته یورپ یا عربو ملکونو کښې یعنې خاصکر، مصر کښې ځان ته د پښتونستان د پاره مرکز جوړ نکړي، چې د غه شان به ځونږ نه آزاد وي، او مونږ به د پښتونستان په تحریک باندې ګرفت کمزورې شي، نو داسې کول پکار دي چې هر څرنګې چې وي خو باچا خان افغانستان ته راوستل پکار دي، چې زمونږ ترسینې لاندې وي، چې د ټولو ناستو پاستو نه خبریږي، دا ځکه که باچا خان مصر کښې پاتې وے نو چې د هغه وخت مشر جمال عبدالناصر هم د باچا خان غوندې د سامراج دښمن وُ، نو د دوئ سره ډار پیدا شو، چې نهرو او باچا خان د هند د آزادۍ ملګري دي، نهرو او جمال عبدالناصر صدر مصر د غیر جانبدار غورځنګ ملګري

دې چې داسې وله شي چې د نهرو او جمال ناصر دملګرتيا
په وجه باچا خان په مصر کښې خپل مرکز جوړ نه کړي. لکه يو
بل افغان سيدجمال الدين افغاني مصريانو سائلې ؤ، نو باچا خان
په مصر کښې پاتې کيدل، د شاهي کابلي کورنۍ دپاره لويه
خطره وه، او لې ددوئ دباچاخان متعلق دغه خيال ؤچې
پاکستان کښې بندي شه دے، مګر اوس دغه بله د مصر
خطره وه، نو دوئ داسې پروګرام جوړ کړو، چې باچا
خان چې په هره طريقه وي د مصر نه افغانستان ته راولي
او تر خپلې سينې يې لاندې کړي. هغه داسې چې دوئ دمګر
جنو او ددوئ دايجنټانو پښتنو او افغانانو يو وفد ورولېږلو
او افغاني سفير ورسره مستقيله رابطه وه، چې باچاخان
ته ميينت وکړي، چې خپل وطن او هيواد افغانستان ته لاړشي.
که چيرې باچاخان، لندن، جرمني، فرانسې يا اټلي،
او يا مصر کښې پاتې شوے وے، نو زموږ د پښتنو دپاره
به يو لوئ مرکز جوړ شوے ؤ، چې دغه به ځان له ؤ، د
افغانستان او پاکستان د ساز شونو نه به لرې ؤ، او دباچا-
خان رابطه به د نړۍ ملي تحريکونو سره ډائرکټ وه، او يو
اخبار جارې کول او نشراعت به آزاد وو، پدې وختونو
کښې افريقه او ايشا کښې نوي نوي ملکونه آزاديدل، او دملي
جمهوري تحريکونو زور ؤ. نو که سوشلست کيمپ وے

يا سرمايه دار كيمپ موږ به ددې قابل وے چې خپل آوان مو دوئ ته دبل چاپه خوله نه بلکه پخپله رسولے شو زموږ ناسته پاسته او تعلقات به پټ وو، د ټګئ راتګئ اساني به وه، د هندي، پاکستاني او افغاني دسياست دچکرنه به آزادوو، دغه به زموږ دپاره مرکز جوړ شوے وے نو ددې خطرې نه چې باچا خان مرکزپه پهوکښې جوړ نه کړي، افغان حکومتا دغه مکرجنه او شيطانه ټوله پسې وليږله، او باچا خان ته په ژړا شول، چې باچا خانه ته خو دټولو افغانانو فخرېې ته خپل هيواد، کور او تا ټوبئ لرې او خپل قوم لرې، موږ ه دستاسو د ديدن او خدمت پسې ړنديږو، عليحضرت يعني ظاهرشاه تاسوته د پلار مقام درکوي د ټول افغان ملت او عليحضرت خواهش دے، چې باچاخان چې څه غواړي هغه به وړته ملوشي، د پښتونستان دپاره سم ځا افغانستان دے، چې تاسو به محکوم پښتونستان ته بڼ دې وئ، او هروخت به دراېطې څه تکليف نه وي، او د خداى شکر دے نن سبا دافغانستان حکومت جهاز لري، توپ لري او جديد فوج لري دغه ټول دستاسو دحکم انتظار کوي، نو د خداى دپاره افغانستان ته راشه، سيد جمال الدين افغان تراوسه پورې زموږ د زړه داغ دے. چې دې دخپل هيواد نه لرې مصر او ترکيه کښې ژوند وکړو د ده دثمراتو نه موږ مستفيد نه شو، او دغه زموږ خواهش دے، چې دستاسو برکتي وجود نه موږ فايده واخلو، چې د

سید جمال الدین افغان غوندې تاسو هم که په عربو یا یورپ کښې پاتې شوئ، نو ستاسو، خوار غریب اولس به بې برخې پاتې شي او ستاسو علاج په خپل هیواد کښې بنه دے، چې دوئ دومره ټینګ پاتې او راغاړول یې وکړل، نو باچا خان اسان ؤ، دده زړه هم نرے شو، سوچ یې وکړو چې دوئ دومره په مینه او په اخلاص ځما د ورتګ په انتظار دي، چې باچا نه ترپوعام افغان پورې، نو راشه ورسره کابل ته لاړ شه، چې باچا خان یې راضي کړو، نو دغو مکرجنو ته د شپې دخوشالۍ نه خوب نه ورتلو، داځکه چې یوه لویه خطره دوئ لره په چالاکۍ سره د مخې نه لرې کړه، افغان سفیر افغان حکومت خبر کړو، چې باچا خان راضي شو، درځي، نو دوئ دده سره خوشحال ؤو، چې د باچا خان ذ ستړي مشي د پاره دافغان وزیرعظم سره دخپلې کابینې په هوائي ډګر کابل ورته ولاړ وؤ، او ډیر زیات اولسي خلک هم راغلی وو، چې څه وخت ۱۲ دسمبر ۱۹۶٤ دباچاخان هوایي جهاز په کابل راښکاره شو، او بیا لږ رو. راښکته کیدو، نو دخلکو بې صبري زیاته شوه، چې څه وخت، جهاز کوز او ودرید و، باچا خان راښکاره شو، نو دکابل فضا فخر افغان ژنده باد او پښتونستان ژنده باد نعرو نه ولړزیده، افغاني وزیر عظم ډاکټر یوسف کشمرئ وړو وړاندے شو، باچا خان ته یې تو د هرکلي وکړو، او ورسره افغان اولس د ژنده باد

چیغې پورته کړې، په شاهي محل کښې ظاهرشاه خیرشوچې باچاخان په خیریت سره راورسیدو، نوهلته محمدزیان په آرام شول او د ظاهرشاه دخوشحالۍ نه ځائ نه کیدو، چې اوس چې باچاخان څه کوي زموږ دسیې لاندې به یې کوي، نو دخوشحالۍ نه یې ملکه حمیره ته وویل، چې زن رابانده چاینکي غوښه وخوروه زن مې هیله زړه په ارام شو، همدغه شان دوئ په دې کامیاب شول، باچاخان دوئ دیورپ یا عربو نه خپل کنترول لاندې کړو، که څه هم دوئ باچاخان ته هرقسم ارام مهیاکړو، مګرد کوم شي په تلاش کښې وُ، هغه دوئ پوره نه کړه، بلکې روستو روړو باچاخان ته ددوئ د مکرخیرې وربنکاره شوې، اوس هرچا د باچاخان سره لیدل، هغه به ددوئ دخفیه پولیسو په ریکارډ کښې وو، دده خدمتګار او ډرائیور ته واخله تر لنګرې پورې د خفیه پولیسوخلک وو، دوئ اول سرکښې ډېرې وعدې وکړې، لکه څرنګې ددوئ عادت دے، مګریوه یې هم پوره نه کړه بلکې دخپلو ایجنټانو په ذریعه به دوئ باچاخان پسې خبرې کولې داځکه چې ددوئ خیال وُ چې باچاخان به په ارام ناست وي، - تښته روړه به خوري، لکه دانور پښتونستانیان، مګرباچاخان افغانستان ته روړه پسې نه وو تلے، دده مطلب خدمت و خو افغان حکومت به همیشه ډېره په استاذه سره د باچاخان لاره نیوله، داځکه چې ددوئ مقصد دغه وچې دپښتونستان

تحریک مرکز په بهر کښې جوړ نه شي ، نور یې د باچاخان سره هیڅ مینه نه وه ، اول سر کښې باچاخان د ټول افغانستان دوره وکړې او هر ځائ به لوئ لوئ استقبالونه کیدل ، مگر رو رو ، دغه دروازې بندیدې ، خو باچاخان داسې شخصیت نه وو چې ځوک یې په بوتل کښې بند کړي ، نو د دې په وجه به کله ناکله خبره خفګان ته لاړه ، او داکوشش شروع شو ، چې باچا خان ته مشکلات جوړ کړي ، یو کوشش دغه ؤ چې ځینې داسې پښتانه وو ، چې په ظاهره به یې د پښتونستان دعوی کوله ، او په پټه به د حکومت خلک وو. د باچاخان سره به لګه سورے ګرځیدل ، د ده وخت به یې په فضولو خبرو ضایع کولو ، او بل روئ داکوشش کولو ، چې باچاخان او ایوب خان اچکزي ترمینځ خفګان راولي ، داځکه چې ایوب خان اڅکزی د ۱۹۵۲ نه تر ۱۹۶٤ پورې په کابل کښې د پښتونستان « UNDISPUTED مشر ؤ ، چې باچاخان راغئ ، نو افغاني بهورا کراسه تګ راتګ د باچاخان سره کړو ، پښتونستان ستاک مارکیټ کښې راپوب. خان مرحوم قمت راپه غور رځیدو شو ، چې شیطانانو او شاهي جاسوسانو به لمساوه چې دغه بې قدري د باچاخان په وجه ده ، او د ده پوزشن داول نه دویم شو ، اول تقریر یا خبره به د باچاخان سره وه ، بیا به د ده نمبر وو ، نو افغاني او پاکستاني ایجنټانو داکوشش کولو ، چې د پښتونستان تحریک په شمالي او

اوجنوبي تقسيم کړي، یا په بله معنیٰ، په قندهاري او کوټه باندې او بل اړخ ته پېښور او ننګرهار باندې، یعنې دوئ به دا کوشش وُ چې باچاخان د مشرقي مشر کړي، او ایوب خان د جنوبي چې روستو دغه مرض د عبدالصمدخان شهید په وجه نور هم ژور شو، او ورسره د خلقي او پرچمي مسئله هم راغله، چې دوئ هم پرې جنبې کولے، او د دې مسله د کلاسیک قبائیلي پښتونستاني ملکانو وه، دا ځکه چې باچاخان افغانستان ته لاړو، ورپسې د ۱۹۶۵ جنګ د هند او د پاکستان ترمنځ وشو، او د هند دلچسپي د پښتونستان مسئله کښې کمه شوه، او روس کښې هم قیادت بدل شو، او داودخان هم تلے وو، او بل کابل د اسلام آباد سره تعلق ښه کولو، دوئ ۱۹۶۵ کښې پاکستان ته کارنټي ورکړې وه، چې تاسو په سره سینه د هند سره جنګ کوئ، زمونږ له اړخه خاطرجمع لرئ، بلکه افغانستان د جنګ په دوران کښې هند ته غوږ نه ورے کړے وُ، که چیرد وئ بیا په کوهاټ او پېښور باندې حملې وکړي، نو افغاني هوائي فوج به حرکت کښې راشي، نو د دې نولو خبرو په وجه د پښتونستان په نوم افغاني حکومت ته نورې پیسې نه هند ورکولې، او نه بل چا د دې سره د قبائیلي ملکانو ما جبو نه هم کمزوري شولې، خو افغان حکومت به د خپلو جاسوسانو په ذریعه قبائیلي ملکان لمسول او ورته ویل به یې چې اوس مونږ څه وکړو د پښتونستان په خوږ و او ترخو باندې باچاخان ناسته دے.

چې دغه سل په سلوکښې دروغ وو، نو قبائیلي ملکان به باچاخان ته بخښیدل.

او دریمه مسئله دغه وه چې هغه قبائیلي ملکان چې په خوشحال خان کالج کښې سبق ویلو، ددوئ نه خپل قومي مقصد ورک شوے وُ، او کمونستي ډلو یعنې خلق او پرچم کښې تقسیم وو، او دوئ ځانونه روښنفکران بلل، او روښن فکران څه وو، بس داکتوبر انقلاب، او لینن نه به یې راشروع وکړه هم په دوئ به یې ختمه کړه، نه د اکتوبر نه مخښکې څه ورته معلوم وو، او نه داکتوبر دانقلاب نه پس. نو دوئ ته به د باچاخان او خدائي خدمتګارو لاړه پس ماندګي ښکاریده. دوئ به ټوله مسئله ترې طبقاتي مبارزه خوله همه غه دریم مرض وُ، دوئ دعوئ د پښتونستان دقبائیلي سیموکوله، سبق چا په کابل کښې او چا روس یا مشرقي یورپ یا جرمنۍ کښې ویلے وُ، او دافغان دنوکرشاهي پوزې وې، دوئ دویلې دوا ړه غاړې خوړې، چې د افغان حکومت نوکرئ به وې بیا به دوئ ور ته افغانان شول، چې د پښتونستان مسئله به شوه بیا به سر د رومیساله به دوئ پښتونستاني وو، دنیکه دوخت دغزاګانو حوالې به یې ورکولې، او په سیاسي توګه دقوم پرستۍ نه دوئ مخکښې کمونیزم ته تللي وو، نو دغه عجیبه مخلوق وُ. دوئ نه د پښتونستان نه خبر وو، او نه دافغانستان د معاشرې د جوړښت نه، بس دوئ خپلې تیورئ وایستې وې، دهغې په بنسټ

به يې خيرونې کولې چې د وطن او خلکو سره يې هيڅ سمون نه خوړ

بس د خدای په قهر يې ځانونه ککړ کړي وو، که چيرې به چا په

غلطۍ سره د ده په طبقاتي طلم کښې ګوتې ووهلې نو بيا ورته تينګ

شه، سلو کالو پورې يې د رته بعض ساتلو ، نو دغه يلا وبا وه،

چې دوئ به د باچا خان د لارې مخالفت کولو ، چې د ې ډله کښې .

زموږ د کوزې خوا ځينې انقلابيان هم وو، خو دوئ ډېر

چالاک وو ، د باچا خان مخالفت يې د نوږ انقلاب په وخت کښې کولو

خو چې يوه شول چې د کمونستانو مور مړي ، نو ځانونه يې ړو،

ړو بيا د باچا خان قطار ته سم کړل ، ما ته حاجي نادر خان ووئيل:

چې د باچا خان د ملګرتيا په وجه افغان حکومت زما تنخوا او مراعات-

بند کړي وو، چې زه بيا هم سم نه شوم ، او د باچا خان د ملګرتيا

ته وانه وښتم ، نو دوئ حيران وو، چې څه راسره وکړي، نو بيا چې

وزير عظم بدل شو، ځما تنخوا يې بيا خلاصه کړه ، بيا يې ووئيل،

چې موږ د باچا خان په مشرګړه د پښتونستان د مسئلې په خاطر

ديو وفد په شکل کښې افغاني وزير عظم هاشم ميوندوال ته ورغلو

ده د باچا خان د عزت د راکمولو کوشش داسې وکړو، چې بهر

په چمن کښې يې يوه کرسۍ کېښوه ، په هغه باندې دے کښيناستو

او د باچا خان کرسۍ ته وه ، نو موږه بشمول د باچا خان پټول ولاړوو

ور سره خبرې وکړي، او دغه دله ناست وُ ، د ده خيال وو چې باچا

خان به سره د وفده په کبلو کښې ګونډې ولګوي، او دغه شانبه

PRIMi TiVE

باچا خان خودي، ته تيس ورسي دغه نمونه (
وزيرعظمان وو،،.

حاجي صاحب وويل: چې وزيرعظمى نه مخكښې به باچاخان ځاى دارالامان ته راغئ نو هغې پورې به يې سترګى نيولې او خيته به يې ګروله، چې د ډوډۍ وخت به راغئ بيا به يې په مړو سترګو ډوډۍ ته پلټه ووهلې او پليتها يعنې تالى به يې ورپسې وختولو، چې وزيرعظم شو، بيا يې دغه حال وو، داځكه چې افغان شاهي كورنۍ غوښتل، او ده د خپلې نوكرۍ، دپاره داسې غورځېدلې كاروته كول، او داسې په هزارها مثالونه دي.

مانه احمدكاكا خداى دې وبخښي وويل: چې بچو زه دد ې افغانانو افسرانو نه كله نه كله دومره تنګ شم، زړه مې راډک شي، او سر مې چكر ووهي، او كله نه كله په زړه كښې كړل ريبل شروع كړم، چې لاړ شه د طورخم په مزي دپاسه دپاكستان، جناح اوترسرسيد احمدخان پورې د زنده باد داسې چغې وواهه چې زړه مې سپک شي، خو بيا سوچ وكړم چې په دې پښتو حراميتوبونو خو ته خبريې، لاندې خلګ خو نه دي خبر، د ټول عمر عبادت به دې لاړ شي، داځكه چې افغان حكومت به ووائي، چې موږ ته معلوم وو، دپاكستان - جاسوس وُ، اوس ښه دے چې پخپله يې چغې وكړې، نو لاندې پښتو كښې به خلګ ټول راباندې لعنت ووايي، چې ده لاځان ته د باچاخان خدمتګار او اعتباري سړے ويلو، هرچاته خو

دغه صفايي ډېر مشکله ده چې زه وکړم چې ما دغه چغې ولې وکړې نو د دې سره به بیا ویریدم . د دوی حرامیتوبو ته به مې د صبر کولې واچولې».

ما ته حاجي صاحب نادرخان یوه بله خبره کوله : چې د کونټې نه صادق کاسي راغلی وو، دده او د ریاست قبائل رئيس سلیمان خیل ترمنځ خبرې ترخې شوې ، نو سلیمان خیل ورته دهکي ورکړه ، چې ما پیژنې ، زه دومره قوت لرم ، چې لاس نیولې به دې په سپین بولدک پاکستان ته ورواړوم». حاجي وویل چې صادق ورته په ځواب کښې وویل : چې دغه خو به ایله د سړیتوب کار وکړې . سلیمان خیل ورته وویل : چې څنګې ، صادق ورته وویل : چې ترتن ورځې پورې پاکستان خوموږ ته د دې ډېوي چې مونږه د افغانستان ایجنټان یو، نو چې تاسې مو لاس تړلي په چمن ورواړ وئ ، نو زموږ د پاره به د دې نه غټ کار نور تاسو څه وکړئ ،

افغاني افسران په خوله کښې ډېر پوچ دي، خاصکر د سرحداتو والا . دوی تقریباً ټول د پاکستان د سفارت خانې جاسوسان دي ، صادق کاسي چې چالیدلے وي، دده په څیر غیرتي او باجراته ځوانان به کم پیداشي ، خو عمرې ته ورپرلندو نه شهید کړے شو ، کښې ده به د پښتنو په ملي تاریخ کښې یو رول لوبولے وے ، نو دغه حال د افغانستان وُ .

د دوئ د باچا خان سره پوره تال امداد دغه وُ، چې د پښتونستان په ورځ به یې کوم تقریر کولو، هغه به دوئ چهاپ کړو، تقریر څه وُ، د دنیا سخت ترین افسانه به تیریدلو، بیا به دوئ چهاپ کړو، او غازي سټیډیم کښې د وېلو اجازت وُ، د قبائیلو د ریاست د مامور یعنې کلرکانو او داخله تر رسن، وزیر خارجه، وزیر اعظم، ظاهرشاه او ملکې حمیرے پورې به دوئ کتو، چې چیرته داسې تکئ پکښې راشي چې دوئ ته څېنې تکلیف ورسي، دغه د دوئ د پښتو ورونو د پاره امداد وُ، چې داسې نمونه چهاپي، پښتنو کښې هره کوڅه کښې سړئ چهاپ کولے شي، نو دوئ به د دې نه غټ شے جوړ کړي.

لنډه دا چې باچاخان سره چې کومې وعدې شوې وې، یوه هم دوئ پوره نه کړه، پوره حق پرېږده اولته د باچاخان د شخصیت د غور څولو کوششونه یې کول، په دې باندې لاندې مشران پوهه خبر وو، چې کابل څه دے او د دوئ پښتونستان څه دے، مگر دغه داسې نازکې قیصې وې چې دوئ په چوک یادګار کښې به تقریر نشو کولے، داځکه چې دغه کارونه افغان اولس نه کول، بلکې د دوئ حکومت کول، نو که چیرې زموږ مشرانو د دې مخالفت کړے وے، نو لاندې پښتو خوا کښې غلط فهمي څېنې جوړیدې، نو بیا د لاندې خلکو نفرت به د ټولو افغانانو نه راتلو، چې پښتنو مشرانو، دغه د کابل د واکدارانو "PRimiTIVE"

چالاکي باندې سترګي پټولې، او نه يې غوښتل چې دا لاندې او باندې پښتنو ترمنځ بې باوري را شي، مګر په حقيقت کښې چې د چالبازه هم تجربه دافغان بهو را کراسه سره وه هغه په دې نازکتونو پوهيدل.

يو ځل افغان حکومت د کوټې څوک سياسي ليډر جشن کابل ته دعوت کړے ؤ، نو اول ځل يې وو، ډېر قدر يې وشو، خو دغه ډېر چالاک او هوښيار سړے ؤ، افغاني نوکرشاهي يې ژر پيژندلے ؤ، نو چې بل کال، بيا دوئ دعوت کړو، دے نه لاړو ورپسې بيا خوځله دعوت کړے ؤ دے نه تلو، اخير افغان کونسلر [illegible] ورپسې پخپله تلے ؤ، خو ده انکار کړے ؤ، افغان کونسلر [illegible] دانکار علت پوښتنه کړې وه، ده ورته ويلي وو: چې صاف خبره دغه ده، چې دستاسو دافغانانو عادت دے، چې دچائ اوله پياله خوږه ورکوئ، بيا دوستو پتول چاينکئ ترېخ په تښي، نو ما خوږه پياله تښلې ده، ترخه چاينک ته نه ځم، افغان کونسلر پوه شوے ؤ، چې چائ او چاينک نه دده مقصد څه دے.

په دې خوږه پياله پسې د بلوچستان مشهور پښتون ليډر محمد ايوب خان اڅکزي تلے ؤ، افغان حکومت يو وعده ورسره پوره نه کړه دغه دده متعلق چې زه څه ليکم ددې خبرې زه پخپله شاهد يم.

محمد ايوب خان ډېر لوئ پښتون ؤ او ډېر ربښتني سړے

وُ، دروغ، دهوکې او چاپلوسۍ د مرض نه بالکل پاکُ وُ دے
بیمار وُ، د کابل وزیر اکبرخان په هسپتال کښې داخل وُ، نن ه د
اجمل خټکُ صاحب سره د ده پوښتنې ته لاړم، او یو راسره شیر محمد
دسوات وُ، چې نن سبا وکیل دے، هغه وخت مونږه په پښتون
ستوډنس فیډریشن کښې وو، دخان صاحب سره د سرحداتو معین چې
ورڅک وُ په قوم، هم ناست وُ، « دغه دصیلارداود خان وختو « -
خان صاحب دخټکُ صاحب نه یې تپوس وکړو، چې دوئ څوکُ
دي، خټکُ صاحب ورته ځواب ورکړو چې دغه یو علي خان -
نومیږي محسود دے، او دغه بل شیر محمد نومیږي دسوات دے
دوي د P.S.F هلکان دي ، ،

نو خان صاحب ډیر خوشحال شو، مونږ نه یې تپوس وکړو
چې کابل ته پاخه راغلي یاست، خټکُ صاحب ورته ووئیل: چې ددوئ
پسې پاکستان بهټو وارنټ گرفتارۍ جاري کړي دي، دټوکې نه
یې ورته ووئیل، چې تخریب کار دي، مونږه ورته وئیل چې مونږه
بیرته ځو، په دې ډیر خوشحال شو، او مونږ ته یې ووئیل: چې
کابل کښې هیچرې تهم نشئ، بیا یې خپله خبره وکړه، ویې وئیل:
چې کله نه کله زه سوچ کښې لاړ شم، په دې فکر کوم چې ما په
ژوند کښې کم ځائ غلطي کړې ده، نو بالکل دخان صاحب په ژبه
« ویې وئیل چې کوم غول ما خوړلي دي هغه ده چې زه دکونټې
نه پښتونستان پسې کابل ته راغلے یم » دغه خبره یې دافغان،

حکومت نائب وزیر          په ځکښې وکړه ، نو دغه ورځګ ډیر
کچه شو ، خوغږ یې ونه کړو ، مونږه هم خفه شوو ، داځکه
چې خان صاحب خپل کور کلئ او اولاد ددې دروغجنو په وینا
پریښي وو ، کابل ته راغلي وو ، اول سر کښې خونړه پیاله وه بیا
نو ترخه چاې ته ترمرګه پورې ناست وو ، افغان حکومت یوه
وعده ورسره پوره نه کړه ، دغه دافغان حکومت سیاست وه چې لاندې
پښتونخوا کښې به څوک پیدا شول ، نو دوئ به پټې چلونې پېچ کړو ،
دوئ په فقیرایپي ډیر کوشش کړے وُ ، چې دوزیرستان نه یې
کابل ته بوځي ، خو حاجي صاحب خو دوئ پیژندل ، نو ده ورته
ووئیلي وو ، چې دپښتونستان مسئله کابل کښې نه ده ، بلکې دلته
وزیرستان کښې ده ، نو ځما دلته اوسیدل فائده مند دي ، با نسبته
کابل کښې چې دوئ دې کښې کامیاب نه شول ، نو دوئ حاجي صاحب
ته نورې بلاګانې جوړې کړې ، خلیفه لطیف وزیر یې ورته راپورته
کړو ، خو هغه دومره سړے نه وُ ، چې دحاجي صاحب مقابله یې کړے
وائ حاجي صاحب لښکر وشرلو بیا روستو چې ۱۹۷۰ کښې انتخابات
کیدل افغان حکومت په پټه قیوم خان ته ۲۵ لاکهه کلدارې ، ورکړې
وې ، چې N.A.P انتخابات ونه ګټي . دغه هله معلوم شول چې
۱۷ جولائ ۱۹۷۳ کښې د داود خان په قدرت راغوځ نو ددې پټو رابطو
نه یې پرده پورته کړه .

تر دې حده پورې خبرې کیدې ، چې ولي خان باندې دنواب دیر

سره په دېره کښې کومه قاتلانه حمله وشوه ، په دې کښې هم دافغان حکومت
پټ لاس ؤ ، داځکه چې افغان شاهي حکومت او شاهي کورني مسلي
حراکت دخپل اقتدار دپاره د زهرو کولی ګڼل نو په ظاهره به
بنکلول وو ، او په پټه به په چاره وهل وو ، خو دلاندو مشرانو
مجبوري وې ، چې دوئ په یوه وخت داسلام آباد او کابل سره
بدي نه شواے کوله ،

باچا خان خو لوئ بین الاقوامي شخصیت ؤ ، دوئ نشو
خوړلائ ، مګر دوئ نور واړه واړه پاک مشران دومره ډېر پېچس
کړیدي ، چې شمار یې مشکل دے ، ځینې خو دوئ دومره زړه ماتي
کړي وو ، چې صفا سمګلران ځینې جوړ شوي وو ، پښتو او پښتونستان
ځینې پاتې وو ، صرف دپښتونستان په ورځ به حاضر وو ، حاضري
به یې لګوله ، نور کال به یې دقندهار او کوئټې یا جلال آباد او
پېښور یا خوست او میرانشاه په لارو سمګلینګ کولو ، چې افغانان
ورته قاچاق وايي . یو خدائي خدمتګار ؤ چې ایوب ګل کاکا .
باندې مشهور وو ، هغه یې د باچا خان پسې غېږولوته ساتلے
وو ، دوئ په کابل کښې کور ورکړے وو ، دضرورت مطابق
به یې باچا خان پسې ږغولو ، چې روستو پاکستاني جاسوسي
ادارې هم ایوب ګل کاکا استعمالولو ، ایوب ګل کاکا به په خرڅیه
شوے وو ، دغه خپګان ته دوئ دومره هوا ورکړه چې روستو
ددوئ دلاس ګډا کاٹي شو .

يوځل د هزاره‌ګانو اوکوچیانو غوړ علاقه کښې جنګ راغلی وُ
او بیا روستو ددې جنګ نږدشیعه اوسُني قیصه جوړه شوه‌ې وه،
چې دغه ته افغان حکومت لمن وهله، باچاخان څه خبروچې افغان
حکومت خپل خلک سره جنګوي، نو د دے ورغلی وُ، د هزاره‌ګانو
اوکوچیانو مشران یې کښېنولي وو، او ورته وئیلي یې وو چې نه امام
حسین صاحب هزاره وُ، او نه یزید کوچے وُ، دغه دواړه عرب وو
چې د دوئ په کرسۍ جنګ او، که شیعه‌ګان دي او که سُنیان دامام
صاحب په شهادت باندې غمجن دي، او یزید ته بد وائي، خو
ددې مقصد دغه نه دے، چې تاسو اوس دیوبل خونه میراثونه
نو د هزاره‌ګانو مشران او د کوچیانو مشرانو د باچاخان په خوله
روغې ته تیار شول، باچاخان روغه وکړه، باچاخان په کابل تر
نه وُ پاسته شوے، چې د حکومت ایجنټانو بیا هزاره‌ګان او کوچیان
په جنګ واچول، داځکه چې حکومت داریدو، چې باچاخان به په
افغان اولس کښې محبوبیت پیداکړي، او یوه ورځ به موږه وشړي
چې تاسو څه کوئ،

دغه ټول د محمدزیانو شک او وهم وُ، چې باچاخان به هرات
هزارشریف علاقو ته لاړو، تاجکانو، ترکمنو او ازبکو ته به یې
وویل، چې تاسو ټول افغانان یې، خپل وطن آباد کړئ، کورنه
بدبختۍ ورکې کړئ، په اولادونو علم وکړئ، نو ددې عام خبرو
نه به افغاني نوکرشاهي یوه لوبه بله جوړه کړه، او د باچاخان-

بنه نيته به و دوئ په غلط رنگ کښې پيش کولو، او تر زمکې لاندې به يې
تاجکان او ازبکان ورا رول. چې دغه پښتون فاشيزم راغلے دے،
تاسو خوراک نه نيت کړے دے، همدغه نمونه افواګانې به دوئ
خورولې، چې کابل کښې ورته سرچوک آوازونه ايې، خود باچاخان
پوزيشن داسې وُ چې دوئ ورته په ښکاره لاس نه شو اچولے، دا
ځکه چې دے يو بين الاقوامي مشرو، او لاندې پښتونخوا کښې خدائي
خدمتګار د " N.A.P " په شکل کښې منظم وو، نو دوئ واريدل
کښې خداى خبر چې دوئ به د باچاخان سره کوم سلوک کړے وُ. او
کابل هميشه دغه سياست پاتې شوے دے، چې پښتونخوا کښې يې دېره
په خوږه قومي حرکت ټکولے دے، د دوئ به چې څوک بد يې شو،
يا به ورته خطره وه ځيتې، نو د ټکولو دوه طريقې وې، يو دغه
چې په چل ول کښې به يې کابل ته کړو، بيا به يې دو ريږې تال ته
کښېنولو، او يا به يې دومره صفتونه شروع کړل، چې پاکستاني ،
حکومت به يې په شکمن کړو، دوئ به لاس ورواچولو، بندي به
يې کړو، نو دوئ به بيا په آرام ناست وُ، دوئ چې مونږه ژغتسنګو
ته پرېښي يو و، ترنن ورځې پورې هيڅ کمک نه دے کړے، بلکې
زمونږ په سريې د هند روس او امريکې نه امداد ونه اخيستل ،
او سردارانو په مزې کولې، نو د باچاخان قسمت ښه وُ ۱۹۷۰ کښې
نيپ انتخابات وګټل ونا يونټ يې مات کړو، خپله صوبه يې وګټله
نو د باچاخان تقريباً ټولې هغه غوښتنې پوره شوې، چې ده د

ایوب خانه کو لې. نو ځکه ده فیصله وکړه چې وطن ته بیرته لاړشي په دې مینځ کښې دجناح پاکستان مات شو، اومئ ۱۹۷۲ کښې د N.A.P حکومتونه بلوچستان اوپښتونخوا کښې جوړ شول، نو دسے دسمبر ۱۹۷۲ کښې واپس راغلو، ظاهرشاه په دغه ورځ دومره خوشحاله ؤ، چې شپه یې کارین مېر کښې کړې وه، د شکرانې دوه رکعته نفلونه یې کړي وو، چې د دې کاکا نه خلاص شوم. دا ځکه چې د دوئ خیال وچې باچاخان کابل ته راولو، نو بس چې موږ څه ورته وایوو، هغه به کوي ولې په دې چې دوئ په دغه نورو قبائیلو ملکانو عادت شوي وو. خو باچاخان چې دوئ دنن دې نه ولیدو، نو ظاهرشاه ځنې داسې ستومانه شوے ؤ، چې په علاج یې نه پوهیدلو، ظاهرشاه به د ماز دیګر د لمانځه نه پس دغه دُعا کوله چې خدایه پاکه د دې کاکا نه مې خلاص کړې، یا یې ترخپل کړه، او یا ورته بل سبب جوړ کړه، چې زه ځنې خلاص شم، چې دسمبر ۱۹۷۲ کښې ده ته خبر ورکړے شو، چې باچا خان د حاجي نادرخان په کور تیرشو، او د خیبر درې نه سمې ته رسیدونکے دے، نو دے په یوه پښه ودریده، یو ځل یې بیا د چینګې د غوښې ارډر ورکړو، یو ځل د باچاخان په راتګ او بل ځل یې په تګ باندې.

افغاني سردارانو په خولوکښې ډیر پوچ وو، یو ځل داسې چل شوے ؤ، چې شاهي پیروزیرستان ته راغلے ؤ، څوک وائي چې د پرنګیانو سړے ؤ، څوک وایي چې د جرمنیانو سړے ؤ،

نو دده سره محسود وزیر په لښکر کښې شامل شول، په دې باندې افغان حکومت خوست ته د محسودو او وزیرو جرګه راوغوښته چې دې جرګې ته د ظاهرشاه تره صدراعظم محمدهاشم خان پخپله راغلی و، او محسود او وزیرو ته ډېر په قهر وو، ده ورته وئیلي وو چې تاسو خوځناور یې دسپو په لوښیو کښې ډوډۍ خورئ، او نورې یې ډېرې سپکې سپکې خبرې ورته کړې وې، یو محسود مشر وو چې په قوم شمن خیل خالي خیل ؤ، نوم یې فرمان الله خان ؤ، خوخلکو به ورته (کانا) یا خنلوائ وئیلو دده زوئ د شاهي پیرسره ؤ، ده ته صدراعظم محمدهاشم خان وئیلي وو، چې ته خان ته خنلوائ وایې؛ چې خپل زوئ نه شې سمبالولی، دخپل کور اختیار او واک نه لرې. حند

خنلوائ ډېر سخت طبیعته سړے و، په ټوله جرګه یې غږ کړے ؤ چې محسودو او وزیرو صدراعظم «وزیراعظم» درنه سپې جوړ کړل، جواب ورکړئ ټول غلي شوي وو، بیا دے ورته پورته شوے ؤ، داسې جواب یې ورکړے ؤ، چې وزیراعظم صاحب تاسو رښتیا وویل، محسود وزیر سپي دي، داځکه سپي دي چې دغه سپو دستاسو ښځې او لونړه بچه سقاؤ په ارګ کابل کښې کلوولې، دغه سپي پسې لاړل دستاسو ښځې یې آزادې کړې، تاسو ته یې بادشاهي واخیستله، اوبله خبره چې تاسو ماته دکورنۍ او زما د زوئ په باب وکړه، نو اول تاسو خپله کورنۍ سمه کړئ، بیا نورو ته ګوتې ونیسئ. دستاسو لمسۍ بلقیس د ظاهرشاه لور

چې ستاو راره سردار ولي خان وښته وله دغه دپښتوکار دے.

**نوټ**: شهزادګی بلقيس په پيرس کښې سبق وئيلو او د -

محمدهاشم خان دیوبل وړور نوی وُ چې نوم يې زلمئ وُ ، هغه ته بلقيس نامزده وه ، خو دمارشل شاولي خان زوئ سردار لی هم په پيرس کښې سبق وئيلو ، دوئ دواړه سره مين شول ، يوتربور دبل تربور نه ښځه يوړه چې بيا دوئ کور کښې دننه روغه وکړه دغه خبره ورته خندائ کړې وه . "

نو ددې ځواب سره په جرګه خبردنه پريوتے وُ ، هاشم خان ورته وئيلي وو ، چې محسود وزيرنه بې اعتبار کيدائ ، مابه ته دټوپې خولې ته ترلے وې ، ده ورته ويلي وو ، چې ده جواب او سپکدے ځان ته ته پخپله پيشه کړه خلهٔ اى په هغې ځاى باندې قسم کړے وُ ، چې زه به دپرنګي اوافغاني حکومت ترمرګه پورې مخالفت کوم ، همدغسې يې وکړل تراپريل ۱۹۵۸ پورې يې دپاکستان مخالفت يې کولو، او دافغانستان دبرانډو پښتوستان يې هم کولو، داود خان دپرې جرګې پرې کړې وې خونه ورتلو، ده به ښکاره وئيلي،چې لاندې پښتانه پاکستان او پرنګي يې په ترخه وهي اوکابل يې په خوږه وهي ، نوکه موږه لر اوبر پښتانه يو کوو ، نو اول په کابل قبضه په کار ده ، چې ددې سردارو ، محمدزيو نه يې خلاص او پاک کړو ، .

# ۱۹۷۱ کښې د باچاخان سره زما ملاقات او دسمبر کښې د جناح پاکستان

چې څه وخت ۱۹۶۸ کښې دایوب خان خلاف د طالب علمانو احتجاج شروع شو، نو زه په ډېره و کالج کښې وم. هلته ښهتو راغلي وُ، او سردار حق نواز خان ګنډاپوري د پي. پي. پي ډېرو مشرو وو، نو حکومت دفعه ۱٤٤ لګولې وه، موږ خو د خدائ نه غوښل غوښتو. ښهتو سره روان وو، چې پولیس راباندې لاټهي چارج وکړو، زه د ښهتو سره نږدې وم یو پولیس وُالا ښهتو دوه درې لاټهئ داسې ووهلولو، چې او ږه یې ورته ګرمه کړه، داسې منډه یې وکړه چې پولیس که په سکوټر سور شوے هم وے، نو د ښهتو رانیول ګران وو. د سترګو په رپ کښې ورک شو بس زموږ او د پولیسو ښه جنګ وشو، موږ په دوئ یونټ خلاف نعرې کولې، خو دې وخت کښې زه پوره په دې نه پوهیدم چې موږ ولې دون یونټ مخالفت کوو، په دې بیا روستو موږ اجمل صاحب پوه کړو، چې ون یونټ څه شئ دی، ولې جوړ شو، چا جوړ کړو، د چا په فائده او د چا په نقصان دے، اول

سر کېښې دوه یونټه خلاف پښتون ستوډنټس فیډریشن جوړ شو، چې اول صدر یې انور کمال مروت و، ځکه چې دېرو د کالج و، او ځماسره په یو هاسټل کښې و. نو په هغه وخت کښې سیاست یا د ومره واضح شوې نه و، خو بیا روستو پښتانه په سیاسي ډلو تقسیم شول نو انور کمال مروت د P.S.F نه استعفیٰ ورکړه. داځکه چې "N.A.P" هم خیالو هلکانو زور و، بیا د قیوم خان د راتګ سره قیصه نوره هم واضحه شوه. پښتون سټوډنټس والا ځینې د قیوم خان سره لاړل، چې سبحان یکښې مشهور و، او دنیا ته برخه یې د قوم پرستو سره پاتې شوه. چې دوئ په زړه نامه یعنې "PSF" پاتې شول، خو سیاست ته یې تغیر ورکړو، نو موږه ډېر و کښې هم تقسیم شو، ځکه چې یو ملګرے و چې نوم یې انور جان و، دے د لورلائي بلوچستان د غاړے و پښتون و، او موږ به ورته کامریډ وئیلو. دے ډېر شعوري پښتون و، ده موږه منظم کړو او د قوم پرستۍ سیاست ته یې برابر کړو، بیا خو روستو اجمل صاحب خوشحاله ډېرو ته راغلو، نو موږ په ډېر و کښې ډېر زور و شوو "P.S.F" د ګومل یونین انتخابات په ۷۰-۱۹۶۹ کښې وګټل زموږ صدر طارق بابر د پیرپیائي پېښور و، او جنرل سکرټري یې زه وم چونکه ولي خان خو به وخت په وخت راتلو، نو زما د باچاخان دلیدو ډېر شوق او ارمان وو، هغه داسې پوره شو چې B.A نه پس زه پېښور پوهنتون ته لاړم، د M.A. پولیټکل سائنس ډیپارټمنټ

کښې مې داخله واخیسته، او ۱۹۷۱ په کرمو کښې مو د M.A پروېس امتحانونه ورکړل، او ما اراده وکړه چې که خدای ته منظوره وي اګست کښې به جشن کابل ته ځم او باچا خان به ګورم، زمونږ یو بل محسود ؤ، چې نوم یې شمس الدین (منجاهدے کاندی) ئې - تخلص ؤ، ده راته د باچا خان قیصې ډېرې کړې وي، داځکه چې دے به کله کابل کښې ؤ، کله پاکستان کښې، او د N.A.P سخت طرفدار ؤ. او بله یې وله د دوئ کورنۍ قوم پرسته وه، بلکې د فرمان الله خان محسود شمن خیل یعنې د خنلوئ محسود لمسے ؤ، چې د چا افغاني وزیراعظم هاشم خان سره تکر راغلے ؤ. نو ده راته وو ئیل، پاسپورت ته څه ضرورت نه شته، مونږ خو قبائیل یوو، د میرانشاه او خوست په لاره به لاړ شو، افغانستان حکومت څه نه وایي، قیصه یې نوره هم اسانه کړه، مونږ د اګست په شروع کښې روان شو، اول رزمک ته لاړو، بیا میرانشاه ته، هلته مو د شمس الدین د دور ملګري سره شپه وکړه سحر وختي د میرانشاه غلم خان کلي ته لاړو، دغه د افغانستان او پاکستان سرحد و، د دې ځائ د ګوربزو په روسي جیپ کښې خوست ته لاړو هلته یو هوټل کښې متل شو، دغه ځا اول ځل ؤ شمس الدین خو به هروخت تلو راتلو، هرچا پیژانده، نو د لته یې په ما پسې خلقي او پرچمي هلکان راوستل دوئ ته یې وئیلي وو، چې د پښتو ستونه نښن فیډرېشن هلک مې راوستے دے، ورسره خبرې وکړئ

چې کوم په لسن وخت کښې هوټل ته لاړ شو، دوئ ځانله د P.S.F متعلق او N.A.P متعلق ډېر سوالونه کول، خصوصیت دغه وُ چې دوئ به پښتو وئيله او مايه هم پښتو وئيله، خو ديو بل په خبرې به نه پوهيدو، د مثال په توګه لاندې مونږ ورته يونين وايو دوئ ورته اتحاديه وايي، مونږ دانګريزې تر اثر لاندې يو، پاس د پارسي خو دغه په حقيقت کښې عربي ده، خو مونږ ورته پارسي وايو، ټول ټکي يې عربي وُ، ز په نه پوهيدم، ما ژوند کښې اول ځل د پاره واوريديل چې مبارزه "Struggle" ته وايي، سامراج ته دوئ استعمار، کلاس ته، طبقه صدر ته رئيس، پارټۍ ته حزب سکرټرۍ ته منشي، او دغسې نور ډېر ټکي وو، چې زه پرې نه پوهيدم دوئ ځان په سياسي، "Terminology" بانديې نه پوهيدل خو دغه ټول مشکلات به شمس الدين حل کول، داځکه چې دے لږ ډېر کرځيدلے وُ، پدې اصطلاحاتو باندې خبر وُو، او بل مونږ بحث د هغې وخت مطابق د مشرقي پاکستان په حالاتو کړو خو دوئ به د اکتوبر انقلاب ډېر ډېر يادوو، بايد داسې پکار دي، بايد داسې پکار دي، دغه نمونه به يې کولې، د صنعتي، اقتصادي، معاشرتي ټولو خېرنه به يې دوئ د کمونيزم او طبقه کښې کوله، او بل به ډېر (Serious) وُو ټوکې ټکالې نه ورتلې وچ کلک وُ، چې زه يې ډېر وغږولم، دوئ ډېر وو زه يو وم بيا شمس الدين مانه پټ ووئيل، چې دوئ درته په جنګ اچوم، جنګ

دلاس د کوننګ نه بلکې دکرم مباحثې ، ما ته ددوئ داخلي اختلافات نه وو معلوم شمس الدين دټولو نه خبرو ، شمس الدين ورته وويل چې دننه کې او ببرک اختلافات په څه دي؟ بس بلاو او برکت يې نه وو ، نو پرچميانو د ببرک او دخپلې لارې صفائي شروع کړه، خلقيانو د ننه کې صفائي شروع کړه ، ما وشمس-الدين ورته ووه ووهله، دوئ سره اخته وو ، اخر کښې دهوټل والا تنګ شو ، موږ ه په دې هلکانو کښې دچا کور ته لاړوو ، تر سحره پورې بحث روان فيصله و نه شوه ، چې ننه کې پرسمه لار روان دے اوکه ببرک ، شمس الدين را ته وويل ، چې کابليان نه پيژنې ، ما ته معلوم دي چې دوئ به څرنګې سره جنګوې دې بحث او مباحثې ما ته ډيره فائده وکړه ، يو خو چې مروج افغاني اصطلاحاتې ت ده کړل ، او بل ددوئ د دخلي اختلافاتو نه خبر شوم ، بيا چې به چې دچا سره خبرې کولې ، نو ما به هم ورته طبقه طبقه کوله ، .

دخوست نه موږ روسي موټر ( *Wolga* ) نوم يې کابل ته لاړو ، په کابل کښې شمس الدين په يو سرائې کښې ځائ وينو ، او بيا حمام ته لاړو ، خوږه دې ته بې صبره وم چې دباچاخان سره به کله ګورم ، ما ته يې ووېل چې صبا به دارالامان ته ځو ، هلته باچاخان ژوند کوئ ، موږه په ټيکسي کښې لاړو ، په دروازه يو عسکر ولاړ وو ، شمس الدين ورتر ووېل چې موږ باچاخان نزاغلي

یو. هغه دته لاړو، یو بنګلې ورکوله شته وړې ښیزې والا
سړی راغئ، موږ ته یې ستړي مشي وکړل، او ډېر په مینه
یې دننه بوتلو، ځما چای او خپلې یې وپېژندلې چې څوک
دپېښور نه راغلی دے، ما نه یې تپوس وکړو چې ته څوک
یې؟ ما ور ته وویل، چې محسود یم، پېښور کښې سبق وایم
د پښتون سټوډنټس فیډریشن نه تعلق لرم. نوم مې علي خان
دے او د غه بل ملګرے هم محسود دے خو سبق نه وائې
دغه سړے احمدکاکا ؤ، ډېر خوشحال شو، موږ یې دانتظار
کوټې ته بوتلو، دے په منډه پاس چت کښې د باچاخان د،
ملاقات کوټې ته، ورغی بهر خلک ورته ناست وو، لږ ځه
وخت نه پس احمدکاکا موږ دواړه باچاخان ته بوتلو، زما
زړه درزیدو، ولې په دې چې ځما ارمان په رښتیا کیدو
د باچاخان دومره ډېر په قسما قسم نمونه تصویرونه لیدلې
وو، چې مخ یې راته ناآشنا نه ؤ، خو بیا هم تصویر، تصویر
وي، چې په رښتیا یې ولیدو، بابا راپورته شو، زه یې ورینږدې
کړم، او د غسې شمس الدین خو ورخطا ئې هلته راغله، چې
دهرکلي نه پس باچاخان د څه وخت دپاره چپ او غلی کښیناستو
خو بیا یې تپوسونه شروع کړل، د (P.S.F) متعلق او نورې
ډېرې خبرې یې موږ ته وکړې، د خدائی خدمتګار نه تر د پاکستان
جوړیدو پورې، او بیا د ون یونټ پورې خبرې یې راته وکړې.

موږ ورته غوږ نیولے وُ. یو ځل زه به جذباتو کښې راغلم، ما ورته وویل چې دوئ      که موږ ته حکومت نه راکوي، نو جنګ ورسره کوو، باچاخان زما لاس ونیولو، ویې ویل، هو، جنګ ورسره کوو، خو دتوپک نه د سیاست جنګ ورسره کوو موږ خو دعدم تشدد والا یو، بیا یې زمانه تپوس وکړو چې هلکان څه وائي بیا ما ورته د بنګال قصه وکړه. چې هلکان داسې وایې باچا خان دېر خوشحال شو، موږ ه، تقریباً پاو باندې یوه ګهنټه ورسره ناست وو، بیا باچاخان اوویل چې بیا به ګورو، اوس لاندې خلک انتظار کوي، باچا خان ـ مخکښې وُ، ځما لاس یې نیولے وُ، خو پوړیه دومره تنګې وې چې غبرګ نه دباچا خان سره نه شوم تلی، زه روستو پسې روان وم، ماپسې شمس الدین وُ، بیا احمد کاکاو، باچاخان وویل چې نن دوپوړیه له ماسره وخوریږه. خو شمس الدین بزغ پریږې وکړو، چې موږه چامیلمانه کړي یو، نو باچاخان ووېل چې بیا د هغوئ حق د ے. زمان ږه وُ چې دباچاخان سره دوډیه وخوړم، خو شمس الدین خبره ورانه کړه، ده ورته دروغ وویل. هیچا نه وو میلمانه کړي، اوس خو ما نه شو ویلے چې دروغ وائې، ما ته بنه یاد دي چې پوړیه سره یوځیج وُ باچاخان هغه خلاص کړو، دوه منټه پې راځنق یوه یې ماته راکړه او هغه بله یې شمس الدین ته ورکړه، موږه

يې دغسې رخصت کړو ، رو ستو شمس الدين راته وويل ، چې
لويه غلطي مې وکړه ، کوم کار مې بند ونه کړ چې دروغ مې ورته وويل
ما ورته وويل چې اوس وخت تير دے ، کار دې خراب کړو ، اما
هغه منه دوه څلور د باندې پوهوره ، شمس الدين د تبارک دپاره ځان
سره ساتلے وه ، د غه اوله ورځ وه بيا مې احمد کاکا وپېژندلو ده
ده به دېره مينه کوله ، بيا يوه ورځ مې دلته د باچاخان په کور
کښې جنرل جيلاني ارباب همايون او برسټر ظهور وليدل ،
دوئ ډېر خوشحال شول ، ما ته يې وويل ، چې ته دلته څه کوې
ما ځواب ورکړو چې تاسو څه کوئ ، بيا دوئ راته وويل : چې
تاسو پريس کلب ته راشئ ، چې افغانان ورته مطبوعاتي کلوب
وائي ، مونږ هلته معطل يو ، چې يوه ورځ مونږ ورغلو ، چې
د جنرل صاحب سره د ځپانو د مرکولو د ربړ څه نټ پړه وه ،
نو يه ستو چې ميچ به يې په مړ کړو ، بيا يې نوکر ته په دري
ښايسته فارسۍ کښې د چايو فرمائش ورکړو ، شمس الدين حيرانتيا
وکړو ، چې جرنيل صاحب پاکستان کښې خو فارسي نشته داتاسو
کوم ځای زده کړې ده ، جرنيل ورته ځواب ورکړو ،
زما والد صاحب په مشهد کښې د انګريزانو په وخت کښې
کونسلر او که کونسل خانه کښې نوکر وو ، دغه اوس ځما په ياد نه
دي ورته وويل . نو ما دغه فارسي مشهد ايران کښې په ماشوم والي
کښې زده کړې ده .

په دې کال جشن ونه شو ، داځکه چې شمالي افغانستان باندې خوشکه سالی راغلې وه ، چې د پرخلکو دلوږې نه مره شوي وو. او خپل اولادونه يې خرچ کړي وو، خلکو به دغه خبره کوله چې بادشاه ځکه جشن ونکړو، خو ترجشن نه زه دپښتونستان دورځې په انتظار وم ، هغه ورځ هم راغله ۳۱ آگست باندې د خوشحال خان او رحمن دکالجونو هلکانو باچاخان د يو جلوس په شکل کښې اول پښتونستان چوک ته راوړو ، باچاخان په يو جيپ کښې سور وُ ، چې پرچميان ، خلقيان او افغان ملتيان ټول ور سره وو ، يو شور يې جوړ کړے وُ . زه ظهور الدين رمضاني سره وم . د لته ما داود خان ، نعيم خان او د ظاهرشاه زوئ احمد شاه شهزاده وليدل ، چې ولاړ وو . ما نه پيژندل خو ظهور الدين رمضاني راته وويل ، مونږ ټول بيا د باچا خان شاته ودريدو ، دکابل ښار وال جهنډه خلاصه کړه ، او يوه مشکله پښتو کښې يې خبرې وکړې ، ټوله پښتو او تقرير يې په passa vice « کښې وکړو ، بيا د دې ځائ نه غازي سټيډيم ته د جلوس په شکل کښې روان شو ، کرچې هم وه دخلکو په وجه راسې د وره پورته شوه ، مونږ د سټيج نه دېرلرې ولاړو ، اول باچا خان تقرير وکړو ، چې زيات زور يې په بنگال کښې په پاکستاني فوجي ايکشن باندې واچو ، او بيا ورپسې ايوب خان اڅکزي وکړو ، هدا غسې دپښتونستان ورځ ولمانځل شوه ، دغرچې دودې په رياست -

قبايئل کښې وه. چې دلته موږه راغلو قمرکلهاو ذاخيل اونورو سندرغاړو، ميوزيک غږولو. دلته مې موسیٰ شفيق وليدوچې دے افغان وزيرخارجه وُ، دبهټو په خيريپ ختمې اوږ دې پرايښې وې، يا په بله ژبه دهغې وخت مطابق ځمونږ په نمونه،ما ته يې دې حرکت ډېرخوند راکړو، چې باچا خان راغۍ دے نه صرف ورتر پورته شو بلکې په منډه مخې ته ورغۍ، دباچاخان لاس يې سپکل کړو، خو ماته شمس الدين ووېل چې ته افغاني مکر نه پيژنې، دغه اخلاص نه دی دغه مکردے. خدائے خبرچې دده اخلاص وو اوکه مکر، خوماته يې ډېرخوندراکړو.

ددې دورې په دوران کښې مې رشيد وزيري وپيژنده چې دےيې د مظاهرې په وجه دجلال آباد ميډيکل کالج نه خارج کړے وُ، ډېر سخت پرچمي وو،زه يې ترهغې پورې په ارام نه پرېښودم چې ببرک کارمل ته يې مکرويانو ته بوتلے نه وم، ما ته شمس الدين ووېل: چې ببرکٔ کارمل دپرچم حزب صدر دے، چې موږ رشيد وزيري ورو‌سته، زما خيال، دے چې دريم منزل کښې يې کور وُ، ډېر په مينه يې ستړي مشي وکړل، اوس ما ته دومره تجربه شوې وه چې تقريباً سياسي لغاتونه راتلل، ببرکٔ هم دېنګال متعلق ډېر سوالونه وکړل اوبل يې د P.S.F د تنظيم او نظريې متعلق پوښتنې وکړې يوسوال يې دغه وکړو چې ته ځرنګې وايې چې نيپ کښې اکثريت دغريبانو

مزدورانو او کسانانو دے ؟ نو ما دغه مثال ورکړو چې زه په دې بنیاد وایم، چې په ټولو صوبو کښې پېښور او مردان د صنعتي لحاظ تعلیمي لحاظ او زراعتي لحاظ ترقیاتي ضلعې دي، نو په دې ضلعو کښې نیپ سل فیصلده سیټونه ګټلي دي، نو د دې نه اندازه لګي، چې دغه څو ټول خانان نشي کیدے. بلکې غریبانان، مزدوران او کسانیان وو، دغه خبره یې راسره ومنله، نو بیا یې ټول کمونسټي بحث کړو، چې د اکتوبر د انقلاب نه یې راشروع کړے وُ، امان الله خان، دویم جنګ عظیم دغه ټول یې پکښې یاد کړل، شمس الدین عجیب سړے وُ. دلته یې د ځان نه سور کمونسټ ببرک ته جوړ کړو، روستو بیا چې ببرک خبره کوله نو بیا یې شمس الدین ته وراړو، ده به ورته سر خوځاوه. بیا چې راغلو ما ورته وویل چې ته کله نه کمونسټ شوے یې، ته څو منجاورې کاندھي یې؟ ما ته یې وویل چې نه کابلیان نه پیژنې، دوئ عمل ته نه ګوري، د خولې خبرې ته ګوري. ما ته ببرک د خپل پارلماني بیانونو یو پنډ راکړو، چې دغه درسره کوز یوسه، ماسره په صندق کښې دومره ځائ نه وو، لوګر کښې مې پرېښنود، یو دوه درې ګونې مې د ځان سره یوړې هم دغه شان چې تلو، باچا خان ته ورغلو، ډیر په مینه یې رخصت کړو، ما ته یې د خپل تقریر او بلې پمفلټ چې په ون یونټ یې لیکلې وه، راکړې چې ترتیب ورکړې

پورې ځاسره دی، شمس الدین او زما لارې جدا شوې، دے وزیرستان ته لاړو، زه د خپلو خپلوانو سره څه وخت په لوګر کلال بغند قلعه کښې معطل شوم، بیا وطن ته لاړم چې د یو وخت کښې زموږ دګرمجر چهتیاری تیرې شوې یونیورسټۍ خلاصه وه، پیښور ته لاړم، خو کابل ته تګ او د باچا خان سره ملاقات، ما ترسیاسي ژوند کښې ډېره فایده راورسوله، چې زه یونیورسټۍ ته ته را غلم د هندوستان او پاکستان حالات ډېر خراب شوي وو. په بنګال کښې جماعت اسلامي الشمس او البدر تنظیمونه جوړ کړي وو، د بنګالیانو دوینو سره یې لوبې کولې، جنرال ټکا خان فوج درې لاکهه بنګالیان وژلي وو، پاکستانی فوج هم دومره بنګالۍ ښځې او پېغلې بې ناموسه کړې وې، او کلکتې ته په کروړاوو بنګالیان ښتیدلي وو، زموږ یار مولانا بهاشاني په ډهلي کښې چکرې لګولې، او یو طاقت طور تحریک د بنګالیانو جوړ شوے و، مکتی باهنی سرګرم عمل وه، بنګالي افسران د پاکستان سفارتونه په منډو وو، د اسلام آباد نه ډېر بنګالیان د خیبر، باجوړ او مومندو په لاره کابل ته تلل، او بیا به ډهلي هند ته تلل، بس هر طرف ترګوودي وه خو دې ټولو باوجود، د پاکستاني واکدارانو سترګې نه خلاصېدے پیښور یونیورسټۍ کښې بنګالي (students) وو دوئ د جماعت اسلامي نه داریدل، موږ د P.S.F والو نسلي ورکړه چې تاسو ته څوک څه نشي وئیلے، او که چا درسره چیړ وکړو،

نومـوبنړه خبروځ ، دجمیعت طلبا والامودا سې داروليي
وو، چې عنړ.يې نه شو کولے . چې زموږ صـد نثار خان
شینواري به سبکار شو، نو په دوئ به هیبت راغئ، نثارخان سره
دطمانچې بدرګې کرځیده ، دده سړ په اکثړه داسلامیه کالج
هلکان وو، چې دوئ خود خدائ نه جګړې غوښتې، نو ځئ
دسوات هلکان ووچې دجماعت اسلامي هم خیال وو، موږ به
ورته ووئیل چې پاکستان ماتیږي، دوئ به ویل چې موږه
او مشرقي پاکستان اسلامی رشته لرو . دغه نه ماتیږي، موږ
به ورته ویل ،چې اسلامي رابطه نه بلکې صرف P.i.A رابطه ده.
دخدای قدرت ته ګوره چې کشمیریانو د هندوستان جهاز
ګنګا وتښتولو، دلاهور په هوائي اډه یې تبا کړو، په دې
هند غُصه شو،

« Pakistan gntirnation » P.i.A د
پروازونه یې ډهکه ته د هند په هواکښې بند کړل، په دې
وخت کښې بهټو سټوری جوړ کړے وُ، چې اقتدار ما تړ -
راکړئ ، خوچا نه ورکولو، نه دده کوشش وُ چې پاکستان مات
شي ، پاکستانے فوج بې عزته او وشرمیږي، ددوئ شه
به ماته شي، نو مغربي پاکستان کښې به بیا اختیار زما په
لاس راشي ، ده کوشش کولو، چې دفوج او مجیب ،
روغه ونشي، جنګ وشي، د طیارې په تبا کولو کښې دده لاس وُ.

يوځل زما خيال دے اکتوبر ۱۹۷۱ کښې اخبار والو ځنې تپوس کړے وُ، چې که هندوستان حمله وکړي، ددې متعلق ستا څه خيال دے، دده ځواب وُ: اګر هندوستان نے حمله کيا۔" THAN LET IT DAM MAST "

دمه دم مستا قلندر۔" QALANDER "

دمه دم مست قلندر يې څکه وئيلو چې دے پوه وُ چې، هند حمله وکړي، په مشرقي پاکستان کښې يې فوج مقابله نشي کولے، نو پاکستان به مات شي، اومغربي پاکستان کښې به ده ته اختيار ملوُ شي،

اکتوبر ۱۹۷۱۔ کښې زموږ يار قيوم خان، بې وقوف صدر جنرل يحيٰ خان دے، ته ولمسو، چې په N-A-P - باندې پابندي ولګوي، ماته سبه يا د دې چې N-A-P باندې دپابندۍ خبر د ريډيو نه خور شو، نوما جنرل جيلاني ته ټيلفون وکړو چې اوس به څه کيږي؟ ده راته ووئيل چې دلته يونورسټي ټاون ته راشه، زه په ټيلفون درسره خبرې نشم کولے، زه پوه شوم چې د ده مطلب دادے چې دده ټيلفون ټيپ کيږي، زه ورغلم، دبندش په باره کښې يې خبرې وکړې، دچاى نه پس ماورته ووئيل، چې بنا رته اجمل صاحب ته ځم، هغه وخت به خټک صاحب د نيپ دفتر چې دشهباز دفترهم وُ، اوسيدو، چې۔

نذر باغ فلیټ کښې وُ، زه چې خټک صاحب ولیدم .بې کېچې ،
خوشحاله شو، ما ته یې وویل: چې اوس منم چې ته په رښتیا
په پښتونو معین .یې، ما ځنې تپوس وکړو، چې ولې دو،
وویل، چې ښه موسم کښې هرڅوک ما ته راځي، خو خچن
موسم کښې هرڅوک زمانه تښتي، ته په دې خطرناک وخت
کښې چې راغلې دغه ددې ثبوت دے، چې ته په رښتیاقوم
پرست یې.

ما د پاره خو ورتک یو عام شئ وُ که خټک څه نه وے ویلے
نو ما ته خو ددې تک هیڅ داهمیت پته نه وه، دلځکه چې.
موږه خو N.A.P او "P.S.F" سره داسې تړلي وُو، چې د
چالاکۍ او چلول، موسوچ کولے نه شو، اودوه پاخه
اومفادپرسته شوي سیاستدانان موږه نه وو، چې په خوله مو
یو او په زړه بله وایې، ما ته یاد دي چې د څه موده نه پس
حاجي غلام احمد بلور راغۍ، هغه وخت کښې بلور په سیاست نه
پوهیدو، د دوئ پتولو نه کشر ورور عزیز بلور په سیاست
پوهیدو، بس چې حاجي صاحب راغی قیوم او یحیٰ خان
ته یې په کنځلو پیل وکړو، نو رېبې په چل نه پوهیدو،
بیا روستو د N.A.P خلق راغلل، چې موږه یوتو لے
شو، نو خټک صاحب وویل: راځئ قصه خوان کښې یو
چکر ولګوو، د ملګریو زړونه به غټ شي او مخالفینو ته

په وښايو چې موږ ته موجود اوښوندي يو، بس ختک صاحب را ته مخکښې ؤ او موږ ور سره وو، د دې سره د ښار خلک د «N.A.P» والا نږه ور شول، رو رو پوره جلوس جوړ شو، نو د ډېره سره د ښدش خبر اثر بالکل کم شو، د N.A.P والا مست شول، اجمل صاحب ور ته وویل، چې تاسو هیڅ غم مه کوئ، د یحیٰ خان حکومت په ختمیدو دے، د څو ورځو میله دے،

په دې کال کښې په هره ورځ او میاشت څه نه څه اهم واقعیات کیدل، نو مبر او په دسمبر کښې حالات ډېر خراب شول. د ټکا خان جنرال قسمت ښه وو، دے مخکښې مغربي پاکستان ته راغلے ؤ. او ټول یې جنرال نیازي ته پریښودلي وو. دسمبر کښې حالات دومره خراب شول چې د هند فوج په مشرقي پاکستان د اوبو د غاړې د مزکې دغاړې او د هوا د لارې ورننوته پاکستان فوج د پاره بله لاره پاتې نه شوه بغیر د دې نه چې یو لاکه فوج هندوستاني فوج ته سلامي شو، هندوستاني جنرال، اروړه بنګال فتح کړو، جنرل نیازي ورته «Hands up» وکړل، چې څه رخت مشرقي پاکستان هندوستان فتح کړو، ډهاکه د دوئ په لاس وراغله، نو موږ یونورسټي کښې جلوس وویستو چې جنګ دې نه بندیږي، حکومت مطلب دغه ؤ، چې که یوه هفته نور جنګ وشي، نو نتیجه به یې زموږ په حق کښې وي، دغه کار موږ شعوري کولو، مګر لاهور کښې اصغرخان چې ایئرمارشل

مارشل پاتے شوے وُ ، اوبل ایئر مارشل نور خان وُ ، دواړه
جلوس ایستی وُ ، دوئ هم د جنګ جاري ساتلو مطالبې کولې
ماته افرا سیاب خټک وویل ، چې مانه منل چې فوجیان idiot
دي ، خو اوس منم ، ما ورته وویل ، چې ولې ؟ ده جواب راکړه
چې موبږه د جنګ جاري ساتلو مطالبه کوه ، خو دغه کارموبږه
شعوري کاوُ ، چې د دې به څه نتیجې وي ، مګر دغه احمقان
هوائي فوج مشران هم پاڅې شوي وو ، دوئ دومره نه پوهیږے
چې جنګ جاري وساتلے شي نتیجه به یې څه وي ، بهرحال ،
دسمبر ۹۷۱ کښې د جناح پاکستان مات شو ، پاکستاني فوج د
بهټو په سازش ، بې عزته او شرمیدلے ، او هند کښې قید شول ،
او مغربي پاکستان کښې د دوئ نه اختیار لاړو ، بهټو په U.N.O
کښې یې غوبل جوړ کړے وو ، هرد روئې کوشش یې سبوتاشی
کولو ، چې نیویارک کښې یې پوره تسلي وشوه چې پاکستان مات شو
نو دلته یې د مکرمچھ اوښکې توییولې شروع کړل ، چې باهر
به یې خفګان خو دلو ، او په زړه کښې د ننه د خوشحالۍ نه یې
ځائ نه کیدو ، هم هغه او شول ، چې ده غوښتل ، یعني اِدهر هم
او دهر تم ) او دې د پاکستان په تاریخ کښې اول ځل ، د پارټ یو سول
سرے ، مارشل لاء ایډمنسټریټر شو د ( N.A.P ) نه یې پابندي
اوچته کړه ، دغه د ده مجبوري وه مګر د اختیار نو او صوبو
کښې حکومت ورکولو کښې یې د ټال مټول نه کار اخیستو .

# د ۱۹۷۲ مئ کښې د (NAP) صوبایي حکومتونه

او

# د باچاخان رانګ

د ۱۹۷۰ د انتخاباتو په بنیاد پنجاب سنده کښې پیپلز پارټۍ انتخابات ګټلي وو، مشرقي پاکستان (بنګله دیش) کښې شیخ مجیب الرحمن ګوند عوامي لیګ ګټلي وو، او په بلوچستان او پښتونخوا کښې نیپ ګټلي وو، چې پاکستان مات شو، نو باقي پاکستان کښې دوه صوبې د بهټو سره وې، او دوه صوبې د نیپ سره وي. خو بهټو د پنجابیانو په حمایت مرکز کښې حکومت جوړ کړو، ټول صوبائي ګورنران یې د خپلې پارټۍ مقرر کړل، زمونږ د صوبې ګورنر حیات محمد خان شیرپاؤ ؤ، خو د بهټو اقتدار د جنرل رحیم او جنرل ګل حسن مرهون منت ؤ، په دوئ باندې یې اعتبار و نه کړو، مارچ ۱۹۷۲ کښې یې دواړه د نوکرۍ نه لرې کړل، او خپل یار ټکاخان یې د فوج مشر کړ، ولي خان ورته ووئیل، چې تاسو ته اولس په دوه صوبو کښې ووټ د ورکړے دے، مونږ ته هم، نو زړه هغه خبره درته کوم، چې کومه ته عجیب ته کوله، بلوچستان او صوبه سرحد باندې د N.A.P حق دے، چې حکومت وکړي، خو بهټو سازشونه شروع کړل، قیوم خان یې په کابینه

کښې وزیر داخله واخیستو، ددې دپاره چې دے به نیپ،
راته ورېږي، قیوم خان هم ورته وویلي وو، چې ددوئ د
چلونو نه زه خبر یم، ددې کش مکش نه موږه د P.S.F ،
والا هم بې تعلق نه شو پاتې کېدائے، نو زموږ یونیورسټي
کښې پیپلز سوډنټس فیډریشن، سره مقابلې راتلې، اپریل ۱۹۷۲
کښې قیوم خان وزیر داخله او مولانا کوثر نیازي وزیر اطلاعات
او امور مذهبي پېښور یونیورسټي ته راغلل، او کنویشن هال
کښې، جلسه کوله، موږه P.S.F والاو ددې مخالفت کولو، چې
پېښور یونیورسټي کښې دے جلسه نۀ کړي، پوهنتون کښې یې نه
پرېږدو، خو دوئ راغلل، جلسه څه وه لاس په لاس جنګ ؤ،
ټولې کرسۍ ماتې شوې، شیشې ماتې شوې، په قیوم او کوثر نیازي
باندې هغه لوبې وشوې، چې یا دبه یې ساتي، زما درې کوټي
زخمي شوې وې، وینې څیني تللې، خو ماته هله پته ولګېده
چې قیوم دې لاړل جنګ خلاص شو، موږه څوکسا پسې
حکومت وارنټ، ګرفتاري جاري کړو، موږه به پټ پټا،
ګرځیدو، دې جنګ په بلوچستان وکړو او وو معلومه شوه
چې یونیورسټي کښې دپښتون سټوډنټس فیډریشن زور دے
که څه هم قیوم خان او کوثر نیازي دعوې کولې (چې ۱۹۴۷
کښې کا ریفرنڈم ہم نے جیت لیا)

موږه داسې پټ پټ د پولیس نه ګرځیدو، چې دې کښې

پښتو د N.A.P حق ته غاړه کېښوده ۲ مئ ۱۹۷۲ کښې یې ارباب
سکندر خان شهید، او غوث بخش بزنجو مرحوم د صوبه سرحد
«پښتونخوا» او بلوچستان گورنران مقرر کړل، موږ ته د
هیرکانو عوندې « UNDER GROUND under » نه را ووتو، هم
د غسې ۱۹٤٦ نه پس یا په بله معنیٰ په پاکستان کښې اول ځل دپاره
د N.A.P صوبائي حکومتونه جوړ شول، او گورنران هم
دد وئ وو، خو دد ې مطلب د غه نه وُ، چې کښې پښتو او
قیوم خان خپل سازشونه بند کړي وو، خو پښتو چې هر څنګه
وُ، خو بیوقوف نه وُ، د اقتدار ورې سړے وُ. د هند سره
دروني دپاره ورته N.A.P ضرورت وُ، او بل پاکستان دا سې
حالاتو کښې وُ، چې پنجابیان ډار یدل، چې ټول پاکستان ورک
نه شي. نو دوئ دغه وخت دپاره د N.A.P حق ته غاړه کېښوده
او بل پښتو به په ښکاره د قیدي فوجیانو د آزادولو چغې کولې،
او تر ځمکې لاندې یې اندیکاندهي، ته ویل، چې ښه یې وغږ اوه
چې دد وئ نه د اقتدار نشه ووزي، که دوئ زر را خلاص شي،
نو پاکستان کښې بیا ماتله مصیبت جوړوي، او هندوستان ته هم خو
د دوئ په قید کښې هند ته هم فایده وه، دوئ دغه قیدیان دد باؤ
دپاره استعمالول چې هغه کار دوئ په پښتو د کشمیر متعلق د شمله
معاهدې په شکل کښې وکړو، چې دغه کارونه خلاص شول نو
پښتو ټیپ ته د اوبو خړول شروع کړل، پد ې غیر تسلي بخش وخت،

کبنې اول باچا خان اوړې کبنې راتلو، خو بیا یې خپل راتګ تر ۲۰-
دسمبر ۱۹۷۲ پورې وځنډولو.

ماته ښه یاد دي، چې د باچا خان د راتګ نه مونږ خبر
شو، ډېر خوشحال شو. محمد افضل خان چې هغه وخت مونږ له
حکومت وزیر اطلاعت او زراعت وُ، او ولې عنایت الله خان
ګنډاپور هم وزیر وُ. خو د N.A.P ممبر نه وُ، دوئ مخکښې
جلال آباد ته ورغلي وو، او خدائي خدمتګار ډېر خوشحال،
وُو چې دوئ د ړې ورځې مخکښې طورخم ته ورغلي وو، پدې
یخو ښېو او وړخو کښې یې د خپل مشر د راتلو انتظار کولو، د
صوبې او د ټول پاکستان خلق د باچا خان ستړي مشي او هر کلي ته
پېښور ته راروان وو، بیو بد حال وُ، مونږ په پېښور یونیورسټی
کښې د برشني لاوډسپیکر په ذریعه اعلان وکړو، چې سبا به باچا
خان راځي، ماته حاجي بلور ویل چې دوئ د یو لاهوري سړي
خبره کړیده، چې هغه به د ستړي مشي فلم جوړوي. خو
روستو پته ولګیده چې فلم یې جوړ کړے وُ، خو لاهوري
کښې د صفائي یا وینځلو په وخت کښې ځنې خراب شوے وُ، باهر
حال دا سې جشن غونډې سماء وه. دډېرې مودې نه پس راتلو:
مونږ "بنګله دیش دې تسلیم شي" په حق کښې یو پمفلیټ لیکلے وُ
په طورخم کښې موتقسیم کړو، افغانانو داسې حملې په کولې،
چې ماته یې راکړه. ماته یې راکړه، ماته نثار خان شینواري د خامته

یوه جوړه راکړې وه، ماته یې ویل: چې تن به دفیشن جامې نه اغوندي، اصلي ورد يې به اچاوو، نوقیمص یې توګه دواړه زما په ناپ نه وو، دپاسه مې دخامتې واسکټ هم په اچولے وُ، ماپوړے هلکانو ټوکې کولې، چې د څان نه دې جواهر لال نهرو جوړ کړېکے.

ماته چې تر خـوپورې یاد دي دېره یخني وه، زه دغازي مرجان محسود سره ټیوټا موټر کښې وم، دغه دېر تکړه محسود وُ، که څه هم دے سوداګر وُ، دویشي یعني ټمبر کاروبار یې کولو، اوخپل هیله کوار ټر یې ایبټ آباد او مانسهره کښې وو، خو چې څه وخت به څه اهـم شے وُ، نو دے به حاضر وُ، موږ چې طورخم ته ورسیدو، نو دباچا خان په انتظار وو، د خدائ مخلوق راغلے وُ، دېر انتظار نه پس باچا خان رابنکاره شو، دده دپاره یې یوسپیشل ټرک جوړ کړے وُ، افضل خان لالا سره د قره قلي ورسره ولاړ وُ، باچاخان داسې ناست وُ، چې هرڅا به لیدو، دافغانستان دحکومت دخلقو نه علاوه، ټول، سیاسي ګوندونو خلق ځوانان اوجینکۍ راغلي وي، دطورخم پورې یې دېر په درښت سره رخصت کړو، چې باچا خان لاړه په مزي راواوښته، دزنده باد دچغو داسې شورشو، په دواړو غوږو اوریدل مشکل شول، افغانان دشمشاد غرولمن ته وختل، ټول عربې په سرو جهنډو تک سور کړو، یو دېر خوندور وخت وُ، زموږ دخلکو دغه بد مرض دے، چې

ټول عمر به کار نه کوي، خو ولي خان جلوس يا باچاخان سټرې مشي وي هر يو کوشش کوي چې په ولي خان يا باچاخان پسې، دويم موټر دده وي، چې خلک يې وويني دغو ننداره ښکته يې خلکو په دغه ورځ هم دغه حال جوړ کړے وُ، چې د هرچا کوشش وُ، چې د باچاخان په ټرک پسې او يا ځکښې ورته دده موټروي. چې خلک يې وويني چې دغه دے فلانے هم راغلے دے، نو دوئ ټول سړک بلاک کړو، او بل هسې هم د خداى موټرې لاړې او جيبونه وو، خو د سټرې مشي جلوس د ميرې په قدم روان شو، مونږه يوه گهنټه انتظار وکړو، دومره وخت مو پيدانه کړو، چې موټر مو سړک ته سم کړو، او قطار کښې روان شو، چې لنډي کوتل ته رسيدو مونږ ته دومره کلکې وړې منتيازې راغلې وې، چې تش موخندل، مونږه مو ټر يو غاړې ته ودراوه، تقريباً هر يو لس لس مينټه کښې خپل خپل بوتل تش نه کړے شول، چې ميتيازو نه پس موهيله سټرې وغړيدې، داسې وبڼې ووچې بد حال مو وُ، غاړې مرجان وئيل، چې دخيبر تيکې خوړو، باچاخان چې پېښور ته رسي ماښام به وي، دجلوس لکه د حاجي نادرخان دې په کور وه، چې مونږه دښې دمه نه پس راورسيدو، بيا خبر شو، چې دحاجي صاحب کورنۍ باچاخان ته چاى کړي وو، چې ټوله لار دغه حال وُ، خو زه باچاخان ته په فکر کښې وم چې نه يې په سرو چړت خراب وُ، او نه په دومره

شور او غوبل باندې مازيګر قضا پېښور ته ورسيدو، جناح -
پارک کښې لوی سټيج جوړ شوے وُ . سردار شوکت حيات خان
صدارت وکړو ، دخدای د نيا راجمع وه ، ملرډو مره خلک
په يوځای نه وو ليدلي، باچا خان دېر ستړے وُ ، اويخني هم
وه ، خو دتقرير بنيادي خبرې يې دغه وي ، چې ده بهټوته ويل
چې زه تاسره د نوي پاکستان په جوړولو کښې ملګرتيا کوم ،
زه ددې دپاره راغلی يم چې دخدای دمخلوق خدمت وکړم ،
هم دغسې جلسه خلاصه شوه ، باچا خان شاهي باغ چارسدې
ته لاړو ، او بل ځل يې ورته په انتظار وو ،

بله ورځ زه نمبرا هاسټل کښې ماښام ۷-۲ خبرونوته
ناست وم ، ما ته ښه يادې دي چې دبهټونه دکراچۍ په هوائي
ډګر اخبار والاو د باچا خان د پيشکش متعلق پوښتنه وکړه، نو
خوله يې داسې جوړه کړه لکه چرګه چې غول کوي، د ده خوله
او د چرګې دکونې فرق نه وُ ، او ډېر په پاليت شکل سره يې
وويل : « نهی چاهئے نهی چاهئے غفار خان کی مدد نهی چاهئے
ما ته دومره قهر راغے ، چې نن دې خو وايې ، خوله ، خوله
ته به مې وهلے وای ، خو افسوس چې په کراچۍ کښې وُ ، ما په
خپل ژوند کښې داسې پاليته خوله دچا نه وه ليدلې، لکه د
بهټو ، دے دغې خولې دلاسه پهاسي شو ، د ده بل علاج
هم نه وُ ، بس مونږ ه پوهه شو چې بهټو د ټکر د سياست فيصله

کړیده هاغه وُ چې دهٔ په بلوچستان کښې مداخلت شروع کړو،
فوج یې هلته دبلوچو خلاف واچو، او ۱۹۷۳ پورې یې
حالات دومره خراب کړل، چې دبلوچستان حکومت یې غیرقانونې
مات کړو، بلوچ یې په بلوچ ووهلو، او زمونږ په صوبه کښې
مولانا مفتي محمود مرحوم حکومت د غیرقانوني او غیرآئینی قدم
په وجه احتجاجي استعفٰی ورکړه، دغه هم د بهټو چل وُ چې
بلوچ او پښتانه سره خفه کړي. اکبر بګټي عجیبه شړے وُ،
چې مشرقي پاکستان د جنرل اروړه په وجه لاړو، نو بګټي د
خوشحالۍ نه په کوئټه کښې جلوس ایستلے وُ، دغه نعره به یې کوله
چې « اروړه جس نے پاکستان کو مروړه »
مګر ۱۹۷۳ کښې د پنجابیانو ګلاګائي شو، او بلوچستان یې
د بدبختیو سره مخامخ کړو، دېرغو په ځائ دے ګورنر شو،
ځمونږ په صوبه کښې ارباب سیکندر شهید خپل ورکوټی
سوټ کیس یې واخیستو تهکال ته لاړو، او ځمونږ د صوبې
ګورنر اسلم خټک شو، داسلم نه خوګیله ځکه نه کیده چې د
دوئ ټول خاندان داسې وُ، ددوئ نه د سړیتوب طمه لرل
بیوقوفي وه، ددوئ پلار قُلي خان خټکؒ د پرنګیانو سړے وُ،
او ضدپښتون وُ، خو اکبر بګټي د بلوچو سره ډېره زیاتي وکړه.
روستو بیا بهټو وئیلي وو، چې ماته شهنشاه ایران وئیلي وو چې
د N.A.P حکومتونه مات کړه، داځکه چې د هغه وخت ـ

د C.I.A لوی مرکز ایران تهران و، او شاه یې د ټولونه لـوی ایجنټ و، نو د ده سره خطره وه چې، که جمهوري قومي حکومت په بلوچستان کښې زرغون شي، نو ایراني بلوچو باندې به یې «REFLECTION» وشي، نو ما ته به د دې نه بیا مسئله جوړه شي، نو پکار دي چې پاکستاني بلوچستان کښې هم د بلوچو حکومت نه وي، او بل د ځینو بلوچو مشرانو خولې په قابو کښې نه وي، دوئ به دلوئ بلوچستان خبرې کولې، چې د ټولونه یې لوئ دعوه ګیر اکبر بګټي و، خو چې وخت راغئ، دګورنرۍ په کرسۍ باندې خرڅ شو. تو دغه بل دار و، دایران دباچا سره، او بل دوئ دار یدل، چې بلوچ را ته سوویټ یونین په لاس کښې وانخلي، نو دامریکي تیلو ته هم خطره وه، بس دغه ټول سره جمع شول، بهټو د بلوچو او فوج جنګ جوړ کړو، فوج یې مشغول کړو، د په اسلام آباد کښې حکومت کولو، زموږ په صوبه سرحد کښې عنایت الله خان ګنډاپور چې څه موده مخکښې د باچاخان ستړې مشي د پاره جلال آباد ته تلے و، د صوبه سرحد وزیر اعلیٰ شو، موږ سره یې غداري وکړه په کرسۍ خرڅ شو، بیا روستو نیک محمد وکیل به کابل کښې ما ته په تنګولم، راته وویل: چې هغه دچرګي پښے والا وزیر موڅه شو، عنایت الله خان به په هیڅ یعنې توچه باندې دچرګي پا نه لګوله نو نیک محمد خان وکیله په جلال آباد کښې لیدلے و، نو څکه به یې په ما پورې ټوکې کولې.

# د راولپنډۍ لیاقت باغ مرګ ژوبله

## (۲۳-۳-۱۹۷۳ء)

بهټو تازه تازه د نیپ صوبائي حکومتونه مات کړي وو، او بلوچستان کښې یې فوج د بلوچو خلاف لګیا کړے وُ، زموږ په صوبه کښې محاذ رائې روانه وه، په قومي اسمبلۍ کښې متحده جمهوري محاذ جوړ شوے وُ چې د دې مشر د نیپ صدر خان عبدالولي خان وُ، نو د بهټو د لاسه دکراچې مهاجر هم په عذاب و، دوئ صوبائي سنده حکومت سخت ربولي وو، د دوئ جنګ په اردو ژبه او سندهي ژبه راغلي وُ، سنده کښې د پي پي پي حکومت وُ، د جماعت اسلامي او بهټو په بنګله دیش تسلیمولو او نه تسلیمولو باندې کبدي روانه وه، او بهټو او پیپلز پارټۍ حرص اخستي وو، دوئ غوښتل چې پاکستان کښې یو ګوندي حکومت جوړ کړي، او مخالفین وار په وار ختم کړي مګر د ټولو نه مشکل پښتانه او بلوچ وو، چې د دوئ مشر ګري نیپ کوله، او په طالب علمانو کښې پښتون سټوډنټس فیډرشن او بلوچ سټوډنټس آرګنایزیشن ډېر فعال او مضبوط تنظیمونه وو.

نو دغو نورو وړو وړو پارټو دولي خان سره د پښتو خلاف پناه اخیستې وه، د دوی ټولو ددې لحاظ نه مقصد دغه وو، چې وطن ته یو جمهوري اسلامي او صوبا ئې خودمختاری په بنیاد ایښے آئین ورکړي، نو دې سلسله کښې ځان د عوامي رابطې یو پروګرام جوړ کړے ؤ، چې دوی به ټول پاکستان کښې خلک د پښتو د عزائمو نه خبروي، او هره صوبه کښې به دوی جسلې کوي، نو دوی اول شروع د پنجاب راولپنډۍ نه کړې وه، او تاریخ یې ورته ۲۳ مارچ ۱۹۷۳ خوښ کړو، چونکه د پښتو او پیپلز پارټۍ ګړ پنجاب ؤو نو پښتو وداریدو چې ځما په مرکز باندې ولي خان قبضه ونه کړي، داځکه چې پنجابي داسې خلک وو، چې د پښتو هم په اعتبار نه ؤ، نو صوبه پنجاب بۀ ځان ته یو قسم ذاتي شکارګاه ساتل غوښتل چې بل څوک سیاستدان به یې نه پکښې پریښوده.

U・D・F د ولي خان ترمشرۍ لاندې دغه فیصله کړې وه چې مونږه به دده په ښکارګاه کښې ښکار کوو، داځکه چې پاکستان کښې د خلکو د ډیروالي پنجاب کښی دے پښتو پوره ؤ چې پنجاب لاړ شي، هرڅه لاړل،

(U・D・F) united Democratic Front.

د (U.D.F) تش نوم ؤ حقیقت کښې پهلواني د

نیپ او پیپلز پارټۍ ترمنځ وه، نو نیپ والاو پښتونوکښې
علان وکړو، چې لیاقت باغ جلسه به کامیابه وو، پټول
به د جلوس په شکل کښې پنجاب ته ځو، د وئ علان وکړو،
چې هیڅوک به اسلحه له ځان سره نه وړي، که څه هم
مونږه ځنې بډې خبر شوي وو، چې د بهټونیت د جلسې ته
د پیرخیران د ے دوئ یې ورانول غواړي، خو زمونږ
مشرانو د غه خبره دومره، "Serious" وانه خیسته،
مونږه د پښتون ستهودنټس فیډریشن والو، یوبس کرایه
کړو، د جلسې د پاره د نیپ په جلوس کښې شامل شو، تقریباً
قضا ماسپښین لیاقت باغ راولپنډۍ ته ورسیدو، چونکه
د U.D.F. نوم وو، جلسه په حقیقت کښې د N.A.P.
وه نو ځکه په انتظام باندې یې د دوئ قبضه وه اجمل
خټک چونکه د نیپ جنرل سکرټري وو، نو سټیج باندے
د ده او پښتون ځلمي قبضه وه، خو کله ورو خبرو نه مو
اوریدل، چې پیپلز پارټۍ او خاصکر مصطفیٰ کهرچې
د پنجاب وزیراعلیٰ وو، غواړي چې جلسه باندې مسلح حمله
وکړي، خپل خلک یې په ځای په ځای کښینولي وو، خو تر
دې وخته پورې زما د غه خیال وُ چې دوئ به نعرې،
کوي، پدې طریقه به د U.D.F په جلسه کښې کړ بړ کوشش
کوي، چونکه مونږه مضبوط وو، نو خیال مو وو، چې دغه

نمونه کړېږ مونږه قابوکولے شو، اول خرابي په بجلی کښې راغله، نه دسټیج لاندې ولاړوم، اجمل صاحب را ته اشاره وکړه چې زه وراغلم نو راته يې ووئیل: چې د P.S.F والا دې سټیج سره نږدې راشي، چې څوک وراني ونه کړي، چې ما هلکان سره راغونډول پیدې دوران کښې لرې ډزې وشوې، او د U.D.F مشران راروان وو، سټیج ته راوسیدل چې دوئ کښې دمحاذ صدر خان عبدلولي خان سردار شوکت حیات، پیر پګاړو چوهدري ظهور الٰهي او نور ډېر وو، چې زه بیا سټیج ته ورتلم په دې کښې دلیاقت باغ سره نږدې دراجه بازار داړخه دکورو دچهتو نه دواتریک په جلسه ډزې وشروع شوې، جلسه لا شروع نه وه، دلته د صوابۍ یو هلک وُ چې سټیج باندې داجمل صاحبؔ وُ، زمانه په دوه درې ګزه لرې وُ چې ګولۍ په ولګیده۔

**نوټ**:- د هلک نوم حضرت ګل د ترخې وُ، ما ته دده نوم وزیر ګل ونبودہ۔

اجمل صاحب او زه بچ شوو، بس خه وو یو قیامت وُ، پنجابیانو یعنې پیپلز پارټۍ بدمعاشانو په تش لاس پښتنو باندې دګولیو باران شروع کړو، اوس دومره ګډوډي شوه، چې زمونږ کوشش وُ چې ولي خان بچ کړو۔

پښتنو اول ردِ عمل ګرلو ډ وُ، چې داځه وشول اوکېږي ،
بس ځه وو په تش لاس په پنجابیانو باندې ورا غلل، ددوی
نه یې د ګنې چوکې په ذریعه ټوپکې واخیستلې پخپلو ټوپکو
یې مړ کړل، زمونږ د جلوس ځینی بسونه دوځاوسوځول
ما ته یاد دي چې دغه اول پښتون هلک شهادت ته وارخطا
کړم، خو دغه ډېر لږ وخت وُ، ځان مې سنبال کړو، یو
پنجابي وُ لوی لوی بریت یې وو، دګنې د چوکو په ذریعه
پښتنو ځینې ټوپک وړے وُ، ما چې ولیدو نوما ډېر نښلوه
په راسمه کړ، مونږه یې وهو، دے سوالونه کوي، په
دې دوران کښې ارباب سیف الرحمٰن خان ولیدو، ارباب
صاحب چې چالیدلے وي، لوی دنګ سړے دے ډېره
مضبوطه بادي یې ده، ما ته یې وویل چې محسوده ما ته
یې پرېږده، ما ته ښه یاد دي، د غټ ربړ ځپلې یې وې
د فټ بال غوندې ورته په شا لاړه یوکیک یې ورکړو
پنجابي دکیک سره چې ځه خوړلي وو، ټول یې ټهیٔ کړل.
ارباب همایون هم په لګیا شو دغه پټ راغلي وُ، دده په ذمه
په ستېج باندې ولي خان او نورو مشرانو قتل کول وو،
خو مونږه مخکښې ولیدو ګیر مو کړو، ګنې ډېره لویه تباهي
به یې کړې وه، ولې چې ډبل بورچاریدار ټوپک ورسره
وُ، بس اوس ډ سپلین مات شوے وُ، ما دارباب همایون نه

پوښتنه وکړه چې طمانچه نښته درسره، وے نه، دبل چا نه مې تپوس وکړو خو د چا سره نه وه، زما پروګرام، دغه و چې زه پير پګاړو به ولسم، چې بهټو ته په سندهو کښې د اسې غوبل جوړ کړم، چې ياد يې وساتي ولې چې ګلووړي وه، چا ته پته نه لګيده چې څوک چا مړکړو. خو د پير پګاړو او د بهټو دواړو قسمت ښه و، په دې دوران کښې دغه پنجابي سردار شوکت حيات خان ته په پنجابۍ کښې منتو نه کوي چې د خدای د پاره پنجابي بهائیوں سے پٹھانوں سے چُھڑوا، ما ته ښه ياد دي چې سردار شوکت حيات ورته کنځل وکړل، او ورته يې وويل چې تا دغه کار کولو نوماته دې تپوس کړے وی، په تير شو، خو دومره وهل يې خوړلي وو، چې ژوندي پاتې کيدل يې مشکل و، بس موږ ته اردو شو چې لياقت باغ ته ځو، فوج را ځي، موږ د ولي خان سره د ټولي په شکل کښې روان شوو، دلته زموږ ۵دو ۵ پوزيو هلک و، په قوم دوړو، د خيبر ميډيکل کالج طالب علم و، نوم يې انورجان و، هغې شور جوړ کړے و چې، ولي خان ته به يې ويل چې د پښتونستان د آزادۍ علان وکړه، زه ورځکښې شوم ورته ويل، مې چې ليونے يې اوکه پيرے دغه اوس د پښتونستان د آزادۍ ځائي يا وخت دے. زما خيال دے چې ولي خان د سره دده په خبره پوه نه شو، ولې

په دے چې زمونږ سره دده دڅو ونه خطره وه، او انورجان په د آزادۍ اعلان کولو، او س هرچا کوشش کولو چې د فوج او پولیس نه ځانونه سنبال کړي، مونږه د P.S.F والا سره تار په تار شوي وو، د مرو او زخمیانو پته نه وه، خوما بلال شاه ولیدو، دده نه د P.S.F یو هلکو وئ، چې دغه هلکئ دانډونشیا وُ، اسلامیه کالج کښې یې سبق وئیلو، د بلال دوئ ملګرے وُ. دے هم مونږ سره پنډۍ ته راغلے وُ، مونږ سره غم شو چې شهید شوے نه وي، خو رسوت مو پیدا کړو، بس د پانۍ پت جنګئ خلاص شوے وُ، پښتانه څوک واپس پېښور ته روان وو، او څینو چالاکو د خپلو خپلوانو سره اسلام آباد او راولپنډۍ کښې ځانونه ځای کړي وو، زه اول کوهاټ ته راغلم، د کوهاټ نه کابځ پېښور ته لاړم، چې پته ولګوم چې څومره خلق زمونږه شهیدان شوي دي، زما خیال دے چې پنځه کسان زمونږ شهیدان شوي وو. او یو ولس پنجابیان وو.

مونږه P.S.F په S.T.C کښې جلسه وکړه، فیصله مو وکړه چې په صوبه کښې به پنجابیان د بوورد دې سره پېښتو په پنجابیانو او مهاجرو باندې هیبت راغئ، خو دنیپ مشرانو مونږه منع کړو، چې د دوئ څه قصور دے دغه خو بهټو او پیپلز پارټۍ وکړل. پدې منځ کښې اجمل خټک صاحب وژک

شو، ولي خان بيان جاري کړو، چې خټک صاحب پښتو په راولپنډۍ کښې شهيد کړو، د دوئ لاش يې ورک کړو، او په پښتو باندې تړار ولګيدو، د N.A.P والا ډېر ګډوډ وو، داځکه چې خټک صاحب څه معمولي پښتون نه ؤ،

# د اجمل خټک صیب افغانستان ته تګ

په دې وخت کښې اجمل صاحب د نیپ مرکزي جنرل
سکرټري وُ ، جنوري ۱۹۷۳ کښې د نیپ د صوبائي حکومتونو
ماتولو په وجه د نیپ او پښتو ترمینځ حالات ورځ په ورځ
خرابیدل ، او ډېرې دغه کوشش کولو ، چې د N.A.P د
سر سړي ورک کړي ، نو خوځلې په ولي خان باندې
قاتلانه حملې شوې وې ، هسې خدای بچ کړے وُ . په
بلوچستان کښې پېر فوجي کاروائي روانه کړې وه ، هره
ورځ به یې د بلوچو ماشومانو په بمونو الوزول . د وئ
پښتون عبدالصمد خان شهید اڅکزئ یې شهید کړو ،
محمد صادق کاسي یې شهید کړو ، چې د ې مرکونو کښې د
پاکستان د فوج نه واخله تر ایران خفیه پولیس سوا ک
پورې لاس وُ ، چې دوئ په بلوچستان کښې کړ بړغونښتل
چې پښتانه او بلوچ سره خپلو کښې وجنګوي ، او د دې
ظلم او زیاتي نه باهر دنیا کمه خبریده . باچا خان د-

افغانستان ته واپس راغلی وُ، نو N.A.P ته د باهر
دنیا سره د رابطې دپاره یوه کرکه پکار وه، چې دخپل
مصیبت نه دنیا خبره کړي، چې بهتو کوم ظلمونه راخیستی دی
دغه هله ممکن وو، چې یو اعتباري سړے او شخصیت باهر
کښیني، د رابطې یو مرکز جوړ کړي، او د بهتو په حکومت
په یو قسم دباؤ پریشر وي، نو دغه ځائے قدرتي خبره ده چې
افغانستان وُ، او بل اجمل صاحب دافغانستان نه ښه خبرو
د دوی د طبعیت او سیاست په مینځ کښې یې نتول سائلے شوو
ن مونږ د P.S.F دنیپ سره درابطې دساتلو مشر اجمل صاحب
وُ، یا په بله معنیٰ خټک صاحب د N.A.P داړخه د P.S.F
سره د رابطې مشر و، نو ده قدرتي خبره ده، چې د P.S.F
کښې یې ځان ته اعتباري کسان لرل، چې په هغوی کښې زه
هم وم، مونږه څلور کسان وو چې د خټک صاحب
راباندې باور وُ، ۱- علي خان محسود (۲) افراسیاب خټک،
۳- عزیز بلور. (٤) مختیار باچا، نو یو ماز یګر یې مونږه
خپل دفتر ته راوغوښتو، او دوطن په سیاست او د بهتو
په ارادو یې لوئ تقریر وکړو، او خټک کښې یې راته ووئیل:
چې د دلیاقت باغ دجلسې نه وروسته بره ځم، نو هغې بوړے
یې له ځان سره وساتۍ چې زه رسیدلے نه وم، صبا چې
دلیاقت باغ په جلسه کښې ډزې وشوې خټک صاحب ورک

شو. ولي خان به ویل، چې بهټو شهید کړے او لاش ئې ورک کړے دے، نو ماته به خندا راتله. داځکه چې ماته پته وه، چې دے چیرته دے، خو مونږ چوپ وو، ولي خان ته پته وه، بهټو یې ډېر په عذاب کړے وُ،

دغه ډرامه ډېر ژر حبوته شوه. هغه داسې چې اجمل صاحب نه غوښتل، چې افغانستان کښې ښکاره شي، صرف ظاهرشاه او د سرحداتو رئیس قبائیل او دحکومت وزیرعظم موسیٰ شفیق په خبرو، نو اجمل صاحب ورته وئیلي وو چې زه ځان پټ ساتل غواړم، چې بهټو باندې پریشرپیدا وي، خو افغان حکومت دغه ورسره ونه منل. دوئ ورته وویل، چې یا خو پریس کانفرنس وکړه، او یا بیرته ځه، اجمل صاحب د نیپ دمشرانو سره رابطه جوړه کړه، چې څه وکړي، هغوئ ځواب ورکړو، چې نه دې پرېږدي نو بیا ځان ښکاره کړه، راتګ دې خطرناک دے، د افغانستان باد شاه او وزیرعظم موسیٰ شفیق دغه ټول د امریکې خلک وو، او یو بل بدبخت او سپیره پښتون، د ریاست قبائیل، رئس وُ، نوم یې نه راځي، خو ننګرهارے یې ځان ته وئیلو، دغه د پاکستان جاسوس وُ، ختک صاحب یې ډېر په عذاب کړے وُ. باهرحال اجمل صاحب پریس کانفرنس وکړو، او د خپل راتګ وجوهات یې بیان کړل، او د دې

سړ د ولي خان د پروپيګنډو د غرقي نه هوا ووتله، او هغه
پريشر د بهتو نه لري شو.

اجمل صاحب افغان حکومت دومره په عذاب کړے وُ.
چې جون ۱۹۷۳ کښې زه پته د ميرانشا او خوست په لاره،
ورغلم، دده سره نور لالئ او روز ګل د چارسدې هم وو،
چې زه يې وليدم په سترګو کښې يې اوښکې راغلې، خو
زر يې ځان سمبال کړو، ده ته يې کابل هوټل کښې يوه
کوټه ورکړې وه، او د ساتنې د پاره يې نور لالي، ته يو زوړ
مُردار ټوپک ورکړے وُ، خو حالات زر بدل شول. يو
نوے باب شروع شو، په ۱۷ جولائ ۱۹۷۳ کښې داود خان
د ظاهرشاه، موسیٰ شفيق او ننګرهاري بسترې ګول کړې
د شاهي حکومت په ځائ يې جمهوريت اعلان کړو، افغانستان
واک د ځوانانو په لاس ورغئ، لکه فيض محمد محسود وزير داخله
باچا ګل ځدران وزير سرحدات، او د غسي نور، چې دغه
ټول يوقسم د اجمل صاحب شاګردان وو، نو د دوئ د
راتګ سره د خټک صاحب ژوند او عزت د سر ينوب شول،
دوئ ته يې يو کور ورکړو، د حفاظت يې ښه بندوبست
وکړو، او داود خان د پښتونستان مسله د لسو کالو نه پس
بيا راګرمه کړه.

## د پښتون سټوډنټ فيډريشن د پښتو خلاف

## هلې ځلې

## او د عراق د سفارتخانې د اسلحې درامه

که څه هم د کتاب موضوع P.S.F نده مګر بیا هم P.S.F د ملي غورځنګ نه نشي ګوښه کيدای. ۱۹۶۸ کښې د P.S.F د سیاست مرکزي نقطه دون یونټ ماتول وو، او ورسره دایوب خان لرې کول وو، د سرې په سر ووټ، د طالب علمانو د حقوقو د پاسه ټکا و دو وو، همدغه وجه وه چې اکتوبر ۱۹۶۸ کښې محمد هاشم خان چې د P.S.F هم خیال طالب علم وو، پېښور کښې دیوې لوې جلسې په دوران کښې په صدر ایوب خان ډزې وکړې چې خطا شوې، هم ددې سره دایوب خان د حکومت رعب او تقدس مات شو، په ټول پاکستان کښې یو شور راپورته شو، او مارچ ۱۹۶۹ کښې یو بل جنرال یحیٰی خان دایوب خان په ځای، راغې، ده دآزادو انتخاباتو کولو دون یونټ ماتولو او صوبې بیرته بحال کولو د سرې په سر ووټ ورکولو وعدې

اوکړے، خو ددې مطلب دا نه وُ چې موږ نره پس ناست وے، ا
جدوجهد نور هم تیز شو د P.S.F سیاست روږو
خپل ملي شکل اختیار ولو په لاره روان شو، اول سرکښې
خو ټول پښتانه پکښې وو، مګر روستو قوم پرستو
طالب علمانو په قبضه وکړه، او دغه نور پښتانه چې نسلاً
پښتانه وو، او سیاستاً نه وو، رو رو د P.S.F نه لرې
کړل شول ۱۹۶۹ شروع کښې P.S.F په واضح توګه
خپل سیاست غوره کړو، د پښتنو د سیاسي، اقتصادي او
او کلتوري حقوقو د پاره خواري کول، حمونږ د سیاست
تکے وُ، هرهغه سیاسي ګوند یا Stadents orgonisationL
چې حمونږ دا رمانو سره یې ټکر راتلو، موږه یې په سخته
مخالیفت کولو، چې اول سرکښې مسلم لیګ او جماعت اسلامي
او د دوئ د طلباء تنظیمونه وو، داځکه چې دوئ د پښتون
نشلزم مخالف و، او د پنجاب مفادات دوئ د پاکستان او
اسلام تر ټکرې لاندې ساتل، او د پښتنو او بلوچو په
ارمانونو یې پښې کېښودلې، که څه هم حمونږ او پیپلز
پارټۍ او د دوئ تنظیم پیپلز سټوډنټس فیډرېشن په سیاست
کښې فرق وُ، خو د ۱۹۷۰ د انتخاباتو پورې، حمونږه او د دوئ
څه خاص ټکر نه وُ، خو چې انتخابات وشول، نو د رې
قوتونه په پاکستان کښې جوت شول، چې سابقه شرقي پاکستان

« بنګله دیش» کښې عوامي لیګ انتخابات وګټل او داسې وګټل چې د ټول پاکستان په قومي اسمبلۍ کې اکثریت ؤ، پنجاب او سنده کې بهټو پارټۍ P.P.P وګټل او صوبه سرحد «پښتونخوا» او بلوچستان کښې د N.A.P ولي خان ګوند وګټل، خوچې پنجابیانو ولیدل، چې اوس بنګلیان دواکمنۍ خاوندان کیږي، چې د دوئ د پاکستان د جوړیدو نه پس په قسما قسم چلونو د ایسارولو هڅې وکړې وې، چې د غلام محمد د کودتا نه تریحیٰ خان د کودتا پورې دوئ د پاکستان واکداران وو، او اوس په دوئ باندې دوه تندرونه راپریوتل، یو خو بلوچ، پښتون او سندهي دون یونټ د حجرې نه خلاص شول، او بل دغه تندر په راپریوتو، چې بنګال کښې قوم پرست حجیب عوامي لیګ په اکثریت راغئ، نو پنجابیانو خپل مستقبل په پاکستان کښې تور ولیدو، چونکه دوئ او مهاجر په فوجي او سول نوکرشاهي کښې زورور وو، د پاکستان اصلي واک د پارلیمنټ سره نه ؤ، بلکې د جنرالانو او سکترپانو سره ؤ، دوئ بیا دون یونټ جوړولو کوشش شروع کړو، خو دې حُل یې شکل بدل ؤ، دوئ دوه منصوبې لرلې، یوه دغه وه، چې د بنګالیانو ټکول پکار دي، چې بیا د حکومت نوم وانخلي او که دغه ممکنه نه وي، نو پکار دي چې دوئ د پاکستان

نه دا سې طریقه باندې وشرو، خو په داسې استاذې سره چې په موږ باندې الزام را نه شي، چې دوئ ورکئ شي، نو باقي پاکستان کښې به بیا هغه دون یونټ حالات جوړ شي، سابقه مغربي پاکستان کښې ځموږه اکثریت وُ، چې بنګالیان لاړ شي، نو مغربي پاکستان به په پاکستان بدل شي، او د نوي پاکستان قومي اسمبلۍ کښې د پنجابیانو په اکثریت وي، نو که پښتانه، بلوچ، او سندهیان تش په نوم صوبې لري، دغه ځموږ د مفاداتو د پاره خطرناکئ نه دي، دا ځکه که دوئ د ریواړه په جمهوري طریقې سره هم یوځای شي، نو بیا هم پنجاب نه بغیر حکومت نه شي جوړولئ، او مجیب یا بل بنګالے به نه وي چې دوئ ورسره لاس یو کړي، ځموږ د خواهشاتو خلاف مرکز کښې حکومت جوړ کړي، نو دوئ ته دا ښه بهتو معلوم وُ، چې د اقتدار د پاره هر څه ته تیار دے نو د بهټو د بې حرمئ نه دوئ فایده اوچته کړه، بهټو یې د فرنځ لیډر غوندې د خپلو مفاداتو د پاره د مجیب او عوامي لیګ خلاف استعمال کړو، جمهوري لاره دغه وه چې پارلیمنټ اجلاس راغوښتے شوے وے، چې د چا اکثریت وے، هغې ګوند حکومت جوړ کړے وے، چونکه دوئ جمهوریت ته نه کتل، پنجابي مفاداتو

ته یې کتل ، دوئ بهټو ته اشاره وکړه ، چې موږ ه

د ر سره یوو ، بهټو غیر جمهوري او غیر پارلماني

لاره اختیار کړه ، دواړ د تقسیم مطالبه یې د مشرقي

او مغربي پاکستان په بنیاد وکړه ، { اِدهر هم اُدهر تم }

نعره یې وکړه چې دغه د پاکستان د ماتولو اولنۍ خښته

وه ، چې څه وخت بهټو شاهي باغ چارسده کښې رولي.

خان سره ولیدل ، نو ولي خان په سازش کښې د شامیلید و

نه صفا انکار وکړو ، صفا یې ورته ووئیل چې د اقتدار فیصله

به پارلیمنټ د ننه د اکثریت او اقلیت په بنیاد کیږي ، چې

دغه لاره ټوله نړۍ کښې مروجه ده ، نو پکار د اسې دي

چې اول دې د قومي اسمبلۍ اجلاس راوغښتې شي ، بیا

د ستا او مجیب مرضي ده ، چې اختیارات څرنګې تقسیموئ.

دغه رنګې خبرې بهټو ته چرته قبولې وې ، نو د NAP

اُو بهټو ترمنځ اختلافات ورو روڅور شول ، داځکه چې

N.A.P اُصولي خبره کوله ، بهټو په هره طریقه اقتدار

اخیستو ، چې ولي خان نه یې صفا جواب وموندو ، نو

بهټو چغه پورته کړه ، چې څوک ډهاکه ته دقومي اسمبلۍ

د اجلاس د پاره لاړشي ، نو موږ به د دوئ پښې ماتې کړو ،

او ورته یې ووئیل چې یک طرفه ټکټ واخلئ ، او س،

مجیب هم پوه شوے و ، یحیٰ خان ته ټکا خان جنرل د پنجابیانو

په نمایندګی دهمکي ورکړې وه ، چې که اختیار دې مجیب ته ورکړو ، دستا خلاف به سخت قدم پورته شي، نوېچي خان دوي مجبور کړو ، چې نتیجه یې هرچا ته معلومه ده چې بنګله دیش جوړ شو ، دوئ ون یونټ په بل شکل بیا بحال کړو ، او نوم یې ورته نوے پاکستان ورکړو ، او بیوقوف او حریص پښتو دوئ استعمال کړو ، نو اوس د بنګالیانو نه پس، ورته پاتې ون یونټ کښې N·A·P وه ، پنجابیانو پښتو د N·A·P خلاف استعمال کړو ، د N·A·P او پي پي پي د ګیلړه نه پښتون سټوډنټس فیډریشن .یې طرف یا غیرجانبدار نه شو پاتې کیدے ، نو چې څومره به د دوئ اختلافات زیاتیدل هم په هاغه پیمانه د P·S·F او پیپلز سټوډنټس فیډریشن سیالي او مقابله په کالجونو او یونورسټیو کښې سیوا کیده، چې دغه د ۱۹۷۲ نه نوره زیاته شوه ، مګر مئ ۱۹۷۲ کښې یې په دوه صوبو کښې واک ورکولو په وجه ترڅه حده پورې اختلافات دومره سخت نه وه ، مګر ۱۵ فروري ۱۹۷۳ نه پس اختلافات

اخري حد ته ورسیدل ، داځکه چې د پښتو حکومت دلاسه زمونږ صوبائي حکومتونه غیرقانوني ړنګ کړل شول، او دې دوران کښې په ولي خان باندې څو ځله قاتلانه حملې وشوې چې شانه یې پښتو او د پنجاب د مفاداتو ساتونکي فوجي اوسول بیوروکراسي وه ، هسې خو P·S·F په ۱۹۶۸ کښې جوړ شوے وُ،

مگر اصلي تنظيم يې په ۱۹۷۱ کښې ووشو، هغه داسې چې
زه د ورېره اسماعيل خان کالج نه پېښور يونورسټۍ ته راغلم
افراسياب خټک د بنون نه پېښور ته پوهنتون ته راغئ او
عزيز بلور، هم يونورسټۍ کښې داخل شو، زموږ نه مخکښې
نثار خان شينوارے د کوهاټ د کالج نه پېښور يونورسټۍ
انجنيرنګ کالج کښې داخل شوے وُ. چې د پښتون فيلو شپ
صدر وُ، او جنرل سکرټري يې د بلوچستان پښتون بسم الله
جان کاکړ وُ، چې دوئ دواړه هرڅه وو، خو ډيموکرېټ
نه وو، بلکې نثار د صدارت نه او بسم الله جان د سکرټريتوب
نه قبائيلي ملکي جوړه کړې وه، دوئ په خپل زړه ندد ع ته تيار
نه وو، چې دوئ بل چا ته ځائ پرېږدي، هم دغه وجه اوډار
وُ، چې دوئ به تنظيم او ډسپلين ته غاړه نه کېښوده. -
( one man show ) به يې جوړه کړې وه، د
دې دا مطلب نه دے، چې دوئ د PS-F يا N-A-P ته وفادار
نه وو، د ټولونه دوئ وفادار وو. خو د هرچا څه کمزورې
وي د دوي دغه وه، مګر د دې سره ځوانو نوم وُ، خو
طالب علمانو کښې يې هغه کړنک نه و، څه د کومې ځوانه توقع
وه، نو زه افراسياب عزيز، بلور، مختيار باچا سره صلاح
شو، چې د دې ( Dilemma ) نه به P-S-F څرنګې
خلاصوو، چې نه P-S-F په ډلو تقسيم شي او منظم هم

شي دغه زموږ دپاره بنيادي سوالونه وو.

نو موږ داسې منصوبه جوړه کړه، چې اول مو دصوبې په ټولو کالجونو کښې د P.S.F د څانګو انتخابات وکړل او نثار خان به د هرې غونډې يعنې اجلاس صدارت کولو داځکه چې موږ نه غوښتل چې د ے رانه خفه شي، چې دغه مکمل شول، بيا مو يونيورسټۍ کښې دننه د مختلفو کالجونو د څانګو انتخابات وکړل، او د ټول ډيپارټمنټس موږ ممبران انتخاب کړو، چې هغه اياز وزير وو، د ے ډېر بې صبره و، غوښتل يې چې ژر دعهدې خاوند شي، خوده روستو څو ورځو سره دپښتو کار و نه کړو، د محمود اڅکزي سره لاړو، بيا روستو قبائيل سټوډنټس فيډريشن ته لاړو، اخري داسلم خټک ملګرے شو، او هغې پاکستان وزارت خارجه کښې نوکري ورته وکتله.

بيا ۱۹۷۲ کښې مو د ټولې يونورسټۍ انتخابات وکړل، چې زه يعنې علي خان محسود دپيښور يونورسټۍ د پښتون سټوډنټس فيډريشن صدر شوم، بيا مو د فيډريشن د پاره دآئين جوړولو باندې پيل وکړو، چې آئين موجوړ او پاس کړو نو دې کنوينشن کښې صوبائي او مرکزي انتخابات مو وکړل، چې دپښتونخوا صوبې صدر عزيز بلورخوښ شو، اولوی سکرټري يې افراسياب خټک منتخب شو، په

مرکز کښې یعنې د ټول پاکستان صدر نثار خان شینواری او
لوی سکرټري بسم الله جان کاکړ شو، محمد غني مودوي
خوشحال کړل، او اختیارات یې هم دا ئین مطابق محمد و د
شول، او تنظیم هم روان شو، چې دغه ټوله قیصه خلاصه
شوه نو زمانه یوه ورځ جنرل جیلاني پوښتنه وکړه
چې تاسو د نثار خان او بسم الله جان سره استاذي وکړه.
ما ورته وویل، چې هغه څنګه؟ ده وویل چې یونورسټۍ باندې
قبضه وکړه، صوبه باندې عزیز بلور او افراسیاب ختک
قبضه وکړه، ما ورته وویل: دوی د ټول پاکستان مرکزي
مشران دي، جنرل صاحب خندل، ویل یې چې پښتانه
" students " څو یا یونورسټۍ کښې دي، او یا
صوبه کښې، پاکستان کښې او مرکز کښې خو پنجابیان دي
پښتانه چرته دي، ما ورته ویل، چې جنرل صاحب موږ
دواړه خوشحال کړي دي، که تاسو ورته دغه خبره
وکړه، نو موږ ته به کار وکوي، جرنیل خندل ویل یې
چې دوی ته نه وایم تنش تاته وایم.
بس د دې سره کار ډېر توند روان شو، هرچاته
خپله لار معلومه شوه، نو اول سر کښې موږ، فوجي
قوت وو، یونورسټي او صوبه کښې مو رعب داب وو،
مګر انتخابي قوت نه وُ، موږ ته به چا ووټونه ورکاوه

خوچې زه، افراسیاب او بلور راحکښني شوو، نو
مونږه به تش د نثارخان غوندې طمانچه اِستلې نه
کړځوله، بلکې د مخالفینو سره به مو بحث اومباحثې کولې
او تاریخي واقعاتو باندې به مو رڼا اچوله، چې غټې
دوه درې الزامونه وو، چې هغه مونږه داسې یاد
کړي وو، چې څوک هم را ته نشو تهم کیدے یعنې،
(۱) غټ اعتراض به دغه وو، چې باچاخان دپاکستان
د جوړولو مخالفت کړے دے.
(۲) اوبل به دغه و، چې دوئ د هندوانو ملګري،
وو.
(۳) دریم به دغه وُ، چې تاسو پښتونستان جوړوئ.
دغه داسې الزامونه وو چې مونږ به هرځائ او هر
وخت ورسره مخامخ کیدو، نو مونږه داسې ښکلي جوابونه
ور ته جوړ کړي وو، چې جناح اولیاقت علي خان دوئ،
راڅوندي کړيئ وایي، هم مونږه پړکړکولای شول،
مونږه ته تجربې راښودلې وه، چې ناخبره پښتانه به ډېر
ژر زمونږ ملګري شول، داځکه چې دباچاخان خلاف
یکځ طرفه پروپیګنډه دوئ اوریدلې وه، اودروغ یه وو،
چې مونږ به دوه درې ورځې خبرې اوبحث ورسره وکړو.
نو دوئ به بیاسم شول.

خو مهاجر، جماعت اسلامي، پنجابيان به نه سميدل،
د غه کار به بيا موږ ه نثارخان ته پرېښود، هغه به
دوه درې وټکول، نو سميدل خو نه خو د واره به يې خولې
چپ کړې، يا به ځنې بيرته کراچۍ او پنجاب ته ځانونه
بدل کړل، هم په دې چل ول باندې موږ ه يونورسټۍ کښې
انتخابي پوزيشن جوړ کړو.
د پېښور يو مقامي اخبار و، چې مشرق يې نوم و
هغه به موږ ه او N.A.P پسې ډېر ناروا ناروا ليکنې کولې
چې ټول به دروغ وو، موږ ه ورته د نثار خان ترمشرۍ
لاندې ديو ناڅاپي ډبولو تنظيم جوړ کړو، يوماښام
د نثار خان ډلې په حمله وکړه، په مينټو منو کښې يې خپل
کار وکړو، د اخبار هرڅه يې ورته مات کړه، چې ده به
يعني صدر صاحب به دغسې OPERATION وکار وکړو، نو
ټوله مياشت به يې طبيعت وېال او سپنه و، خو چې چا به
ګله وکړه، موږ به ورته وويل، چې څه وکړو نثارخان
زورور هلک دے، زموږ نه مني.
موږ ه د سياسي زده کړې دپاره جدا جدا ټولي
جوړ کړي وو، چې موږ به مسله را منځته کړه، د هغې په
هر اړخ به بحث کيدو، چې آخري بريې نچوړ راووتلو، نو
د دې سره زموږ ه سياسي سوچ ډېر پوخ شو، دجذباتو

په ځای به مود حقیقتو ته کار اخیستو، په عمرکښی کتران وو، خو په سیاسي لارښکښي ډیر پاخه وو، د N.A.P اکثره مشران مونږه روسنتو پرینبسودل، دوه دري کاله وړاندې دوئ مونږ ته لوئ لوئ سیاستدانان معلومیدل، خو روستو مونږ د دوئ حد معلوم کړو، دوئ مونږ ته نوی vision نشو راکولے، صرف ولي خان او اجمل خټک د اسې - شخصیتونه وو، چې د دوئ سیاسي حد تر اخره پورې مونږه بنکاره نه کړاے شو، چې کله مونږه ورسره لیدلي دي، د دوئ نه مونږه یوه بالکل نوې خبره زده کړې یااوریدلي ده، څه نورو به هغه ز ړې قیصې بیا بیا کولے څه نوے شی به نه وو، د دوئ د عزت - خاوندان وو، او مونږه به یې ډیر عزت کولو، خو زمونږه نوره سیاسي اوعلمي تنده دوئ نه شوه ماتولے، بلکې مونږ به ټیټه سپي ټوکې خبرې کولې چې دوئ شاهي باغ ته لاړ شي، دولي خان د خبرو نه کیسې دکې کړې، بیا یې خپلو خپلو چړوکښې داسې غږوي، څه کښې دغه د دوئ خپلې خبرې دي

د دې بحث او مباحثې زه د ر ته یو لنډ مثال درکوم: ۱۹۷۳ او ۱۹۷٤ داسې کلونه وو چې پښتو به هره هفته یوه ډرامه د N.A.P خلاف یوه ډراجوړه، ده یوه

ډیره کامیابه ډرامه د عراق د سفارت خانې د اسلحې جوړه کړه دغه داسې وخت و، چې ولي خان بابا د سترګې د علاج د پاره لندن ته تلې و، بزنجو عطاالله منګل او نور بلوچ او پښتانه مشران څوک نظر بند وو او څوک قید وو، نو بهټو ته خپلو مشرانو دغه صلاح ورکړې وه، اوس ښه وخت دے چې په N.A.P باندې پابندي ولګوي، ولي خان د ملک نه بهر دے، داسې څوک په N.A.P کښې پاتې نه دي، چې د دې ډرامې ځواب ورکړي، نو موږ به دغه د عراق د اسلحې ډرامه په نیپ پورې تړو، چې N.A.P پاکستان ورانولو، دغه دے موږه جوته کړه.
نو څه کورو یوماښام موږه T.V خبرونو ته ناست وو، چې شروع یې د دې نه وکړه، د عراق سفارت خانه کښې اسلحه ونیولے شوه، روس N.A.P ته رالیږلې وه، دوئ پاکستان ورانولو، او پښتونستان یې جوړولو، په T.V باندې ټوله دغه پروپیګنډه وه، ریډیو باندې ټوله ښپه دغه یوه خبره وه ځوږ P.S.F والا یې ورخطا کړو، د N.A.P عام خلک خو د ومره وارخطا وو، د ځینو خو یقین راغلے وو، کنې چې ربښتیا دغه کار نیپ کولو، چونکه د بهټو حکومت دغه ټول په منصوبه کول، نو د T.V او ریډیو نه علاوه اخبارونو او مسلم لیګ

او د P.P.P خلقو هم دغه خبره ګرمه کړه چې،
په N.A.P دې پابندي ولګي، ځکه نور د
N.A.P مشرتابه د پروپیګنډې نه غلی شول، وارخطا
شول، ولي خان لندن کښې ؤ، بل داسې څوک نه وو،
چې د حکومت ځواب یې کړے وای.

بهتو ته څه علم ؤ، چې دغه ډرامه به ورته پښتون
ستوډنټس فیډریشن ورانه وي. مونږه مشرات اول کښې
وارخطا شو، خو زمونږه عادت جوړ شوے ؤ، چې داسې
ناڅاپي خبره به وشوه، نو هم مونږه به د مشورې د پاره
سره یوځائ شو، یو څه به یو وئیل، یو څه به بل، اخر
به د خبرې مطلب ته ورسیدو، او علاج به مو پیدا کړو.
مونږه په نمبر ا هاسټل ځاکوټه کښې کیناستو، تقریباً
د لسو بجو نه تر دوې بجو پورې مو بحث په وکړو، او د دې
پروپیګنډې اصلیت مو معلوم کړو، چې بهټو د خپلې
پروپیګنډو په وجه تیار جوړ وي، چې د N.A.P والا
وارخطا کړي، او بیا پابندي په ولګوي، او پارټي Ban
یعنې بند کړي، چونکه ولي خان نه شته نو اوس دغه
کار به مونږ کوو.

مونږه د خپل بحث نه د ځواب د پاره دغه نقطې راوښتې
او ومو وئیل چې سبا به صرف په دې خبرې کوو، نورې

په نه کوو:

(۱) اوله خبره به دا کوو چې دغه يوه پرامه ده بهتو ددې دپاره جوړه کړې ده، چې ولي خان د ملک نه بهر دے، چې په N.A.P پابندي ولګوي او خپل سياسي څېرف ورک کړي.

(۲) دويمه خبره به دغه کوو، چې بهتو وايي چې دغه اسلحه د N.A.P دپاره وه، نو دا اسلحې کمې خو زموږ نشته. د هرپښتون په کور کښې ټوپک دے، نو موږ ته د روس د اسلحې ضرورت هم نشته.

(۳) دريمه به دغه خبره کوو چې، که فرض کړو، روس موږ ته اسلحه راکوله، نو روس موږ ته روپۍ ولې نه راکولې، دره آدم خيل د هرقيسم اسلحې نه ډک دے، او موږ ته په دوه قدمه کښې ده.

(٤) څلورمه به دغه خبره کوو، چې فرض کړو روس روپۍ نه راکولې نو اسلحه يې کراچۍ ته، بيا د کراچۍ نه اسلام آباد ته، او بيا د اسلام آباد کښې د عراق سفارتخانه کښې شوله، داسې بيوقوف کار ليونې هم نه کوي، ځکه چې زموږ او افغانستان يو زر ميله سرحد دے، چې دغه کښې صرف ۵۰ ګزه طورخم کښې او ۵۰ ګزه چمن کښې ترڅارنې لاندې دے، دغه نه باقي نور ټول آزاد سرحد دے، نو روس ولې

آسلحه د افغانستان په سرحد مونږ ته نه راکوله.

نو مونږه فیصله وکړه، چې هر ځائے به د غه خلور نقطې یا په چې سبا اول یونورسټی کښې هلکان پوه کړو پیپلز پارټۍ والو خپل هلکان تیار کړي وو، چې تاسو به جلوس و باسئ، په N.A.P باندې به د پابندۍ مطالبې کوئ او وایئ به چې دوئ پاکستان ورانولو.

د دوئ خیال وُ چې مونږه د T.V او ریډیو پروپیګنډ نه د ومره ډار یدلي یو، چې سبا به د « students » د ډار نه و نو، دوئ ته څه پته وه، چې مونږ ورته ټوله شپه سکیم جوړ کړے دے، د دوئ د پروپیګنډو د غرقې نه به هوا وباسو، مونږه ټوله شپه د P.S.F په هلکانو وګرځیدو او د غه څلور نقطې مو ورته وسپنو دلې، او پوه مو کړل، چې د غه بهتو چل جوړ کړے دے، چې په N.A.P د ولي خان په غیر حاضرۍ کښې پابندې ولګوي، نو دوئ ته مو اخلاقي جرات ورکړو.

سبا چې یونورسټۍ ته هلکانو راړسیدل شروع کیدل، نو رو رو پیپلز سټوډنټس او مسلم لیګ « students » د جلوس جوړول شروع کړل مونږ هم په جلوس کښې ورګډ شو، چې مونږه یې ولیدو، نو دوئ وار خطا شول، چا پکښې نعره وکړه چې N.A.P او P.S.F هلکانو ډیر زر

ودبولو خوله یې دو یتو وکه شوه ، نو اوس دغه نور
وداریدل ، د انجینرینګ کالج سره نږدې د اګمانې سره یو
زوړ بس ولاړو ، موږه افراسیاب ته اشاره وکړه ، چې د
بس با نټ باندې هلکانو ته تقریر وکړه ، افراسیاب با نټ‌ته
وختو ، یونورستی هلکانو ته یې دغه څلور نقطې بیان‌کړې
او ورته یې وویل‌چې د بهتو اوقیوم خان د دروغوچل‌دے
دوئ غواړي‌چې خلک و ډاروي ، او بیا یې ختم کړي ، او د
ولي خان په غیر موجودګۍ‌کښې زموږ په ګوند باندے
پابندي و لګوي ،
بیا زه ورپور ته شوم ، ما په تفصیل سره ورته خبرې
وکړې ، چې د دې ډرامې شاته د بهټوکوم عزائم دي د
د ې سره یونورستی کښې هلکان پوه شول ، دوئ دغه‌څلور
نقطې ټینګې ونیولې ، او هرچا به ویل‌چې دروغ دي ، او س
چې زه راکوځیدم ، نو د پیپلزسټوډنټس فیډریشن‌صوبائي
صدر حمید الله زاهد کوشش وکړو ، چې د دے دبس با نټ
نه وخیژي خبرې وکړي ، خو زموږ هلکانو د بس نه راوغورځولو ، نو ده چغه جوړه کړه ، چې دغه‌څرنګې
جمهوریت دے ، چې پښتون سټوډنټس والا نورو ته
اجازت د خبرو نه ورکوي ، زموږ یو ملګرے ؤ ،
چې سرتاج نوم یې ؤ ، د امان کوټ ؤ ، هغه ورته وویل:

چې زموږ جمهوریت کښې زموږ ځای کیږي ، د بل
چا ځای مشکل دی ، حمید الله هلکانو وزغلولو ، د
دې سره یونیورسټۍ کښې مود بهتو منصوبه ناکامه
کړه ، اوس موږ ه فیصله وکړه ، چې چوک یادګار ته تګ
پکار دی ، چې هلته د N.A.P والاو ته زړه ورکړو ،
د دې سازش نه یې خبر کړو ، هلته موږ ه د قیصه خوانې
د شهیدانو قبرونو ته چې رسیدو ، د چوک یادګار لخوا
یوسف خټک چې د مسلم لیګ او پیپلز پارټۍ د جلوس
قیادت یې کولو ، راباندې راغی ، دوی چوک یادګار
کښې جلسه کړې وه ، د منصوبې مطابق یې په N.A.P د
پاندې مطالبې او قرار دادونه پاس کړي وو ، چې موږ
حمله په وکړه ، د دوی خیال هم نه و ، چې د N.A.P
والا جرات کولی شي ، د دوی خیال دغه و ، چې د ټولې
شپې T.V او ریډیو د پروپیګنډې ، په وجه مودوی
دو مره ډارولي دي ، چې دوی به پټ پټ ګرځي
ربښتیا خبره ده چې N.A.P والا ډیر بې جراته شوي
وو ، خو P.S.F صحیح تجزیې په وجه اول موږ ه
یونیورسټۍ سمه کړه ، بیا بنار ته لاړو ، نو زموږ ه او دوی
په منځ کښې شاه جنګ وشو ، چې زموږ د بنار N.A.P والا
خبر شول ، چې P.S.F والا راغلي دي ، قیصه خوانۍ کښې

دیوسف خټک سره جنګ د ے ، نو دوئ هم راغلل، مونږ
پیپلیان او مسلم لیګیان و زغلول ، اوچو ک یا دکا رکښې مو
جلسه وکړه ، او دغه څلور نقطې مو ورته بیان کړې نو
د N.A.P والا کرم شول، دوئ ته مونږ ه "ARGUMENTS"
په لاس وکړل ، نور خوبیا دوئ تکړه وو، بیا رکښې مو
هم ددوئ منصوبه ناکامه کړه ، بیا په دغه ورځ مازیګر
چارسدې ته لاړو ، هلته خلک ګرم شول ، بیا صوابۍ،
نوښار، کوهاټ او نور ډیرو پورې هلکان لاړل ، اوټول،
پاکستان کښې هم دN.A.P والو په ټیلفون باندې یوبل
ته دغه څلور خبرې کولې، ورپسې پریس کانفرنسونه وشول
ددې څلورو نقطو نه افغان انټلجنس والاخبر شول هغوئ
دکابل ریډیو نه بار بار، نشر کړه ، هم ددې په وجه
هر دعقل خاوند په دې پوهیده، چې دغه دبهټویوه
منصوبه وه، مونږه تیاره ورکه کړه ، بهټو موناکام کړو
که څه هم ده دغه اسلحه په ریل کښې سواره کړې وه،
دټول پاکستان په سټیشنونو یې نمائش کولو، خو هغه اثر
یې لاړو ، چې کوم دوئ اول مابنام جوړ کړې وه ،
څما خیال دے چې بهټو غلط شو، دده خیال وُچې ،
ولي خان هسې هم نه شته ، نو را سته اول دغه اسلحه
په ټول ملک وګرځوه، چې خلک د N.A.P مخالف کی ،

نو بيا بنليز په و لګوه ، خو ده ته څه پته وه ، چې P.S.F
د ده منصوبه ناکامه کوي ، که ده هغه ما ښام پا بندي
لګولې وے ، نو که روستو مونږ ډېر څه وئیلای هم
خو ده به اصلي کار کړے وے ، خو دے غلط شو دوه
انتظار وکړو ، او مونږه ورته ، په هغه ماښام د ډرامې
علاج را پیدا کړو ، نو ځکه روستو بهتو P.S.F ته ډېر
متوجې شو ، ولي خان ته نسیم بي بي روستو وئیلي وو
چې د N.A.P والو نه وارخطا وو ، خو د P.S.F والو
او خاصکر علي خان او افراسیاب د بهتو منصوبه ناکامه
کړه ، نو ولي خان به ما او افراسیاب ته کله نا کله قصداً
قدر راکوو .

روستو مونږ ته پته ولګیده چې په رښتیا دغه اسلحه
وه ، خو دغه اسلحه عراقي حکومت د ایران خلاف ایراني -
بلوچو دپاره راوړې وه . دا ځکه چې ایران عراق ته کُردان
را پوره ته کړي وو ، د مُلا مصطفی البرزاني تر مشرکړي ،
لاندې دعراق خلاف جنګیدل ، او بل د ایران او عراق په
شط العرب په اوبو کښې په برید یعنې سرحد باندې
سره وران وو ، نو عراقي حکومت غوښتل چې ایران ته ایراني
بلوچ را پوره ته کړي ، خو عرب بیوقوف وو ، دوئ اسلحه
د بلوچستان د کوسټل په لاره ایراني بلوچو ته نه ورکوله ،

بلکې اسلام آباد کښې یې جمعه کوله، بیا یې دوئ ته ورکوله، چې د بیوقوفۍ حد دے.

نو پاکستان انټلي جنس والو ته پته لګیدلې وه، دوئ قیوم او قیوم بیا بهټو خبرکړے وُ. دوئ د خپل مقصد حاصلولو دپاره دغه عراقي اسلحه د N.A.P خلاف استعمالوله خو P.S.F یې منصوبه ناکامه کړه.

همدغسې مونږه دومره زور پیدا کړو چې ستمبر ۱۹۷۳-کښې هلکانو زه د LAW کالج یونین صدارتي انتخاباتو ته ودرولم که څه هم زمونږ ملکري څنې زما د درولو مخالف وو، دوئ وئیل چې ته ناکام شې، زمونږه دپاره بدنامي ده، پکار ده چې یو نامعلوم د P.S.F ممبر ورته ودروو، خوځینو وئیل چې نه، ګورو چې مونږه انتخابي قوت یو او که نه، او بل زما مخالف د پیپلز سټوډنټس فیډریشن صوبائي صدر حمیدالله زاهد بنوچے ولاړ وُ، نو زمونږه مقابله ډېره سخته وه، د هغې وخت ټولو صوبائي او مرکزي وزیرانو کوشش کولو، چې زه ناکام شم، او حمیدالله زاهد کامیاب کړي، خو دوئ ته مونږه شکست ورکړو، یو زه کامیاب نه شوم، بلکې ټوله ډله، د P.S.F کامیابه شوله نو مونږه په انتخابي او قانوني توګه په خلکو ومنله، چې مونږه فوجي او ورسره انتخابي قوت یو. هم ددې سره

د P.S.F نوم جوړ شو، هغه بې طرفه او دغوړې کوړنۍ هلکان او جینکۍ هم د P.S.F اړخ ته مائیل شول، چې اکثره به دوئ د تلې سر ته کتل، موږه لوئ لوئ میوزک او ټنک ټکور پروګرامونه وکړل، چې هغوئ کښې مشهور هنرمند خیال محمد دګروپونه علاوه د افغانستان مشهوره سندرغاړې قمرګل او د هغې خاوند ذاخیل هم شرکت کړے وو، چې قمرګلې ته خلکو افغانۍ لته منګیش کړوائ، نور مشهور افغانې هنرمندان راغلې وو، چې هغوئ کښې (سپین بادام) ډیر مشهور و. د قمرګلې د قومي سندرو په وجه پښتانه هلکان او جینکۍ ډیر مسته شول، دهر ځا په خوله قمرګله وه، بلکې د مهاجرو او پنجابیانو پروفیسرانو خو خپلو مجلسونو کښې دغه خبره کوله چې P.S.F شعوري کوشش کوي، چې پېښنور کلتوري د پاکستان نه لرې کړي، او افغانستان پورې يې وتړي.

ما ته د جرنیل جیلاني مرمنې وئیل، چې ما د امریکې، پېښنور مقیم کونسلر جنرل ته وئیل: چې پښتونستان بس جوړ شو، یونورسټۍ حال کښې د جناح د تصویرلاندې د پښتونستان دملي ترانې غږ پورته شو.

زه روستو افغانستان ته تلے وم، بیا زه د هغې، وخت افغان وزیر داخله ښاغلے فیض محمد خان محسود،

سردار داود خان صدر افغانستان ته د ملاقات د پاره
بوتلم، سردار صاحب راته پوښتنه وکړه چې هغه زموږ
ځینې د رغلي وه، څرنګې د محصیلینو (طالب علمانو) خوښه
شوه. د ځینو ته مطلب قمرکله وه. ما ځواب ورکړ چې
د هلکانو او جینکو په پوهنتون (یونورسټۍ) کښې دومره
خوښه ده، چې که چیرې تاسو او خان ولي خان د واړه
په پوهنتون کښې د قمرکلي خلاف انتخاباتو ته ودریږئ،
نو دواړه به بائیلئ. په دې خبره یې ډېر وخندل.

د قمرکلې راتګ پاکستان دومره " serious " احسنی
وو. چې دې شپو ورځو کښې په لاهور کښې بهتو
د اسلامي کانفرنس درامه جوړه کړې وه. په دې
کښې د لیبیا صدر قذافي هم و، دوئ د قمرکلي اثرات کولو
د پاره پېښور یونورسټۍ ته قذافي راواستو، چې د هلکانو
او جینکو ته قمرکله هیره کړي چې بیا تش د قذافي
قذافي خبرې وي، په دې کښې دوئ ناکام شول، د قذافي
راتګ هیڅ فایده ورنکړه. موږ اوس د قوم پرستۍ
د پاره یوه دریمه او اهمه لاره جوړه کړه چې، هغه
میوزیک او کلتور وو، چې میوزک په وجه P.S.F
پوره پوهنتون باندې قبضه وکړه، اوس موږ سره د
خپل کار د پاره دریې لارې وې، سیاسي بحث، کلچر، او

فوجي، خوروستو وختوکښې مونږه دومره ډېرشوو
چې فوجي کار ته ضرورت پاتې نه شو، همدغه وجه
وه چې بهېتو P.S.F ته متوجې شو، زموږ دختمولو
منصوبې یې جوړې کړې.

# زما او د افراسیاب خټک نیول

اول سر کښې خو د بهتو دغه خیال وُ چې مونږ ه
هلکان یو، نو ده " Serious " نه اخیستو، خو چې مونږه
ورته د عراق د سفارت خانې د اسلحې ډرامه ورانه
کړه، نو دده پام ځمونږ طرف ته ډیر شو، نو ځمونږ د
ناستې پاستې نه به ئې ځان خبراوه، مونږه به کله سوات
کښې کله ډیرو تانک او کله خیبر کښې ګرځیدو، هر ځای به
موجلسې کولې نو د خفیه پولیس والا راپسې وو.

یو ځل ما ته بیرسټر دلاور خان د مردان وئیل، چې
دے زمونږ لا کالج کښې پروفیسر وُ، او سخت قوم پرست وُ، چې تاسو له
کله تهانه ملکنډو کښې کله به صوابۍ کښې او کله دره آدم خیل کښې وئ پاکستان
انټلي جنټس به مونږه خبرولو چې اوس تاسو دلته یئ، اوس دلته
یئ، پروفیسر دلاور وویئل، چې ما ته پروفیسر نثار علي خان وئیل چې پاڅه عجیبه
خبره ده، چې علي خان محسود او افراسیاب خټک ځمونږه
شاګردان دي، دوئ چې خوځي، نو بیا حکومت وارخطا وي،

اومونږ ته خبر راکوي، او مونږه پروفیسران یوځوک مو
تپوس نه کړي، بیرسسټرصاحب وئیل چې ما ورته وئیل ،چې
پروفیسرۍ پریږده، ددوئ غوندې د پښتو مخالفت شروع
کړه، د ستا به هم پولیس تپوس وکړي، وئیل یې چې نثارخان
وخندل ،وئیل یې اوس هې په پولیس ډبوې څه؟ هم دغه
یومعمولي مثال ؤ، چې دوئ مونږه څومره سخت ځارلو،
یوځل څوتنه صدر نثار خان شینواري راته وویل
چې دلته ځینې فوجیان دي، څوتنه سره خبرې کول غواړي
دوئ پښتانه وو دپاکستان هوایي فوج کښې افسران وو،
مونږه ورسره ځوځله خبرې وکړې، خو ډیر پرهیز
موکولو، ولې په دې چې زمونږ شک وو، چې دوئ، د
پاکستان دفوج انټیلی جنس خلق دي، دوئ وئیل، چې،
مونږه د پښتو خلاف کودتا کوو، یعنې تخته یې اړوو،
مونږه ورته ووئیل، چې مونږه خو طالب علمان یو، نو
زمونږ ددې سره څه کار دے. دوئ راته ووئیل، چې
مونږ قوم پرست پښتانه یو، او تاسو هم قوم پرست یئ ،
پښتو دافغانستان دپاره او د N·A·P اوبلوچستان دپاره
خطره ده، دده مرکز پکار دے ،مونږ ورته ووئیل،
، چې مونږه دستاسو څه خدمت کولے
شو، دوئ راته وئیل، چې څه وخت پښتو پښو ورته راځي

نو مونږه یې په جهازونو حمله کوو، او جهازونو یې بمبارۍ کوو.
او په راکټونو یې ولو، دستاسو کار به دغه وي چې څه
وخت دغه کار وکړو، نو تاسو به جلوس وباسئ. واي
به چې دغه ښه وشول، چې ډېر ښه مو مړه شو، مونږ تپوس وکړو
چې مونږ به تاسو څرنګې خبروئ، دوی وویل چې څه وخت
مونږه دغه کار وکړو، نو څومونږ جنګي جهازونه به په لاکالج او
یونیورسټۍ باندې دوه غوټې ووهي، دغه به اشاره وي، چې
کار وشو، مونږه ورته وویل، چې ټهیک ده، بیا دوی وویل:
چې تاسو یوکس دافغان حکومت سره رابطه جوړه کړې،
که مونږه ناکام شو، مونږ ته بیا سیاسي پناه راکړي.

مونږه داول نه په شک کښې وو، داځکه چې پاکستاني
فوجیان بیا د طالب علمانو سره دومره آزادي څه دچل نه -
خالي نه وه، مونږه ورته وویل چې افغان حکومت خپل سیاست
کوي، زمونږ په خوله هغه کار نه کوي، اوبل مونږه ورته
وویل چې مونږه ډېر په ټوپک مړکول نه غواړو، په سیاسي
لاره یې ختمه وو. خوکه تاسو یې مړکوئ اوفوجیان ځینې،
حکومت نیسي، نو دغه دستاسو کار دے.

روستو مونږ ته معلومه شوه، چې دغه چل حکومت
جوړ کړے وو، چې مونږه جزباتوکښې را شو، څه غلطي
وکړو، چې دوی لاس راواچوي، دغه چل نصیرالله خان بابر

جوړ کړے وُ ، په حقې وخت کښې دے د فرینټیر کور کمانډر او میجر جنرل وُ ، دغه کسان هم د نوښار پیر بیائی وو، او دے د پښتو لویه چمچه روستو جوړ شوه ، دوئ په ګډه

دافغانستان دپاره ګلبدین مسعود او رباني جوړ کړل ، چې په دې کښې مونږه ګیر نشوو ، نو دوئ نور چالونه جوړ کړل، مونږ یې دارولو، دیونورسټۍ بهر جلسې نه منع شو، مونږه خو ټوله صوبه په حقه کړې وه ، خلکو به څمونږ خبرې شي اور یدے ، دا ځکه چې مونږ طالب علمان وو، خبرو کښې موچل ول نه کولو ، په دې باندې حیات خان شیرپاو وارخطا و ، نو دوئ زمونږ دنیولو پلمې لټولې خو مصیبت دغه وُ ، چې زه د لا کالج صدر وم ، نو دوئ دارېدل ، چې که لاس وا چاو، یونیورسټۍ کښې به هرتالونه شروع شي ، دوئ انتظار وکړو، چې د کرمې وخت راشي د دوئ تعلیمي کال په پوره کیدو دے ، بیا لاس وراچوو، یوځل ما او افراسیاب په چوک یادګار کښې تقریرونه وکړل بس څه وو، دوئ راپسې وارنټ ګرفتاري جاري کړو، مونږ یې یوقسم په یونورسټۍ کښې نظر بند کړو، دواښ چانسلر عبدالعلي خان او صوبائي حکومت دغه «understanding» راغلی وو، چې پولیس به یونورسټۍ د ننه دوئ ته لاس نه اچوي که چیرې دوئ بهر لاړ شي، بیا به یې نیسی، چونکه مونږه

خو په ګرځېدلو عادت وو، نویونورستی کښې تنګ شو، دغه اوجون میاشتې مود یونورستی د ننه تیرې کړي، هر وخت به د C.I.D والا راپسې وو، ځمونږ هر حرکت به یې نوټ کولو، هاستل کښې ځما یو بیره وُ چې نوم یې صوفي وُ، هغه راته وئیل چې C.I.D والا پسې راکوي چې د علي خان نه مو خبر وه، ما ورته ووئیل، چې اخله یې اخرچې زه تنګ شوم یو شپه د شپې د ره آدم خیل ته لاړم، بیا د هغې ځا یه وزیرستان ته لاړم، په دې کښې له ماسره ملګرتیا خیال اکبر-اپریدي کړې وه، د هغه یو زوړ مرسیل یز وُ، په هغه کښې یې زه د ره آدم خیل ته یوړم، همدغه شان زه له دوئ نه خلاص شوم، خو اکستد کښې زمونږه امتحانونه شروع کیدل، باید چې زه بیایونورستی ته پټ راشم، خو دې ځل د دوئ په ګوتو ورغلم، هغه داسې:

زه چې وزیرستان ته لاړم، نو ځما خیال وُ چې بس دلته دې حکومت ځان نه نشي کولے، ولې په دې چې وزیر-ستان ایجنسي ده، پولیسي علاقه یا ضلع نه ده، اوبل ځما خیال وُ، چې دومره کلک حکومت نه دے لګیا، چې ځما ځان نه دلته کوئي، خو داسې نه وه دوئ دلته ځان نه دقبائیلي ملکانو په ذریعه کوله، چې په دیکښې اکثره ځمونږ خپلوانو کښې راتلل، خو ملک ته چې پولیټکل ایجینټ حکم-

ورکړي ، دخپلوان خلاف جاسوسي خو پرېږده ، د پلار يې ورته کوي ، دوئ به په چل ول زه ځارلم ، کور ته به راتلل ځما سره به يې همدرد ي ښودله ، چې تاسو ولې دغې کار کوئ ؛ چې دپښتنو د حقوقو دپاره جنګيږئ .

ما دغه ټولې خبرې عامې خبرې ګڼلې ، ولې پدې چې دوئ داسې نمونه خبرې اکثره کولې ، خو د دوئ عمل به جلا ؤ ، يو دغه خبره به ولې وه ، چې ولي خان څومره پيسې درکوي ؟ په دې به زه ډېر تنګيدمه اول سرکښې به ما ورته وئيل چې دغه پروپيګنډه ده ، ولي خان سره پيسې نه شته ، دے هم پښتون دے او زه هم پښتون يم ، نو زه خو د ده ذاتي کار نه کوم چې پيسې راکړي ، دغه قومي کار دے ، بحيث طالب علم ما ته هم پکار دي چې خپله ونډه پوره کړم ، خو دوئ ، خو داسې خلک وو ، چې بغير پرمټ او پيسې نه يې تصور نه شو کولے ، چې زه پوه شوم چې دا خلک ريښتيا نه مني ، نو ما ورته ښه دروغ ووئيل .

يوه ورځ بيا يو ملک راغئ ، د ډوډۍ د خوړاک نه پس يې پوښتنې شروع کړې ، زه پوه وم چې اوس به بيا درنه درو پيو پوښتنه کوي ، ډېر په انتظار يې ناکښېنولم ، ژر يې ووئيل ، چې په ايمان چې ولي خان څومره پيسې درکوي ؟ ما ډېر په ساده توب سره ورته ووئيل ، چې هره مياشت

"۳۰۰۰۰" دیرش زره روپۍ راکوي، د دې د آوریدو سره سم بې ارامه شو، کله به دکټ سرته شو کله لنګي ته، قوله شپه خوب نه ورتلو، ورځې پې بدلولې، ماته والد صاحب، روستو ووئیل، چې دروغ ولې وایې، د دې سړي به زړه فیل کړي، ما ورته ووئیل چې هره ورځ دوئ دغه پټوس کوي، زه ورته وایم دا یوقومي کار دے، څما ذمه واري ده. او فرض را باندې دي چې قوم ته کار وکړم، زه خو دولې خان دپاره نه کړم، خو دوئ نه مني، چې نه مني نو را شه چې سه دروغ ورته ووایم، نو دوئ به بیا تحصیلدار خبرولو، هغې به بیا پولیټکل ایجنټ خبرولو، حکومت ته پته وه چې د N.A.P سړي د پوستړې پیسې نه شته خړبګي علي خان ته د میاشتې دېرش زره روپۍ ورکوي. ماته والد صاحب ووئیل، چې ته پېښور ته ځې، تر دره ادم خیل پورې دې زه هم ملګرتیا کوم، زه هلته یو پکې ګورم، دخیال اکبر اپریدي دوالد صاحب په ذریعه اسلحه اخلم، ځکه دستا دپښولو خطره وي، نو ماته اوس نه ووایه، ما به دکوروالا نه خبرول. ما ورته ووئیل، ما صرف د پېښور C.I.D والا پیژني نو تر پېښور پورې خطره نشته، ځو په زړګني زه دهر یو څخه نه ویریدم، چې د دې شانته به د C.I.D والا ناست وي. دا ځکه چې یونورسټي کښې به دوئ په بوټو

کبنې غلي وو. زموږ ځار نه به يې کوله، چې موږ ته تلو نو دغه ملکان ټول خبر وو، دوئ جاسوسي کړې وه، موږ ته پته نه وه، چې حکومت په ایجنسی کبنې هم ما شاري، زه د والد صاحب سره ډېره اسماعیل خان ته لاړم د ۱۷ جولائی ۱۹۷٤ سخته ګرمي وه، بیا موږ د ډېره اسماعیل خان دارلقیام سرائی کبنې کوټه کرایه کړه. تر دې وخته پورې هیڅ ونشول، خو زه بیا هم نه ارېدم، خو والد صاحب ته به مې داسې تصور ورکولو، چې ګنې هیڅ نشته، موږ ما زدیګر په ټانګه کبنې د دریائې سندهـ غاړې ته لاړو، چې سیل وکړو، ما د بازار نه ډوډه کوله،

ماښام چې په بازار کبنې دے C.I.D والاجې ونډو يني، خو اباسين په غاړه ځایو ماسټر و چې استم جماعت کبنې دے د دینیات ماسټرو، قریشي نوم یې وُ، دجماعت اسلامي هم خیال وُ، دغه رابانډې پېښ شو، ده راته ووئیل زه یوه دوه جوړه خپلې اخلم د ډېره وبنار کبنې پوره واقف نه یم که ته بازار ته راسره لاړشي بهیث استاد ما انکار نه شو کولے، او خپله کمزوري مې هم نشوه ورته ښودلې، چې زه بازار کبنې دا ډېرتم نه ورسره لاړم، خپلې مو واخیستې، شکریه یې ادا کړه، بیا یې تپوس وکړو، چې کوم ځائے متل یې، چرته ځې؟ ما ورته ووئیل، چې دارالقیام کبنې متل یو، او صبا وختي موږ پېښور

ته ځو، والد صاحب تر دره آدم خیل پورې ملګرے دے ، د امتحان دپاره زه ینورسټۍ ته ځم ، بسس رخصت یې واخیستو لاړو، تردې وخته پورې، زه به څه پوه نشوم، او بل په ما باندې یوبل د P.S.F هلک پیرا عظم شاه پېښن، شو، وه زه دهغې سره په چکر لاړم والد صاحب مې په سرای کښې پاتې شو ، چې مونږه ناوخته د شپې راتلو نو څه ګورو ، چې پولیس والا تر سرای یدل دي ، مونږه رکشه تیاره کښې وه دروله ، عظم شاه ورغځ تپوس یې وکړو، چې خیر خو دے ، بیا زما والد صاحب ته کوتې ته ورغځ ، زما والد صاحب ورته ویلي وو، چې دوئ دعلي تپوس کوي. چې څه شو ، ماځواب ورکړو، چې ماته یې پته نشته ، خو دوئ پیره کوي، ما ته عظم شاه وویل چې راځه شپه به ځما سره په کورکښې وکړې ، سحر وختي به بیا بس ته راشو مونږه دپېښور تیکټونه ما بنام ا خیستي وو، ما ته د شپې خو نه راته ، پولیس داسې چالاکي کړې وه، چې دوئ دسرای د دروازې نه پیره لرې کړې وه، پلار ته مې یې ویلي وو، چې علي خان نشته ، نومونږه د لته څه کوو، بس ځو ، ر بښتیا دوئ تلي وو، خو ځانځ دکان کښې سول جاموکښې ناست وو، سحر عظم شاه زما پلار د خو به وینن کړو، ورته وویل، یې چې لمونځ او دس وکړه، ځو به عظم شاه وویل:

چې ماته پولیس په سترګو را نغلل ، نو خوشحال شوم ، زه په اوه کښې نو بو نو والا دروازې سره ورکوټے غونډې جماعت و، په هغه کښې غلیځ ناست وم ، او والد صاحب مې بس کښې مخکښې ناست وو ، ما ته عظیم شاه وویل ، چې ته هله بس ته ورشه چې دوئ دېر دېر هر نو نه وکړي ، بس ده رخصت واخیستو زه د بس د هر نو نو په انتظار شوم ، بس هر نو نه شروع کړل، زه لکه غل د جماعت نه وروتم ، بس ته وروختم ، څه ګورم چې سپینو جامو کښې دري ځلور سړي را پورته شول، او بوبرغ را باندې وکړو ، چې محسود صاحب له تا سره څو منډه ضروري کار دے ، بس زه پوه شوم چې څه کار دے ، ځما والد صاحب ورته وویل : چې تاسو څوک يئ ، څه کار مو دے ؟ تهانیدار ورته وویل ، چې کاکا وارخطا کیږه مه ، بس دده نه یو دوه تپوسونه کوو ، بس نه راکوز شو .

تهانه ورسره جوخته وه ، ما والد صاحب ته وویل : چې زه ګیر شوم ته وزیرستان ته بیرته ځه ، ځما پلار دومره وارخطا شو ، چې پښې يې دیوې بلې سره لګیدې ، تهانیدار تسلي ورکړه چې دستا بچي ته هیڅ خطره نشته ، په سیاست کښې داسې نوره خبرې راځي ، دغه د عزت جیل دے ، تاسو فکر مه کړئ ، دنن به ډېر زر بیا خلاص شي ، موږ ته حکم دے ، څه وکړو .

موبز باندې تهانیدار چای و ځنبل، بیا زما والد صاحب
وزیرستان ته روان، زه د دوئ میلمه شوم.
ځما والد صاحب پدې ګروه وو، چې د ے خو قبائیلي
پښتون وئ، د دې د پار ه جیل او مرګ یوشے وئ، او دغه کمزوري
پرنګیانو ته معلومه وه، چې د محسودو دجیل نه زړه چوي
نو چې کله نه کله به د محسودو شیطانت ډیر شو، پرنګیانو
به په سمه کښې آوازه ګډه کړه، چې حکومت محسود نیسي،
په دوه دریوګهنټو کښې به سمه د محسودونو خلاصه شوه
په منډه به وزیرستان ته روان وو.
روستو چې زه خلاص شوم، ما ته پلاز ویل، چې ته عجیبه
هلک یې، چې منډه دې ونه کړه، او جګړه دې ونه کړه
ما ورته وویئل، چې دغه خوزه په خپله مرضي کوم، کښې چې
سیاست نه کوم، نو ځوک به بیاما نه نیسي، خو ده راته وویئل
چې که زما توپک وے، ما به مقابله کړې وائ، او بل تر نن
ورځې پورې، د ده شک په دې ماسته د ے، چې قریشي
جاسوس د ے، دغه جاسوسي ده کړې وه.
دا زه چې دومره زړور وم، ځما دغه اول ځل نه وئ،
چې ګرفتار شوے وم، زه یوځل اپریل ۱۹۷۳ کښې هم
دیوې هفتې د پاره نیولے شوے وم، هغه وخت حکومت ـ
موبزه د P.S.F والا احتیاطاً نیولي وو، داځکه چې آئین

باندې قومي اسمبلۍ کښې چلګئ وُ ، چې منظور شو. بيا يې موږه
آزاد کړو، زه اتم نمبر هاسټل کښې ما ښام ۷.۳۰ حال کښې
ناست وم، چې يو سړے راغئ، چې بهر دې خان غواړي
زه پوهه هم نشوم ، چې تهانيدار دے ، داځکه چې په
يونيورسټۍ کښې به بېراکانو هرهلکئ ته خان وئيلو ، نو ځما
خيال وُ چې څيړنه مې ملګړے دے ، تيار وه خو چې زه
ورووتم ، پوليس والاؤ وليدل وارې خطاشو دلته که
زما سره وسلحه وے مابه دپلار غوندې مقابله کړے وائ،
داځکه چې دغه اول ځل وُ ، تهانيدار راته ووئيل ، چې تاسو
زموږ کار دے ، يونيورسټۍ تهانې ته ځو ، بس زه
مينځ کښې دوئ راېدل ، خوشپه وه ځما د مخ اثرات دوئ
نه ليدل ، خبرو کښې زه ګډوډ نه وم ، په خوله مې غوړې
کولې ، او زړه کښې بنه ګډوډ وم ، د هاسټل نمبر۸ نه تر
تهانې پورې تقريباً پنځلس مينټه مزل وُ ، چې تهانې ته
رسيدو، ځما رپيدل او د مخ رنګ په ځائ شوے وُ ،
بس هلته بالکل نارمل وم ، بيا يې پېښور صدر تهانې ته
ته بوتلم ، چې حوالاتاو تهتۍ کښې څه فرق نه وُ، دغوا
غوجل زړځله ځنې بنه وه. په ټوند کښې ما داسې ګند ه
ځائ کښې شپه نه وه کړې، څه ګورم چې نثار شينوارے
يې هم راوستے ، وارخطا وارخطا وُ ما ته يې ووئيل، چې

په څه کښې یې نیولي یو، ماورته ووئیل، چې ۳۰۲ کښې هلک -
وارخطا شو، ماورته ووئیل، چې اشنا محمد افریدي دوه درې
پنځا بیان مره کړې دي، او پولیس ته یې ویلي دي، چې ما ته
نثار خان اوعلي خان وئیلي دي، نو د نثار بد حال شو، خو
زر مې ورته ووئیل، چې ټوکې کوم، ما ته یې وئیل، چې ظالمه،
مرکوې مې څه؟

سبا د اخبار په ذریعه خبر شوو، چې عزیز بلورې هم
نیولے دے، یو بل هلک ؤ فرمان نوم یې ؤ، دچارسدې د-
کالج د P.S.F مشر وو، هغه یې نیولي وو، افراسیاب قسمت
بنده ؤ، دے پېنډۍ ته تلے ؤ، دپېنډۍ ویګنې دشهباز او N.A.P
دفتر سره دریدې او روانه دې، چې دے د پنډۍ نه راغلے
دے، نو غوښتل یې چې شهباز دفتر ته وخیژي، قریشي ګل
دپارټۍ د دفتر منشي ورته وئیلی ؤ، چې ظالمه تښتېده وانه
دے دریې نثار دوه ټول یې نیولي دي، بس افراسیاب
منډه کړې ده، پټ وو چې موږ ه خلاص شو، نو دے هم
را پیدا شو، موږ یې پېښور جیل کښې " cell " کښې کوټې
کوټې وساتلو دلته هم، دګند حدوو.

نو څکه چې ۱۷ جولائی ۱۹۷٤ کښې، دوباره ګرفتار
کړم، نو ذهناً زه ورته تیار وم، اول جیل نه چې زه
را خلاص شوم، نو دیونور ستهې د تها نې تها نیدار -

راپورې توکي کولې، چې ته موږ خيال وُ، چې ته قبائيلي ئې ته په ښې لتې وتکوې، ما ورته وئيل چې زه ډېر وارخطا يم خو شپه وه تاسو زما څخه نه ليدو چې رنګونه يې بدلول، څنګه يې چې نثار خان ډېر بدحال وُ، ډېر وارخطا وُ، که څه هم نثار خان د يوې سياسي کورنۍ نه راتلو، د نيکه دوخت دوئ د جيلونو او قيدونو سره د ماشوموالي نه اشناوو.

بس ما يوه شپه په ډېرو کښې وکړه، بله ورځ يې پېښور ته وليږم، چې زه پېښور ته شرقي تهانې ته خپل يار-جان محمد شاه ته په حواله شوم، نو جامې مې د خولونه ډکې وې، نو د چا په ذريعه يې څه داسې ته څه جامې راوړلې او ما ته يې ووئيل چې جامې بدلې کړه، په دې وخت کښې ټيليفون ورته راغئ، نو ده په توکه کښې ورته وئيل، چې سړے مې په لاس راغلئ دے، او س اشنان کوي «لاهبي» او جامې بدلوي، بس څه نه يې قابو کړم، د څو ورځو نه پس يې افراسياب هم ګير کړو، دوا ړه يې پېښور سنټر جيل کښې واچولو، څمونږه د تنکولو د پاره سي کلاس کښې و ساتلو، ګني قانون کښې څمونږه حق د بي کلاس وُ، خو حيات خان شيرپاو، او بهتو غوښتل چې څمونږ نه نشه وباسي، پله ې بارک کښې د N. A. P څينې کسان هم وو، چې دوئ يې په دهاکو کښې نيولي وو، چې څينې نومونه،

داسې وو: پیرګل، عجب خان، صدرصاحب کچکول اویوبل دچارسدې سپین بږیرے وُ، نوم یې نه راځي، خومونږه ورته بابا، بابا ویلو،

مونږه دجولائ اواګست په ګرمۍ کښې به په ځنګله اومردارو کمبلو کښې پراته وُو، دلته یو لیونے وو، چې مونږه سره به یې ګپ لګولو، ګپ څه وُ بنې دېرې کنځلې به یې وکړې، بیا به یې یوه روپۍ غوښته، ګپ لګو، اول به یې د مور کنځل وکړل، بیا به یې یوروپۍ غُښته دده نوم ګل زار وُ، بس مونږه کتا بونه راوغوښتل، دامتحان تیارے مو دجیل دننه شروع کړه، بلال شاه، نقیب جان، فواد اورشید مروت به ځمونږ خدمت ته با هرولاړو دغه د P.S.F مونږ پسې تکړه مشران وو، اسدخان اپریدے هم وُ،

یوه ورځ مالاس مخ وینځل، چې بارک ته ننوتم، زماصابون او صابون دانۍ، دغاښونو برش، اوکریم هرڅه ورک وو، ما ډېر په حیرانۍ سره افرسیاب ته وویل، چې دغه عجیبه خبره ده، چې دجیل دننه ورک شول، افراسیاب وخندل، ویل یې چې دوئ خو ټول دلته راغلي دي، مطلب یې دغلونه وو، بیا ما وخندل اوپوشوم، نوبیا به مونږه ډېراحتیاط کولو.

مونږ به دبارک مخکښې چکر لګولو، یوسړے وُ مونږه

نه به یې ځیر ځیر کتل، خو دخبرې جرائت یې نشو کولے
ما د ټولو کې د پاره افرسیاب ته ووئیل چې بچه بازدے، تا
ته وړ پر کوري، افراسیاب خندل چې هغه وخت په مونږه
تیر دے، کیداے شي مونږه ور ته عجیبه ښکارو،
خو آخر یوه ورځ یې جرات وکړو، سلام یې واچو مونږ
ته یې ووئیل، چې که تاسې یې بد نه منئ نو به هم چکر درسره
ووهم، مونږ ور ته ووئیل چې بالکل، په دې کښې بد څه دي،
نو د دوه درې چکرونو نه پس یې راسره خبرې شروع کړې
وئیل یې چې تاسو دحراکتو نه داسې نه ښکاري، چې جوارگر
چرسیان او نور نشیان یئ، غله هم را ته نه ښکارئ، دجگړې
والا هم نه را ته ښکارئ، تاسو څه بد کړي دي چې جیل کښې
یئ؟ افراسیاب ور ته ټوله خبره وکړه، چې مونږ څوک یو او
جیل ته ولې راغلو، نو ده کلک کلک وخندل، وئیل یې چا تاسو
یعنې کانگرسیان د هرچا کونې ته کوتې وروړئ، اول پرنگیان
وو، بیا جناح، لیاقت، قیوم او، ورپسې سکندر مرزا ایوب خان
او یحیٰ خان دې، اوس مو بهټو په مخه کړے دے، چرته به
کلاره شئ، او که نه، مونږه وړ پوه کړو خو ده ته مونږ
قصور ښکاریدو، او بهټو بې گناه.

بیا یې جیل ته میرهمد شاه باچا مشهور پښتون، افسانه نگار
او سیاسي لیډر راوستو، او داسې یې خان محمد افضل خان -

سپه سالار او پښتون ځلمي والا راوستو، چې موږ ه به ورته خان لالا ویلو، او د مانکي حاجي صاحب تاج محمد خان سره د لمسي طارق خان چې ځمو ږ سره کالج کښې وُ، راوستو، موږ ته یې بیا بې کلاس راکړو، موږ ه به کله هریپور جیل، کښې وُو، کله پېښور کښې D.P.R کښې یې نیولي وو، چې هر درې میاشتې نه پس به یې نورې درې میاشتې راکولې، بیا یې افراسیاب د بیمارۍ په وجه خلاص کړو، خو ۸ فروري ۱۹۷۵ کښې پېښور یونیورسټۍ کښې د بم دچاودنې په وجه صوبائي وزیر داخله او دپیپلز پارټۍ صوبائي صدر جناب حیات محمد خان شیرپاوُ، چا شهید کړو، چې ددې سره بهټو په N.A.P الزام ولګولو، چې دغه کار دوئ وکړو، نیپ یې بند کړو، ولي خان یې بندي کړو، باچا خان یې نظر بند کړو، د P.S.F د سر سرهلکان ټول ونیول، دN.A.P نه یې جیلونه ډک کړل، دیونیورسټۍ ډېر پښتانه پروفیسران یې بندیان کړل، د هریپور، پېښور، ډېرو، بنوں اوکوهاټ، جیلونه یې دقوم پرستو نه ډک کړل، او پېښور یې کلاس کښې د وردیدو ځائ نه وُ، موږ ه خپل کټونه او ځایونه مشرانو ته ورکړل.

موږ ه دومره ډېر شوي وو چې داخیال دسړے نه کیدو چې جیل دے، د چوک یادګار فضاوه، ټول مشران راوستي شوي

وو، پروفیسر قلندر مومند مشهور لیکوال او لیډر، ډاکټر نظر، عظم جان خان ، پروفیسر همیش خان او پروفیسر پریشان خټک جنرل جیلاني، حاجي غلام احمد بلور، دلبر خان آف تکر. - لال بادشاه وکیل، او نور ډېر خلک وو، ارباب سکندر خان خلیل سابق گورنر هم و، ایوب لالا، یوسف لودهي، عادل خان، ارباب همایون، ارباب جها نګیر، بیرسټر ظهور، شیردل خان آف چارسده خو د ټولو نه د باچاخان نه پس په ما چې څوک ګران وو، او ځنې متاثر وم، هغه عبدالعزیز خان کاکا د زیدې مردان صوابۍ و په ده کښې د مشر تو ب قدرتي صفتونه وو، خبرې یې ډېرې لږې کولې، خاموش سړے و، خو یو کشش و پکښې، چې سړے به یې ځان ته کشکولو، سابق وزیر تعلیم میرزاده خان آف مردان هم و، د سوات نه یې ډېر مشران راوستي وو، او بل دوه خدای خدمتګار وو، چې د یوه نوم ډېره نشه و، هغه بل د اکبر پورې و، د مولانا صاحب په نوم مشهور و، دوئ عجیبه جوړه وه، دوئ به کله جیل کښې وو، کله به خلاص وو بیا به ز ر جیل ته راغلل، ما ته افراسیاب ټوکې کولې چې دوئ باچاخان جیل ته لیږي، ما ځنې تپوس وکړو چې هغه څرنګې ده وویل چې ترڅو پورې باچاخان کابل کښې وو، باچاخان ددوئ نه په آرام و، خو د کله نه چې دافغانستان نه راغلے، دے، ډېره نشه او مولانا روزانه ورخلاص وي، شاهي باغ،

کښې ـيې باچاخان په عذاب کړے دے ، نو باچاخان ددوی ،

دپاره علاج پيدا کړو ، باچاخان ورته وايي چې ، ځئ د خدائ

د مخلوق خدمت وکړئ ، خلق پوه کړئ چې دوئ جلسې جوړې

کړي ، په دې کښې ددوئ نه غلط . . . تقرير وشي ، پوليس

يې په ١٦ ايم .پي . او «M.P.O» دفعه کښې ونيسي ، نو د باچاخان

غوښونه درې مياشتې دپاره په آرام شي ، چونکه دواړه کُنډان

وو ، چې خلاص به شول بيا به ينج شاهي باغ ته تلل . کورته نه

تلل او څه ته به تلل ، باچاخان به بيا خبر شو ، چې دوېره نشه

او مولانا راغلل ، نو بيا به ـيې ورته وويل : چې ځئ خدمت

وکړئ ، په دې وجه به ـيې بيا دوئ ونيول ، باچاخان به

درې مياشتې ددوئ نه په آرام وُ ، او بله توکه په دوئ پسې

مشهوره وه ، دغه مثل خان داکوړې دوېره کوله ، چې

حاجي بلور مولانا ته پنځوس روپۍ ورکړې ، نو دخوشحالۍ

نه مولانا حاجي بلور نوم په تلاوت کښې ورګډ وی ، دغه خو

دجيل توکې وې ، مګر په حقيقت کښې دوئ په رښتيا خدائ

خدمتګار او د باچاخان پتنګان وو ، او يو بل خدائ خدمتګار

اولوی شاعر ، شامحمودميرزئ وُ ، دے هم ډېرخوږ سړے

وُ ، د باچاخان لوئ پتنګ وُ ، او يو مولانا ترخوي صاحب

وُ ، ډېر لوئ عالم او آزاد خياله عالم وُ .،

جيل کښې به ډېرې توکې کيدې ، په څه خو به مووخت

تيرولو، يو ځل ما يوسف لودهي او عادل خان يوه منصوبه جوړه کړه، چې راشئ لږ خلک ولوبوو، يوسف لودهي د پس شيطان وُ، دده سره ټيپ ريکارډ وُ، ده وويل چې موږ به ټيپ کښې دغه خبر ټيپ کړو چې بهټو چا په کراچۍ کښې په طمانچه وو يشتو او وفات شو، د پاکستان د صدر يو پيغام به د قوم په نوم نشر کړو، چې تاسو په آرام اوسئ، د ملک د آزادۍ يوالي ته نقصان رسولو، عناصرو خلاف يو موثق شئ. او دغسې نور، يوسف لودهي دغه خبر په انګريزي کښې وليکلو. ما ته يې وئيل، چې ستا د انګريزۍ وينا ډېره ښه ده نو ته به دغه وائې، ما، يوسف لودهي، او عديل، د بي کلاس باتهـ روم کښې ځما تقرير ټيپ کړو، او عديل، وريسې تلاوت وکړو، دغه موهم ټيپ کړو، ولې په دې چې د خلقو اعتبار راشي، چې بهټو په رښتيا مړ شوے دے، يوسف لودهي وئيل چې د شپې د يوولسو بجو نه پس به دا کار کوو، وئيل يې چې ته «علي خان» به د بهر نه په منډه کوټې ته راشې، کوټه څه وه، يو ړه بارک وو، نو غږ به وکړې چې ريډيو بندې کړئ خاص خبر دے، نو خلک به دومره او ږد سوچ نه کوي، ريډيو به بند کړي، نو «لودهي» به ټيپ چالو کړم، نو خلک به صرف دغه خبر واوري.، همدغسې مو وکړل ما چغه جوړه کړه چې پاکستان کښې څه وشول، ريډيو بندې

کړئ ، لودهي ټيپ په زور کړو ، او دځانه يې وويل: چې
دغه « Voice of Amerka » ريډيو دے ، چې د بهرتو د
مرکز خلقو واوريدو ، نو ډېر مشرانو او پروفيسرانو د ـ
خوشحالۍ نه داسې حرکتونه وکړل ، چې دوئ روستو په
ستومانه وو ، پروفيسر پريشان خټک چيغه کړه ، چې ماته پته وه ،
دغه فوجي انقلاب دے ، مګر انورخان د مردان ، ريډيو بنده
نه وه ، ستاړي يې وئيلې ، چا غږ وکړو چې دپېښور نه
ستاړي دي ، دغه څرنګې خبر دے ؟ دلبرخان آف ټکس
غږ په وکړو ، چې پېښور ته به يا خبر نه وي راغلے ، خولکه پښتانه
وائي ، چې د دروغو مزل لنډ وي ، بس مونږ هم ښکاره شوو
څونږ سره دوئ سوشل بائيکاټ وکړو ، چاراسره خبرې نه
کولې ، بس مونږه درېواړه به کوشې ، کوشې ګرځيدو ، خو بيا
دغه سوشل بائيکاټ رورو ختم شو ، مونږه بيا بحال شو ، چې بهر
به چرته دهاکه وشوه ، مونږه به جيل کښې واوريده ، نو
لودهي به وويل ، چې وکئ وکئ دهاکې وکئ ، مونږ داسې
ځائے ته راغلي يو ، چې دچا پلار مونشي نيولے .

دشيرپاو د شهادت نه پس لږ حالات نارمل
شول ، بهټو خپل کار کړے و ، خپل سياسي حريفان يې
ټول جيل ته کړي وو ، نو بيا ئې غيرضروري خلکو په
خوشې کولو باندې پيل وکړو ، خو د صوبائي اسمبلۍ

مرکزي اسمبلي ممبران او د N.A.P لوئ لوئ مشران يې
په جيلو کښې وساتل ، دشيرپاو د مرګ نه پس افراسيا ب
ببيا - «under ground» شوے وُ ځادرهاځ ـ
تاريخ ۲۱ فرورى ۱۹۷۵ ؤ ، مګر ۸ فرورى ۱۹۷۵ کښې د
شيرپاو د مرګ په وجه تر نامعلوم وخت پورې قيصه لا ړه
نو د پېښور جيل نه يې لومړئ ، ټول پروفيسران آزاد کړل ، بيا
بيا ورپسې د N.A.P غير ضروري خلک ، مونږ يې بيا
هريپور جيل ته بدل کړو ، دغه لوئ جيل وُ . بي کلاس او اے
کلاس علاقې لوئ لوئ وې ، چمنونه او ډېره صفائي يې وه ،
بيا د لته هم ډېر خلک رها شول ، دلته يوه ۱۶ ورځ مشرق
اخبار کښې راغلي وو ، چې باچا خان حکومت پاکستان ته ويلي
دي ، چې که حکومت ما خلاص کړي ، نو زه به په صوبه
کښې آرام راولم ، او اجمل خټک به بيرته د کابل نه راولم .
خدای خبرچې باچا خان دا خبره کړې وه . اخبار و به
دځانه ډېرې خبرې باچا خان پسې ليکلې ، بهرحال ما توکه
وکړه چې د باچا خان د کابل انګور و ته زړه شوے دے
غواړي چې په دې بهانه ځان آزاد کړي او کابل ته لاړ شي
په دې باندې عبدالعزيز کاکا ، جنرل جيلاني ، افضل خان
او نورو مشرانو وخندل ، ماورته وويل : چې باچا خان -
اجمل خټک راولي ، ماچې خلاص کړي ، زه به نه صرف اجمل

صاحب راولم، بلکې افراسیاب خټکٌ به هم ورته راولم، نوردې نه میرېٔ خبر شو، هغه راته ګوته خوځوله، چې باچاخان، ته وایم چې دغه نمونه ټوکې کوي.

په دې شپو ورځو کښې باچاخان دخان پورسپټ هاوس کښې نظربند وُ، نوحکومت د پاچاخان دخدمت دپاره شاه محمد میرے، دجیل نه ورولیږلو، بیا چې د څه وخت نه پس میرے واپس جیل ته راغلو، نو ما ته یې وویل، اوخندل یې، چې باچاخان ته مې وویل، چې محسود دغسې قیصې درپسې کوي، ما ځنې تپوس وکړلو، چې خفه شو، خندل یې، چې نه راته وویل یې: چې دغه یې واوریدل خندل یې، میرې ما ته وویل چې باچاخان خوځه ماشوم نه دے، چې خفه کیږي.

بس دجیل نه ټول خلاص شول، زه اوجیلاني پاتې شوو، ولي خان اول دسره دوئ پنجاب کښې بندي کړے وُ، بیا دوئ جیلاني ځما نه لاهورته بدل کړو، زه په پوره بارک اوجیل کښې یواځې پاتې شوم، خو پدې شپو ورځو کښې بهټو پېښور ته راغلے وُ، ډپټي کمشنر ورځنې تپوس کړے وُ چې په علي خان باندې څه وکړو، داځکه چې دشیرپاو دمرګ نه پس دبهټو داجازت نه بغیر څوک نه شو آزادیدلے، او خاصکر د P.S.F او زه، بهټو ورته وئیلي وو:

"بس اُس بچے کو رها کردیں" مګر قیوم خان وزیرداخله

ورته ویلي وُو، چي هغه بچ ائي نه دے، د پر بد معاش دے
خلاص یې کړئ خو پیښور ضلع کښې یې نظربند کړئ،
چې افغانستان ته د ر نه لاړ نه شي ځکه د پاڼ D.C کیاني صاحب
دغه کوشش ځکه کړے وُ، چې د ده زوئ زما کلاس.
فیلو وُ، نو هغې به هر وخت پلار ته ویئل، او بل ځا دجیل
زمهوار دپېښور D.C وُدا ځکه چې ما خلاف وارنټ
دپېښور نه وُ، نو د دې په وجه ده جرات کړے وُ، د
بهتو نه یې تپوس کړے وُ، ارباب همایون خان زما دپاڼ
کچیرو کښې کوښښ کولو، چې ځا د D.P.R وخت اوږد نه
شي، دوئ ته پته لګیدلې وه، چې حکومت یې نور جیل کښې
نه ساتي، ما ته ښه یا د دي، چې ما زد یګر ناوخته ما ته د جیل
افسرانو وویئل، چې ستا رهائي راغلي ده، کتابونه دې سمبال
کړه، بهر د رته ارباب همایون خان انتظار کوي، چې زه
بهر راغلم ارباب همایون خان او ارباب نثار خان دواړه
را ته په انتظار وو، زه دوئ په موټر کښې راسورکړم، ما بنام
تیاره چې په اټک راغلو، نو پولیس والاو لاره بنده کړې وه،
ارباب صاحب راپورې نوکې کولې، چې لکه حکومت دستا په
رهائي پښیمانه شوے دے، بیا دې نیسي، هدغه شان زه-
مئ ۱۹۷۵ کښې رها شوم، په پیښور ضلع کښې نظربند شوم،
چې رو ستو دغه هم ختمه شوه.

# د حیدرآباد سازش

## د نسیم بي بي هلې ځلې

د پښتو سیاسي حرص د ورمره زیات و، چې ده دخپلې واکدارۍ دپاره پاکستان مات کړو، په لاکهاؤ بنګالیان فوجیانو یې مړه کړل، او د دوئ ناموس یې تباکړو. بیا دوئ خدائ داسې وشرمول چې دنیا ورته حیرانه وه، په پاتې پاکستان کښې د پښتو په سترګو کښې N.A.P یو خار و، ده غوښتل چې د پاکستان په ګدۍ یواځې کښیني، خو N.A.P په ارام دخپلو حقوقو نه لاس نه آخیستو، او پښتو ته یې سلامي نه کوله نو پښتو قسما قسم ډرامې شروع کړې، چې اول کښې یې په ولي خان څوځلې قتلانه حملې وکړې چې د تخت بهایې سره خو صرف د انچو فرق و، چې ډرائیور دوئ شهید کړو ولي خان مرګ یا دوئ لاس کښې نه و، چې په دې کښې کامیاب نشول، نو یې فوج په بلوچستان ورواچولو، د بلوچیا نو په وینو یې د دوئ کورونه سره کړل، او آخر یې حیات خان شیرپاؤ

شهید کړو ، او د دې په وجه او ذریعه یې د N.A.P او ، ولي خان نه ځان خلاص کړو ، ( د ده د خیال مطابق ) او فرورۍ ۱۹۷۵ کښې یې نیپ بنده کړه . او ټول مشران یې بندیان کړل . باچاخان یې نظر بند کړو ، اسفندیار ، ولي خان یې په دروغو د شیرپاؤ د شهادت د کیس په وجه جیل ته کړلو ، او قید یې کړلو ، د N.A.P د سر په مشرانو یې حیدرآباد سازش کیس جوړ کړو ، چې دوئ پاکستان ما تولو ، او دوئ غداران دي ، او ده کوښښ کولو ، چې دوئ پهاشي کړي ، او ختم یې کړي ، باچا خان نظربندي تیروله ، په نیپ کښې داسې څوک پاتې نه وو ، چې د غه خواره واره ورکران یې په یو مقام راغونډ کړي واۍ ، شاهي باغ کښې څوک سړۍ پاتې نه ؤ ، د نسیم بي بي خاوند ، ضخړ او زوئ ټول قیدیان وو ، نو د بي بي په سر په یو وخت د کور ذمه واري ، او د قوم ذمه واري غبرګې راغلې بي بي ژړا و نه کړه ، بلکې د زمری غوندې یې د غه ټولو ته سینه ورکړه او ملا یې وتړله ، او د پښتنو په تاریخ کښې یې د اولې بي بي روښانه نه پس د ملي کاروان ذمه واري واخیسته د بهټو خلاف یې ټول بلوچ ، پښتانه ، سندهیان او پنجابیان راګرم کړل ، او ځینو معملو کښې خو یې سړۍ روستو پریښودل ، د بهټو خوب یې حرام کړو ، د ده خیال و چې N.A.P بند کړي ، د دې مشران بندیان کړي نو د ے به په آرام په پاکستان

حکومت کوي، مګر نسیم .بي.بي د خیبر نه ترکوټتهي، بلوچستان
د لاهور نه ترکراچۍ پورې یو طوفان د بهټو خلاف راپورته
کړو، او ټول پاکستان کښې داسې محبوبه شوه چې اول کښې
به خلکو وئیل، چې دولي خان بیګم ده، روستو به یې وئیل،
چې د دې خاوند ولي خان دے.

نو اوس وخت راغلے وُ، چې د بهټو نه پنجابیا نځانونه
خلاص کړي، دا ځکه چې بهټو نور د دوئ په کار نه وو،
دوئ اول د عوامو لیګ خلاف استعمال کړو، بیا ئې د N.A.P
خلاف استعمال کړو، خپل فوجیان یې د هند په راخلاص کړل،
اوس دده نور کار نه وُ، نو دوئ دون یونټ نه پس ډاکټرخانصاب
شهید کړو، هم دغه چل یې اوس بهټو ته جوړ کړے وُ،
نو دده شامت راغلے و، دده په مزے د مشرکرے دعوې یې
شروع کړې، داسلامي بم خبرې یې کولې، نو دده سره یې
ځان ته یهودي او مغربي لابۍ هم دښمنه کړه، او دکور دننه
یې پښتانه او بلوچ ځان ته دښمنان کړي وو، دافغانستان سره
یې کبدې کوله، نو مارچ ۱۹۷۷ کښې یې دانتخاباتو علان
وکړو، او پخپله یې پکښې دهندلي وکړه، چې دده سره یې
دخپل مرګ په کاغذ پخپله دستخط وکړو، جولائ ۱۹۷۷ پورې
دومره حالات خراب شول، چې دده دخپله لاسه جنرال
ضیا الحق دده تخته واړوله چې روستو یې پسې پهانسي کړو (اپریل ۱۹۷۹ کښې)

يو ځل چا ورته د جيل د ملاقات په دوران کښې وئيلي
وو، چې تا ولې د غه جنرال C.N.C کولو، چې ورته د رې
شلوړ جنرالان د پې روستو کړل، او دوئ نمبر دې وخوا
او دے دله دې کانلوړ انچيف کړو، نو بهتو ځواب ورکړے
ؤ چې «مجهے کيا پته تها، که اِسکي موچهو ميں مولوي چهپے هيں»
حقيقت کښې ضاء الحق د امريکې سړے ؤ، او بل د ضاء الحق نه -
يهوديان هم ډېر خوشحاله وو، دے په يوه پروګرام په
بهټو باندې کانلوړ انچيف کړے شوے ؤ، د ده سفارش
شهزاده طلال ولي عهد داردن کړے ؤ، د شهزاده -
طلال ميرمن ځوکۍ پاکستانۍ مهاجر سفيرو، د هغې لور وه چې
اکرم نوم يې ؤ، چې څه وخت ۱۹۷۰ «Black september»
په نوم مشهوړ پاڅون د شاه حسين خلاف P.L.O کړے ؤ،
ډېر خطرناک حالات جوړ شوي وو، نو ضياء الحق په
هغه وخت کښې په اُردن کښې د پاکستاني فوج مشر ؤ،
نو ده داردن حکومت مدد وکړو، د فلسطين ګوريلائے
قتل کړل، او د دوئ په وينو يې خپل لاسونه سره کړل، بغاوت
يې ختم کړو، او P.L.O والا د ضياء الحق د ظلم نه لبنان
ته وتښتيدل، چونکه شاه حسين د مغرب لوئ ايجنټ دے،
او خاصکر د امريکې، او بل که P.L.O د شاه حسين
تخته اړولې وائ، نو د دوئ په لاس لوئ ملک ورتلو،

او دامریکي چې اسرائیلو دپاره لویه خطره وه دهغې وخت دسیاست مطابق سویت یونین ته یواځې هم ځاے په لاس ورتلو، نو دغه خطره دوئ د ضیاءالحق اوپاکستاني دکرایې فوج په ذریعه ختمه کړه، نو په دې وجه دضیاالحق نه د شاه حسین نه علاوه، امریکه سی، آئی، اے، او یهودي موساد خفیه اداره ډیر ل ده نه خوشحاله وو، چې څه وخت پاکستان ته راغئ، او بیا بهتو په قدرت راغئ، نو د ټکاخان نه پس دنورو جنرالانو نمبر وُچې کماندرو انچیفان شي، مګر شهزاده ولي عهد طلال اودده میرمنې په سفارش په بهتو باندې زور راوړو چې دے کماندرو انچیف کړي، بهتو چالاک وُ خو دلته خطا شو، نو دضیاء الحق په راتګ، امریکه، اسرائیل یعنې C.I.A اوموساد دواړه، خوشحال وو، ولې په دې چې د بهتو خوله خپله ته وه، دلیونې سپي غوندې یې هرچا ته اچوله، او د اسلامي بمونو خبرې یې کولې، نو C.I.A خپل زور یار ورته تیار کړه، د بهتو تخته یې په وروارووله.

چې ضیاءالحق په قدرت راغلو، نو ده په یوه وخت ددوه قوتونو سره جنګ نه شو کولے، یعنې، د P.P.P سره اود N.A.P سره اوبل دده جګړه خو

د ۱۹۷۹ سږ وه، ددوئ نه یې کرسئ بیولې وه، او ۱۹۷۹ او بهټو د۱۹۸۹ سږ و پر ظلمونه کړي وو، نو دغه قدرتي خبره ده چې ضیاء الحق به د۱۹۸۹ سږ روغه کوله، چې کرسئ یې مضبوطه شي، همدغه وجه وه،چې ده د حیدرآباد سازش کیس ختم کړو، د ۱۹۸۹ مشران بشمول ولي خان آزاد کړل، او بهټو یې دننه کړو، دغه د ضیاء الحق د نیپ سره بښکرونه وه، بلکې دده مجبوري وه چې ځان ته محاذ یو کړي،نو د ضیاء الحق دغه مجبوري ځینو خلکو د نیپ سره ملګرتیا باندې تعبیر کړه، چې دغه قطعاً غلطه خبره وه،ولي خان د جیل نه پس هم د مارشل‌لا مخالفت کولو، خو د بهټو ظلمونه ورياد وو، اوس ضیاء الحق دلیوه لکه په لاس کښې ورتوله، چې لکه یې پرېښو ده، لیوه دوئ خوړل، او که نه یې پرېښوده، نو دغه چوکیداري مشکله وه، داځکه چې د بهټو په خوله کښې وینه پالیت وُ، او مغرور وُ، د ده خوب او خاطر کښې نه وه، چې دے به پهانسي شي، نوځکه یې جیل دننه عدالت او هر ځائے جګړې کولې. پنجابیانو دے اوس د فرنټ لیدر غونډې استعمال کړے وُ، نو ربې پکار نه وُ، یوځل چاورته وئیلي وو، چې هلکه په‌پنجابیانو

باندې اعتبار مه کړه، دوئ په ډاکټرخانصاحب باندې
ون يونټ جوړ کړو، بيائې قتل کړو، ده ځواب ورکړے ؤ،
چې (مين وه بيوقوف کتا نهين هون جو روټى کے ساته
سونۍ کها تا هون) خوچې د پهانسى په تخته يې درولے
ؤ، نو ور ياد شوي به وي، چې يوه ستن نه بلکې په سلهاؤ
هې ورخوړې، چې څه وخت اپريل ۱۹۷۹ کښې حکومت پاکستان
بهټو پهانسي کړو، دجرمن يو اخبار BILD ليکلي وو:
چې دپاکستانې وزيرغظم قيمت پنځه مارکه ؤو، داځکه
چې هغې چوړې ته دوئ ۲۵ روپئه مزد ورکړے ؤ،
چې بهټو يې پهانسي کړے و. نو ځکه پاکستاني جنرالانو،
دخپلو خارجي استاذانو په اشاره د ليوه نه ځانونه خلاص کړل.
چې نسيم بي.بي. په کاميابه سره بهټواو P.P.P ځانے
ته ورسول، د دې نه يوه ليډره جوړه شوه، او په خپل
همت جوړه شوه، نو دلته نيپ کښې د دې خلاف مخالفت
پيدا شو، چې دغه ښځه ده دښځې د پاره په کورناستے
پکار دے، سياست د ښځو کار نه دے، او ځينو خو
به داخلاقو نه غورځيدلې خبرې کولې، دغه تنګ
نظرې ولـه د بي بي ځکه مخالفه وه، چې بي بي پردوئ
نه کامياب سياست وکړو، دوئ to be or not to be
مرض کښې اخته وو، نو ځينو به ځانو ته طرقي پسند

ویئیل، د ښځې او نر د برابرو حقوقو خبرې به یې کولې،
خو په عمل کښې د نسیم بي بي په حق کښې د د وئ او یو جاهل
د جماعت د مولا، په خیالاتو کښې فرق نه ؤ، د وئ ویئیل
یو ځه او کول یې بل ځه، په دې پر وپیګنډه کښې تش په نوم
د خدای په قهر ککړ کمیونستان په ټولو نه مخکښې مخکښې
وو، چې د دوې مرکز وو نه، کراچۍ، لاهور، پېښور، او
کابل ؤ، نو دوئ کوښښ کولو چې د ولي خان د قید نه فائده
واخلي، بي بي وار خطا کړي، دوئ به په چلول باندې
په N.A.P قبضه وکړي، مګر بي بي داسې بي بي نه وه،
چې دوئ ویرولائ شوائ، بي بي دوئ ډېر زر وپیژند
N.A.P په وخت کښې چې بي بي دوئ شړلي وو، نو
ځینې کمونستانو ماته ویئیل: چې ولي خان د C.I.A سړے
دے، او نسیم بي بي یې هم ممبره ده، ما ورته ویئیل،
چې عجیبه کار دے، چې سي، آئ، اے خپل ایجنټ
ولي خان په حیدرآباد جیل کښې ساتي او ته انقلابي د
امریکې دښمن قصه خوانۍ کښې چکرې لګوې، د غه
خبره ما مختیار باچا ته کړې وه، ما ورته وویئیل، چې ما
ته تاسو د C.I.A والا سبکار یئ، چې د دوئ په ما دم و نه
چلیدو، نو زه هم بیا د C.I.D سړے شوم، د دوئ،
تار به د کابل نه خوځیده، خو کابل کښې داسې استادان

وو چې دوی په ښکاره دغه کار نه کولو، د دې استازو
نه څخه نن سبا ملي قطار کښې سم شوي دي، اول کښې
د دوی خیال و چې، بس ولي خان به حیدرآباد کښې ختم
شي، نو مشرکري به زموږ په لاس راشي، نوځکه دوی
بي بي بدناموله، مګر د N.A.P اکثریت خو د دوی په
لاره نه تلل، چې څه وخت افغانستان کښې اپریل ۱۹۷۸ کښې
بدلون راغئ، نو دوی د ولي خان او نسیم بي بي پسې
خپله پروپیګنډه نوره هم تیزه کړه، او د کابل کمونستانو
ورسره کمک کولو.
اول سرکښې د دوی کوښش و چې لطف اپریدے
راګډکښې کړي، او د نسیم بي بي او افضل خان لالا خه
وینسي، چې په دې کښې کامیاب نه شول، بیا دوی د افضل-
خان او نسیم بي بي د جنګولو پروګرام جوړ کړو، دغه
ټول تارونه په د کابل نه خوځیدل، چې دې کښې د N.A.P
ښه تکړه تکړه خلق وو، (یعني اِس حمام میں سب ننگے هیں)
نو دوی ته دې حده پورې لاړل چې د ولي خان او نسیم
بي بي، ترمنځ یې د راز پیدا کولو کوښښونه یې وکړو، خو
دوی ناکام شول، بیا دوی تر بزنجو را تاؤ شول، دهغه
نه یې د ایشیا پلار جوړ کړو، خو هغې زړه دوی وپیژندل
دوی ته یې ورته چې تښتی، دغه داسې کمونستان وو،

چې دوئ کښې ډېر د پاکستان د پولیس خلک وو، تش د بې خبره خلکو د پاره دوئ د کمونیزم ډهول وهلو، په حقیقت کښې دوئ ټول ایجنټان وو، خاصکر مهاجر او پنجابي کمونستان، . ما ته امین خټک صدر N.A.P کراچۍ والا خبره کوله چې، اول سر کښې مونږه قوم پرست ډېر ساده وو، دوئ ته مو هرڅه په حواله کړي وُو، دوئ ځو کسان وو، چې مسله به راغله، دوئ کښې به چا آواز وکړو چې ( یه کمیٹی میں فیصله کریگا ) چې کیمټي ته به راغله نو نیم نه به کمونستان کم وُ، فیصله به د دوئ په مرضي نه کیده نو دوئ به بیا زمونږ سره چل وکړو ( که نهی یه سب کیمټی میں فیصله کر یگا ) په سب کمېټي کښې به ټول دوئ وو، نو دغسې به یې چالاکي کولې، آمین خټک وئیل چې ځما د دوئ د دے چل نه خیال شو، نو ما به ورته وئیل، چې نهی نواز بټ صاحب، یه کیمټی او سب کیمټي میں فیصله نهی هوگا یهاں پر هوگا د لته خو به مونږه ډېر وو، فیصله به د قوم پرستو په خوښه وشوه، چې د دوئ چالاکي نوره نه چلیده، بیا ئې ما پسې پروپیگنډه شروع کړه، چې امین د ( C.I.D ) سړے دے، چې حقیقت کښې دوستو نواز بټ چې ځان ته یې کمونسټ وئیلو، د پاکستان د پولیس سړے وُ، چې N.A.P کښې کامیاب نه شول، نو دوئ زمونږ په خوارۍ جوړ کړے

پښتنو ستونږ ینښتس فیډرشن ته مخ واړوۀ ،او پاکۀ او ربتوني هلکان دوئ ګمراه کړل، په غلطو لارو یې سرکړل، چې دے کښې څما خوانه ملګري افراسیاب خټکۀ او مختیار باچا هم پاک ندي او دکابل سابقه مهاجر ګورو هم برابر پکښې ککړ وو، چې چا سره ډولۍ راوسته .

# افغانستان کښې د باچاخان بیا استوګنه

## اپریل ۱۹۷۸ خونړی بدلون

چې کوم طوفان ۱۹۶۸ کښې د صدر ایوب خان ، خلاف راپورته شوے ؤ ، د هغې ډېر دور رس نتائج وختل ، - مارچ ۱۹۶۹ کښې دده بسترهٔ بوبل جنرال یحیٰ خان ګول کړه یحیٰ خان ون یونټ ختم کړو ، چې د غه N.A.P او P.S.F بنیادي مطالبه وه ، بیا یې د سمبر ۱۹۷۰ کښې پاکستان په ټول تاریخ کښې صفا او غیر جانبدار انتخابات وکړل ، او بیا ئې مارچ ۱۹۷۱ کښې د خپلو کړیو انتخاباتو نه انکاري شو ، یا مجبور شو ، اکثریت ګوند عوامي لیګ ته اختیارات د بهټو او پنجابیانو د سازش په وجه ورنکړل ، چې نتیجه یې ، خانه جنګي شوه ، او د سمبر ۱۹۷۱ کښې جنرل اراره (ARORA) بنګال واخیستو ، هم د غسې د جناح پاکستان مات او ختم شو ،.

جناح وئیلي وو ، چې هند کښې دوه قومونه دي ، چې یو هندو دے او بل مسلمان ، نو هند دې هم دوو په نوم

تقسیم شي، چونکه ددوئ په قول، د هند تقسیم اقتصادي جغرافیائي نه ؤ بلکې، مذهبي وو، هم په دوې بنیاد - دوئ پاکستان د هند نه جدا کړو، مګر ۱۹۷۱ کښې پاکستان په اقتصادي قومي او سیاسي بنیا دونو مات شو، مذهب ددې قابل نه شو، چې په خپل نوم باندې د پاکستان یوالے وساتي، یعنې د بنګالیانو جنګ د مغرب سره په دې نه ؤ، چې دوئ ته مذهبي آزادي نشته، بلکې په دې باندې وه، چې د مغربي پاکستان والا د بنګله دیش دولت لوټي، یعنې مسله اقتصادي وه، مذهبي نه، او د هند تقسیم مذهبي ؤ، اقتصادي نه و، نو مذهب ددې قابل نشو چې پاکستان یو وساتي، اقتصاد ترې زوروړ شو، نو ددې سره، غلطه ثابته شوه، د هند ( TWO nations The ory ) تقسیم غلط ثابت شو، او باقي پاکستان هیڅ اخلاقي او قانوني بنیاد نه لرلو، چې پاتې وی،.

مګر ددې باوجود د N.A.P او باچا خان د بهترو سره د نوي پاکستان، جوړولو کښې هر قسم مددکولو پیشکش وکړو، مګر بهټو حرص اخیستے ؤ، د دوړوکه سره چاستن واخیسته. دده په ځائے جنرال ضیاءالحق راغئ، نو ضیاءالحق د خپل ځان د ټینګولو د پاره اسلام ته ګوتې واچولې، د خلکو نه یې تپوس کولو، چې تاسو اسلام غواړئ؟ خلکو

ور ته وویل، چې هو! بس ده وویل: چې تاسو اسلام ته ووټ ورکړ، د دې مطلب دغه شو، چې تاسو ما ته راکړل، هم په دې طرز      .بې خان ته جوان پیدا کړو، چونکه باچاخان د هر بېړوا شوے وُ، او بل پښتون قوم د بې اتفاقۍ په مرض ککړ و، دوئ احسان فراموش وو، د وئ ولي خان او نسیم .بي.بي پسې دا سې .بې بنیاده پروپیګنډې شروع کړے چې د دې سړ دوئ، د باچاخان زړه ته صدمه ورسوله

باچاخان په دې پوه شو، چې د بے وطنۍ کښې ما ته، څوک د خدمت موقع نه راکوي، او پښتانه کور په کور مشران شوي دي، نو ده غوښتل چې څو د ارام ورځې په خپل کور جلال آباد کښې تېرې کړي.

مګر د ے حُل حالات داسې نه وُو، چې څه وخت د ے دسمبر ۱۹۶٤ کښې کابل ته راغلی وُ، افغانستان کښې شاهي ختمه شوې وه، د سردار داودخان ترمشرکرۍ لاندې صدارتي نظام وُ. داود خان چې کومې وعدې د ۱۷ جولای ۱۹۷۳ د کودتې نه پس کړې وې هغه پوره نه کړې، ترڅا اچولې وې د پښتونستان ترتوره کار شوے وُ، د روس نه .بې په چپلول ځان خلاصولو، د سعودي عرب، مصر او ایران، چین او امریکه او پاکستان په ډله کښې یې ځان شاملوه. په کور دننه ورته حالات خراب وُ، لاندې پښتنو کښې یې محبوبیت -

بايللې وي ، نو نه يې ولي‌خان خوښ او نه يې اجمل ختک او نه
باچاخان ، بس ده غوښتل چې د پاکستان سره تعلقات جوړ کړي
نو جون ۱۹۷٦ کښې پاکستان ته لاړو ، مګر چې څه وخت د ۱۹۷۸ په پيل
کښې باچاخان خپل کورته جلال‌آباد ته بيا راغلو ، نو دده په راتګ
داود خان خوشحاله نه و ، ما ته د ډاکټر نجيب صدر سابقه -
افغانستان والد صاحب اختر محمد کاکا خبره کوله ، چې څه وخت
باچاخان جلال‌آباد ته راغئ ، نو داودخان ډېر په مشکوک و ،
نو نه يې و بالم مانه يې ووئيل : چې ( باچاخان براى چى آمده ؟ )
ما ورته ووئيل چې باچاخان کمزورے شوے او بوډا شوے
دے دارام د پاره راغلے دے ، او بل د لاندې پښتنو نه ګله
من دے ، ووئيل يې چې سردار صاحب ډېر وارخطا او پريشي
وو ، څه دلائل يې نه منل ، په آخر کښې يې راته ووئيل ( چې
باچاخان براى سياست امده ) نو دغه حال دافغانستان د حکومت
وو ، چې دوئ د هرڅه نه ډاريدل .

په کور د ننه خلقيانو او پرچميانو ورته اتفاق وکړو ،
او مولايانو خو يې داول نه مخالفت کوو ، داودخان چې کومې
وعدې د پښتونستان په باره کښې کړې وې ، او دافغانانو
دآباد ده متعلق يې کړې وې ، يوه يې پوره نه کړه ، بلکې د
مخالفينو د پاره يې پل چرخي زندان ورته جوړ کړو ، چې افغان
مسائل يې په دې حل کول ، چې څه وخت په دے جيل کار شروع

شو نو ما ته نیک محمد خان وکیل صاحب ووییل، چې دغه موږ ته جوړوي، افغانستان ته د کارخانې، بندونو او سړکونو ضرورت دے، مګر محمد زیانو ته د زندانونو ضرورت دے چې خپل مخالفین پکښې واچوي، نو دوئ د افغانستان د ضرورت نه مخکښې په خپل ضرورت باندې کار کوي نو ځکه یې د سړک نه مخکښې په جیل (زندان) جوړولو باندې پیل وکړو، او بل داود خان د اقتصادي مسائیلو سره مخامخ خلک په مسز دوره پسې ایران او د عربو ملکونو ته په منډه وو، د اکتوبر ۱۹۷۳ د عرب اسرائیل جنګ او بیا د تیلو بندش په حقیقت کښې د ریعه نړۍ ته ډېر زیان ور سولو، چې هغه کښې افغانستان هم وُ، داځکه چې تیل قیمتي شول نو عربو ته دولت را روان شو، او شهنشاه ایران یوناځاپه د ډېرو پیسو خاوند شو، نو ورسره یې د منطقې د ملکو خوبونه ولیدل، مغرب د خپلې مشینرۍ د قیمتونو جګولو، په ذریعه ددې بحران نه ځانونه بچ کړل او عربو او یا په بله معنیٰ د تیلو هیوادونو ویرانۍ ته لاس وکړو، سړک، پل، کور، کارخانه تونیک، جهاز، په اخیستو پیل وکړو، دغه شیان د مغرب په کارخانو کښې جوړیدل، ددې په ذریعه دوئ په بې روزګارۍ باندې قابو وساتله، چې څومره د تیلو هیوادونو آبادۍ کولې او اسلحې به یې اخیستې. په هغه،

پیمانه به په مغرب کښې بې رونکاري کمیده، او کارخانې
به شپه ورځ رواڼ وې، چې د تیلو هیوادونو ضرورتونه
پوره کړې، مګر د دریمې نړۍ هغه هیوادونه چې نه یې تیل
لرل، او نه یې صنعت، نو دوئ ډېل جرمانه شول، یوا رخ ته
د تیلو قیمت په جګ شو، او بل ارخ ته مغرب د خپلې مشینرۍ
قیمت په ډېل کړو، نو دوئ د سختو اقتصادي ستونزو
سره مخامخ شول، چونکه ۱۷ جولائ ۱۹۷۳ کښې داود خان راغئ
اکتوبر ۱۹۷۳، د عربو اسرائیلو جنګ وشو وروستې د تیلو قیمتونه
جګ شول، او روسې د مشینرۍ نو داود خان په یو وخت د دوه
طرفه په اقتصادي، جال کښې، ګیرشو، داځکه چې افغانستان
نه تیل لرل، او نه مشین، نو د دې سره خلک پردیو هیوادو
ته په منډې شول، او بل مصیبت د داود خان دغه ؤ، چې
د ده کودتا ملکري کمونستان وو، نو دوئ غوښتل چې افغا-
نستان د ے د سویت یونین حلقه اثر کښې وي، او په یوه شپه
یې افغانستان آبادولو، او بل ارخ ته داود خان د پښتونستان
مسله ګرمه کړه، او د لاندې خلکو یې ډېر امید و نه جوړ کړل
او د دوئ خیال ؤ چې اوس دغه کار کیږي مګر فروري
۱۹۷۵ کښې چې په N.A.P پابندي ولګیده او مشران یې،
ټول زنداني شول، نو د کابل محمد زیانو ډېر ډېر او په چل
ول باندې د پښتونستان مسله سړه کړه چې دوئ کښې د-

تولو نه لوئ مخالف د پوښتونستان ، د داود خان کوشر رور سردار نعیم جان وو ، او بل روس داود خان ته ویلي وو ، چې موږ د پاکستان او مغرب سره تعلقات نه خرابوو ، بلکې په بله معنیٰ د پاتې پاکستان هم ۱۹۷۱ کښې د روس په وجه پاتې شوے دے ، چې روس هند ته ویلی وو ، چې باقي یعنې مغربي پاکستان نیول به روس ونه مني ؛ نواندرا گاندهي باندې ږې زور راوړے ؤ ، چې یک طرفه جنګ بندي وکړه دا ځکه چې روس هم نه غوښتل چې هند لوئ شي ، او مسلمانې خلاصې شي ، د هغې وختې نقشې مطابق روس بیا د هند ګاونډي کیدو ، چې د هند نه روس ته پخپله خطره جوړیده او په دې قدم باندې د روس نه امریکه هم خوشحاله وه ، صدر امریکه رچرډ نیکسن د روسي مشر بریژنف شکریه ادا کړې وه ، نو روس نه غوښتل چې پاتې پاکستان مات کړي ، او د پاکستان د ماتیدو نه بغیر د لوئ افغانستان جوړیدل ناممکن وو ، روسانو به په پرائیویټ مجلسونو کښې د پښتونستان خبرې کولې ، مګر چې خبره به حقیقت ته لاړه بیا به دوئ په شاه شول ، او بل ۱۹۵۳ نه تر ۱۹۶۳ پورې داود خان وزیر اعظم ؤ ، نو هغه وختو کښې سوویټ یونین مشرانو د پښتونستان د حمایت خبرې کړې وې ، او دوئ وجې هم درلودې ، یوه دغه وه ، چې سوړ جنګ او د امریکې او سوویټ یونین رقابت تانه تانه ؤ ،

د سرمایه دارۍ او کمونیزم جنګ ؤ، او بل هغه وخت پاکستان د سیټو او سینټو فوجي تړونو غړے ؤ، چې دغه ټولې معاهدې د سویټ یونین او کمونیزم خلاف وې، نو ځکه خروشچیف د پښتونستان خبره کوله، چې څه وخت ۱۹۶۳ کښې د داودخان وزیرعظمي ختمه شوه او بیا ۱۹۷۳ کښې په قدرت راغئ، نو د ې مینځ کښې لس کاله تېر شوي وو، نوجهاني او منطقي سیاست بدل شوے ؤ، پاکستان مات شوے ؤ، د فوجي معاهدې نه وتلی وو، سابق سویټ یونین کښې خروشیف په ځائے بریژنیف چې مالکي او مغرور او کم عقل او بیوقوف روسئ راغلے ؤ، دچین او روس په مینځ کښې ناچاقي ، وه، روس غوښتل چې د یورپ او مریکې سره تعلقات ښه کړي. چې داودخان دوباره په قدرت راغئ، د ده خیال ؤ چې اوس خو راسره کمونستان هم دي، روس به اړو مرو د پښتونستان حمایت کوي خو چې څه وخت مسکو ته په دوره لاړو، نو ویې لیدل چې بریژنیف، په دې مسله کښې هیڅ دلچسپي نه لري، بلکې اولټه یې ورته د « ASIAN security plan » ورته مخکښې کړو، نو داودخان دېر خواشینی د روس نه واپس راغلو په روس یې زور نه رسیدو، نو ددوئ کمونست ایجنټان یې وار په وار د حکومت نه وشړل دکموستي بلاک

نه یې خپل تعلقات کمول، او سرمایه داري بلاک سره یې لاري
جوړولې، دغه موقع یې ته شهنشاه ایران تیارناست
و، ده ردا ود خان سره د اقتصادي کمک وعدې وکړې،
همدغه شان سعودي عرب، او نورو عربي ملکونو د
داود خان دښمني تر دې حده پورې لاړه، چې اجمل خټک
یې په کابل کښې بې کاره کړو، د پښتون ځلمي ځوانان
یې ټول په جلال آباد کښې یوکیمپ کښې یوقسم نظربند کړل
د اسې والیان او افسران یې مقرر کړل چې هغه ټول د
پاکسان ایجنټان وو. او د پښتونستان د تحریک مخالفین وو.
لکه عبدالله خان وردګ والي یې ننګرهار کړو، چې د
ډیر سپک او ضدي پښتون سړے و، د خپلې نوکرۍ
د پاره د خپل پلار مړګ ته هم تیار و، کابل کښې رو
رو ضدي پښتونستان ډله، چې مشر کړي یې سردار نعیم
جان کوله دومره زورور شوه، چې دوئ په چل ول،
باندې، ټول هغه خلک د اهمو ځایونو نه لرې کړل، چې د
هغوئ نه دوئ ته خطره وه. دوئ اول سرکښې دسرحداتو
وزیر پاچاګل ځدران لرې کړو، لیبیا کښې سفیر کړو
بیا یې ګلبدین حکمتیار سره دوئ رابطه جوړه کړه
د دوئ په اشاره ګلبدین په پنج شیرکښې بمونه خلاص
کړل، چې ددې سره ددوئ په لاس لویه بهانه دمیجر

فیض محمد خان محسود وزیر داخله افغانستان خلاف ـ
وراغله چې د ے افغانستان کښې استحکام نه شي راوستے
ددې سره قدیر پولیس دوئ دافغانستان وزیرداخله
کړو، او فیض محمد خان یې یو. یې کاره ځاے یعنې وزیر-
سرحدات کړو، چې دلږ وخت نه پس یې په انډونیشیاکښې
سفیر کړو، همدغه شان یې نور افسران لرې کړل، نو ددې
سره د داودخان او پرچمیانو، اوخلقیانو تعلقات کشیدهٔ سول،
اوس د داود خان اړ ددې ډیرې خطرناکې شوې، پرچمیان
او خلقیانو ورته اتفاق وکړو، که څه هم دغه د مکر اتحاد
وُ، مگر داودخان د جبر نه دوئ مجبور وو.
نو امریکې نواز خلک د حکومت په اهمو چوکیو
کیناستل، چې ددې سره روسیان رو رو یې ارامه شول.
او بل هغه ملي پښتونستاني افسران چې دوئ د داود خان
نه ډېر امیدونه وو دوئ افغاني نوکر شاهي کښې ورننوتلي وو
نو دوئ هم د داودخان خلاف شول.
اوس افغاني بیوکراسي داسې کارونه شروع کړل
چې ددې سره د داودخان زوال ډیر کړنده شو، هغه
داسې چې دده ورور سردار نعیم جان او دد فاع وزیر
روسولي، او د مالیي وزیر وحیدالله، او وزیر داخله
قدیر پولیسي، چې دوئ ته به خلکو کیچن کیبینټ وئیلو، نو

دوئ بغیر دد ې نه چې افغان فوجي بیوکراسي چا ن کړي، چې ځوک ۰ ځوک دي، په نوره شپه کښې يې په مړک ژوبله پيل وکړو؛ دوئ اوس دپښتونستان لوئ طرفدار ډاکټر نياز محمد خان په پکتيا کښې شهيد کړو، او دعوې يې په مولايانو وکړه، چې دوئ دغه کار وکړو، چې دغه بالکل دروغ وو.

بيا دوئ يو بل دپښتونستان طرفدار ميجر عطا محمد اپريدے کابل کښې شهيد کړو، چې هم دوئ په مولايانو و روا ړ وُ، چې دا هم دروغ وو،.

او اخري د پرچم دډلې مشهور عالم اوسياستدان، استاد خيبر شهيد کړو، ۱٦ - اپريل ۱۹۷۸ دخيبر دمرګ ورځ وه، او جنازه ۱۷ - اپريل وه، چې دد ې سره دوئ دپهلاسه پرے پخپله خپلو غاړو ته واچولو په د ې باند ې خلق ګونډ وارخطا شو،.

چې څه وخت باچاخان جلال آباد کښې دخيبر دشهادت نه خبر شو نو ده فيصله وکړه چې د ے به دده په جنازه کښې ګډون کوي، نو دد ې سره د کابل دکمونستانو نړونه غټ شول، چې داود خان هرڅه کوي، خو دغه به هيچرې ونه کړي، چې باچا خان دجنازې جلوس کښې وي، او د ے دزې په وکړي، نو دد ې سره دېر خلق دخيبر په جنازه کښې شامل شول، ګني که باچا خان شرکت نه و ے کړے، نو-

د دوئ دا پروګرام وو، چې جنازه باندې یې ورزې کولې خو د باچاخان د فیصلې په وجه دوئ دغه کار ونکړو لو دحالاتو پته د دې نه لګي، چې ما ته روستو طور لالي وویل چې د افغان وزیر دفاع رسولي تیلیفون اجمل خټک ته راغلو او ما واخیستو صفایې راته وویل، چې حالات ښه ندي نو تاسو زمونږ میلمانه یئ او ستاسو د ساتنې ذمه واري زمونږ ده، نو خیال وکړئ چې جنازه کښې شریک نه شئ، بلکې په صفا او خوږه ژبه کښې یې ورته ویلي وو، چې مه ورځئ، چې په دې باندې داجمل صاحب نه روستو ډیر پرچمیان خفه وو، چې باچاخان د خیبر په جنازه کښې شرکت وکړو، مګر اجمل صاحب ونه کړو، دوئ دې ته نه کتل، چې د باچاخان او اجمل صاحب په پوزشن کښې ډیر لوئ فرق ؤ، او خاصکر سلیمان لائق ډیر خفه ؤ، چې روستو بیا پرچمیان په قدرت راغلل، نو دوئ دغه بدل داجمل صاحب نه داسې واخیستو، چې دوئ ورته صوفي جمعه خان لاس کښې کړو، اجمل صاحب به یې په تنکولو، بلکې صوفي جمعه خان پخپله هیڅ حیثیت نه وو، د سې د اجمل صاحب یو عام معمولي شاګرد ؤ، بلکې سلیمان لائق ورته لوړ هم ورکړې او زوم یې کړو، او یو بل ابواب خان کاکا ..څنې جوړه کړو.

باهرحال حالات ډېر خراب و ، د جنازې نه پس اوورپسې مناظرې شروع شوې ، داودخان د خلق ګوند د سرسری ۲۵ - اپریل ۱۹۷۸ کښې ګرفتار کړل ، چې هغوئ کښې مشهور نور محمد ترکی ، بابرک کارمل ، حفیظ الله آمین ، سلیمان لائق وُ ، په دوئ باندې هیڅ احتیاج ونکړو ، مګر د دوئ قسمت ښه وُ ، چې حکومت بې وقوفي وکړه ، ماښام حکومت په ریډیو او T.V باندې علان وکړو ، چې د خلق ګوند د غړیو ټول لستونه او فهرستونه زمونږ په لاس راغلي دي ، زمونږ دېنچې او منګولو نه څوک خلاصیدای نه شي ، چې دغه دوئ صرف د خوف اچولو دپاره دروغ ووئیل ، مګر په عمل کښې د دې ، سره فوجي خلقیان وارخطا شول ، چې اوس به مونږه شرموي او په بې عزتۍ مرګ به مرو ، نو راځئ چې په نره وجنګیږو ،

دوئ خپل فوجي ملګري خبر کړل ، چې صبا حمله ده ، یا په عزت مرګ ، او یا کامیابي ، ددوئ مشرګري وطنجار ، ګلاب زوئ او کرنل قادر کوله ، دوئ ګابځ وختي ۲۷ اپریل ۱۹۷۸ کښې په داودخان حمله وکړه ، چې ماښامه پورې سخت جنګ وشو ، او ښه خونړے جنګ شو . وطنجار او ددوئ ملګري کامیاب شول ، داودخان دافغانستان نه دهمیشه دپاره ختم شو ددې سره د محمد زیانو دور هم پائے ته ورسیدو ، انقلابي فوجیانو خپل خلقي مشران د زندان نه خلاص کړل ، او دغه

شان دخلق گوند سیاسي لا بترې راوختله، افغانستان کښې د ثور انقلاب یا په بله معنیٰ د ثور بدبختې راغله، چې نه صرف یې افغان اولس د بدبختیو سره مخامخ کړو، بلکې ټول جهان کښې یې، دورس، تبدیلې راوستې، کمونستي سیستم کښې دغه اخري کودتا وه د دې سره د مغرب او مشرق د Nato او Warsaw Paekt دفوجي پهلوانۍ میدان د افغان خاوره جوړه شوه، هندوکش کښې افغاني وینې رواني شوې، لینین او کمونیزم هر څه په افغاني بزکشۍ کښې و بائیلل، د کمونیزم مرګ هم په افغانستان کښې پیښ شو.

# دخلقیانو او پرچمیانو برکشي

## تره کی او ببرک کارمل

چې څه وخت ۲۷ اپریل ۱۹۷۸ د ثور بدلون راغئ دغه
وخت زه جرمني کښې وم، په یورپ او امریکه کښې لکه څوک
اټم بم وچوي، دغسې زوږ او شور جوړ شو، ټوله شپه
او ورځ بل څه په ریډیو او T - V کښې نه وو صرف دغه خبره
و، چې کمونیزم په افغانستان کښې راغئ، او قسما قسم تبصرې
به کېدې، هر عالم به خپلې دخیالونو اسپې ځغلولې، دافغا-
نستان نه یې یو دیو جوړ کړو، چې دغه به اوس ټوله ایشیا
خوري، او ځینو عالمانو خو تر دې حده پورې پیش ګوئي وکړې
چې سویټ یونین د افغانستان په لاره ګرمو اوبو ته ځان رسوي
دغه یې اول قدم دے، او ځینو به ویل چې کومه نظریه
یا مذهب کابل ته راغلې دے، هغه بیا تر بنګاله پورې تلے دے
او ددې بدلون وړانګې به تر انډونیشیاء پورې رسي، دپاسه
به افغانستان وي دمشرق دغاړې به ویتنام وي، دوئ به دغ

توله اشیاء کښې کمونیزم خور وي، او افغانستان د اشیا زړه دے، چې زړه باندې کومه نظریه قبضه وکړي، نو د دې اثرات ټول وجود ته رسي.

مګر د هغې وخت سره المانې عالمانو دغه خیال وو چې مغرب ته هغه غلطي نده پکار، چې کومه دوئ، د فیډرل کاسترو کیو به خلاف وکړه چې دوئ د سویټ یونین غېږ ته واچولو، نو دوئ کښې د ډېرو دا خیال وُ او ځینو سیاسي مشرانو ته یې مشوره ورکوله، چې افغانان ډېر آزاد خلک دي، دوئ د هیچا لاس نه مني. نو پکار داسې دي چې افغاني کمونستانو سره رابطه پکار ده، چې دغه انقلابي دور تېر شي، دوئ به رو روځاے ته راشي، که چیرې مونږ ه دوئ تنګ کړل، نو دوئ به ضرور ځانونه سویت یونین ته وسپاري، چې دغه به د مغرب د مفاد خلاف وي، مګر د مغرب سیاست د امریکې په لاس کښې وُ، امریکیانو دغه مونه نصیحتونو ته چیرته غوږ نیولو، ګاونډیو هیوادونو کښې لکه ایران او پاکستان کښې یې ورته اډې جوړې کړې، او رو روېې د داود خان د وخت تبتیدلي اخوانیان ورته C.i.A منظم کړل.

« C.i.A » او برطانیه جاسوسي ادارې ټوله اسلامي او عربي نړۍ کښې بهرتي، وکړه، اخوانیان یې افغانستان ته ولیږل. او بیا د دوئ په کور دغه حال وُ چې دننګي او ببرک

مثال دهغې کوندلوې دغوایو یو، چې پښتانه متل کوي چې:
«دکوندلوې دوه غوایې وو، چې یو غوجل ته ننوتو نه، هغه بل دغوجلې نه وننو نه» نو دغه حال د دوئ و، دوئ دغلکوند په ۱۹۶۵ کښې جوړ کړے وُ، او دلږ وخت نه پس سره بیل شوي وو، دیوې ډلې مشرکري نورمحمد تره کي کوله اودبلې ډلې مشرکري ببرک کارمل کوله، چې ددوئ په ګوندي پروګرام کښې هیڅ څه خاص بنیادي فرق نه وُ، مګر د دوئ سوشل م (Background) کښې ډېر لوی فرق وُ، پرچمیان اکثره ښاري خلك وو، او دشاهي بیوکراسئ اولاد وُ، دوئ کښې دوه ډلې خلك وو، څینې پکښې تاجک پارسي بان وو، او څینې هغه پښتانه وو، چې دوئ ښز دې پښتانه وو، مګرکابل کښې دوئ کلتوري، ژبني پارسي بان شوي وو، او بل هغه پښتانه وو چې دوئ غوړ خلك وو، او نوکر شاهي سره یې تعلق وُ، نو دوئ هم دببرک سره وو، د دوئ اقتصادي حالات ډېر ښه وو، او هم دښاري ژوند په وجه دوئ ډېرچالاک، او سازشي وو.

بل اړخ ته خلقیان کلیوال خلك وو، او اکثریت یې پښتانه وو، او څینې کلیوال تاجک او هزاره هم پکښې وو، مګر د دوئ تعداد په اوړو کښې د مالګې و، نو څکه باوجود د سیاسي او نظریاتي پروګرام دوئ دیو بل سره تللي نه شول.

خلقیان ډېر وچ کلکا کمونستان وو، او نه په حوزه کو لوجدو-

جهد یې کولو، مګر ددې په مقابله کښې پرچمیان راسې نه وو،

دوئ د هرې موقع نه فائده اخیسته نو د بناري افغاني کمونستانو

او کلیوالو افغاني کمونستانو په منځ کښې اختلاف راغلو، چې څه

خو د دوئ خپل قصور و، او څه ورته شاهي حکومت لمن وهله

بس دوئ یو په بل پسې دېر وپیکنلو نو یې خلاصی کړې، دوئ

خپله ټوله انرجي په خپلو منځوکښې خرچ کړه بهر ورته مولا

تماشګیر ؤ، د خلقیانو په نظر ببرک کارمل دجنرال زوئ

وو، د شاهي کورنۍ ایجینټ ؤ، د پرچمیانو د یاره تره کی د C.I.A

ایجینټ ؤ، دا ځکه چې چېرته تره کي امریکه کښې افغاني

سفارت خانه کښې څو میاشتې نوکري کړې وه، بس دغه د

ده خلاف ثبوت په طور پیش کولو، حقیقت کښې دیوې ډلې

سره هم ثبوت نه ؤ، بس دغه هوائي تورونه وو، چې یو بل

باندې لګول، که چېرې ددوئ په اتفاق وے، نو دوئ لوئ

قوت ؤ.

د ۱۷ جولای ۱۹۷۳ کودتا کښې پرچمیان شامل وو، د داود

خان په حکومت کښې یې ډېره برخه درلوده، او دوئ په

بیوکراسئ کښې ډېر ورننوتل، مګر خلقیان بحیث ګوند په

حکومت کښې شامل نه شول، مګر د داود خان د حکومت

د مترقي قدمونو ملاتړ یې کوو، چې څه وخت پرچمیان

حکومت ته کلږ شول ، نو دوئ بنه امتحان ورنکړو ، دوئ هم د شاهي مُرداري نوکر شاهي په څیرپه ( Bribry ) یعني رشوت بانده پیل وکړ ددې سره د دوئ نیک نامه ته دېر زیان ورسیدو چې څه وخت داود خان د دوئ په شرلو پیل وکړو نو خلقو کښې د دوئ څوک همدرد نه ؤ ، مګر د داود خان په حکومت کښې خلقیان پاک پاتې شول ، دا ځکه چې دوئ بحیث ګوند شامل نه وو ، چې څه وخت داود خان ، خپل پر په بدلولو پیل وکړو ، د سوشلست بلاک نه یې رورو د سرمایه داری بلاک ته بن دی کولو ، او ددې سره په پرچمیا نو تبه راغله ، یوخو د دوئ نوکرۍ لا ړې ، خلقو کښې بې عزته شول ، اوبل د افغانستان خارجه سیاست بل اړخ ته روان شو ، نو دوئ چالاک خلق وو ، سوچ یې وکړو چې څه علاج یې پکار دے ، دوئ د ځان وینځلو د پاره بیرته د خلق ګوند سره دیو کولو ، پروګرام وړاندې کړو ، چې ددې دوئ ته دوه فایدې وې ، یوه دا چې د داود خان پرېښتو ته یواځې نه وی او بل به دوئ ددې په وجه دافغاني خارجه سیاست مخه ونیسي ، نو دوئ باندې زور ؤ ، اوبل د C.I.A او د ایرانی ساواک افغاني جاسوسي ادارو ته دغه مشوره وه ، چې د دوارو نه ځانونه خلاص کړي ، نو هغه د پښتنو متل و ، چې : « چې بزے پامے شي ، نو بیا په له مئینے شي » نو اوس دوئ ،

پمن شوي وو، او بل د دوئ استاد K.G.B ته درک ګکیلے

ؤ، چې د هوا رخ کومې غاړې ته دے، دوئ یې سره

یوکړل، د مکر او سازش یو اتحاد وشو، چې د هغه اوله نتیجه

د ثور و بدلون وو، خو لکه چې متل دےوچې: د غلو خــه

خوږه یاري وه، خو په ویش یې تالا شوه. هم دغه چـل

د دوئ سره وشو، د دوئ اتحاد داول د سره په سازش ؤ،

بد نیتي او مجبوری په بنسټ ولاړ ؤ، او بل پریش و، چې څه

وخت د محمد ن یانو حکومت نسکور شو، نو پریشر په دوئ

کم شو، هغه پخوانۍ د بدنیتۍ او د سیسو په بنیاد ولاړ

د شک نه ډک سیاست بیا شروع شو، اوله ورځ د دوئ جنګ

په دے وچې، تره‌کي نه پس په ببرک هم په ریډیو او

T.V باندې قوم ته خطاب کوي، حقیقت او جهاني رواجه

طریقه دغه ده چې، د هیواد مشر تقریر کوي، چې

تره‌کی د افغانستان صــدر ؤ، مګر افغانستان کښې د دوئ

دمکر داتحاد نه څخکښې ګوندي مشرانو په بنیاد تقریرونه

وکړل، چې تره‌کی صاحب په پښـتو وکړو، ببرک

په پارسي وکړو،.

دغه اول بحران خو د دوئ حل کړو، خو دغه دګلو

کار د پاره نیک فال نه ؤ، د دوئ خپلې پښې ټینګې کړې

نه وې چې د بزکشۍ د پاره، خلقیانو او پرچمیانو یو بل

ته بدرې ووهلې، او بل هم يوه کوښښ کولو، چې خپل طرفدا-
ران زيات کړي، نو ددې سره د ومره ډېر خلک ګوند ته
راګډ شول، چې د اصلي او لچه درکځ لګول پکښې ګران شول
که څه هم نوم به د تره کي او ببرکځ ياد يده، مګر حقيقت
کښې بزکشي د آمين او ببرکځ ترمينځ وه.

د سياسي علم په بنياد تره کی صاحب او ببرکځ څنې کمزورياني
لرلې، د مثال په توګه ترکی صاحب يو کليوال سړے ؤ د سياسي
علم له نظره، کليوال سړے رښتونے، وچ کلکځ وي، دے
پخپلو نظرياتو ډېر ټينګځ وي، د دهوکې او چپلوسي نه پاک وي
مستقل مزاجه وي، چې څه وائي، هغه ئي مطلب وي، خپل
ملګرو ته صادق وي، چې سياسي ګوند کښې دغه نمونه خوبونه
کافي نه وي، چونکې د ے بناري نه ؤ، نو ځکه د ے چالاک
او چپلوس نه ؤ، او خپل اړخونه يې زر زر نه شو بدلولائ
چې سياسي ګوند دغه تقضاء کوي، نو ترکی صاحب د نظر-
ياتي جنګځ دپاره برابر سړئ ؤ، مګر د حکومت کولو
دپاره فيټ نه ؤ،

بل اړخ ته ببرکځ يو بناريي ؤ، او د نوکرشاهي پيداوار
ؤ، نو دے ډېر چالاکځ، زيرکځ او د حالاتو د بدلولو په
په چل بنه پو هيده، نو ده به مسئله ډېره زر پيژندلای
شوه، او دخولې، خبرې او عمل کښې به يې فرق زر معلومولے

شو او د استاد خواهشات به ډېر ښه ورمعلوم شول .
نو ده به هغه کول، چې د استاد به خوښ وو، د پردې
شاته د حالاتو د رک ډېر ښه ور معلومیدل ، نو ځکه د ده
"کارمل" روسیاټ د ترکي په مقابله کښې سم پیژندلي وو، مګر د
ښاري ژوند په وجه د ده څه کمزوري لرلې، چې هغه
مستقل مزاجي ، رسښتونوالې ، پیا ور توب ؤ، چې د دې د
دې نه محرومه ؤ ، نو دې نظریاتي ژوند د پاره فیټ نه ؤ.
مګر د حکومت کولو د پاره فیټ وو، هدغه وجه وه چې تره کی
نظریاتي جنګ کښې بریالے شو، مګر حکومتي جنګ کښې یې وبایلله .
مګر آمین صاحب د سیاسي علم په بنسټ د دوئ دواړو نه
خطرناک ؤ ، هغه ځکه چې ده کلیوال او ښاري بیوکرا سي
دواړه خاصیتونه درلودل ، یعنې ښاري چالاکي اوکلیواله
بد معاشي ، اکثره هغه کلي چې لویو لویو ښارونو ته نږدې
وي ، نو ددې اوسیدونکي ډېر خطرناک وي ، داځکه
چې دوئ په خپل وجود کښې په یوه وخت دوه عادتونه
ځای کوي، دواړه ژوندونه پوره نه وي، بلکې نیم ، نیم
یې خپل کړي وي ، نو ځکه نه پوره ښاري وي او نه کلیوال
نو دغه دوه ډوله خاصیت یو خطرناک شکل جوړوي ، او
اکثرغیر سیاسي خلک بد معاشان وي ، چالاک ،کنډکپان او جیب-
کتر ے وي، داځکه چې دوئ د دواړو وسلحو نه برخورد

وي ،كه دچالاكۍ ځاى راشي ، نو دوئ دمكراوسازش نه
كار اخلي، چې د بدمعاشۍ ځائ راشي ،   دخپل چاقونه
مګر مكمل ښارې ياكليوال د داسې خاصيتونه خالي وي،
يا چالاكي كوي يا بدمعاشي .، «كابليان وايي: يک پغاني صدلغاني».
همدغه وجه وه، چې آمين ډېر زيرک، چالاک اوپياوړے
سړے ؤ ، چې ده دواړه ژوندونه درلودله چونكه دے
د پغمان ؤ، دكابل ښار نه ډېر لرے نه ؤ ، دافغانستان كليوال
ژوند نه هم خبر ؤ ، او ښارى ژوند نه هم ،كه څه هم
ببرک دكليوالو كورنۍ نه راتلو ، خو دوالد صاحب په وجه
خپل ژوندې په ښار كښې تير شوے ؤ ، او تش په نوم
كليوال ؤ ، نو ځكه ده كليوال خوئ دلاسه ورکړے ؤ،
د ببرک د پاره د تره كي صاحب ښكيلول څه ګران كار
نه ؤ ، مګر آمين صاحب ورته ګران ؤ ، نو ځكه دوئ د
خپلې پروپيګنډې نښان آمين جوړ كړے و . چې اول
سر كښې ببرک په يرغمل كښې كامياب نه شو، دحكومت دلاخيستو
د لنلو وخت نه پس آمين دوئ وشړل ، د پرچميانو د سر
خلګ يې ټول لرې كړل ، د پرچميانو خلاف دآمين صاحب
كودتا كاميابه شوه . د دې مطلب دغه ندے چې آمين
په دوئ باندې اعتبار وخوړو، او بد سړے ؤ، ببرک
هم فريبنته نه وه، دغه كار ده هم كولو، خو چونكه

دے چالاک وُ، پیاوړے نه وُ، نو ځکه یې دغه اوله لوبه و بایلله،

کله چې پرچمیان خلقیانو وشړل نو دښمن وړکړ شو،

اوس د پښتنو د متل مطابق، چې «هندو هیڅکله لا یا - ناست نو خپلې خوټې تلي» هدغه چل خلقیانو وکړو، اوس، دآمین او تره کي تر مینځ پرے جنبې شروع شوې، ښارې ببرک دآمین نه ماتې وخوړه چې تش چالاک و، اوس ورته - کیلوال تره کي بلړې ووهلې، چې تره کی هو انا HAVANA ته لاړو واپسي کښې مسکو کښې یې د خپلو استاذانو سرہ دآمین په راځملولو خبرې وکړې، روسانو ورته صلاح ورکړه چې دغه مسله هله حل کیدا ے شي، چې ته او ببرک ورته اتفاق وکړئ ددې سرې علاج اسان دے، چونکه تره کی کلیوال سړے وُ، پیاوړے وُ خوچل ول باندې نه پوهیدو، نو روسانو او ببرکیانو د بارودوُ «ماشنونو» په میدان ورکلو کړو، چې نتیجه یې دده دپاره ډیره خطرناکه وخته، ستمبر ۱۹۷۹ کښې د هرڅه نه لاسونه ووینځل، دقبر درک یې معلوم نه شو، د پغماني بد معاش نه افغاني ښارې ببرک اوکلیوال تره کي دواړو ماتې وخوړه، داځکه چې آمین د دواړو امیزش وُ،.

اوس روسانو او ببرکیانو دآمین دختمولو منصوبې -

جوړې کړي، چونکه د آمین علاج دچالاکۍ په بنیاد مشکل ؤ
بلکې د زور او بدمعاشۍ ضرورت و، چې په بدمعاش
باندې لوئ بد معاش پیښ شي، نو هلته شکست په لاس مني
نو د ستره کې د مرګ نه پس روسانو په آمین باندې
فوجي حمله وکړه ، چې په نتیجه کښې امین صاحب شهید
شو ، د روسانو په زور ببرک د شاه شجاع دوهم خطاب
سره د کابل واکدار شو ،

# د روسیانو په افغانستان باندے

# یرغل

دغه قیصه ډېره زړه ده چې روسان د افغانستان
په لاره کړمو، یعني نودو اوبو ته ځانونه رسول غواړي
دغه خبره د نپولین دوخت نه شروع شوې ده، چې هغه
وخت الیسټ انډیا کمپنۍ ۱۸۰۹ کښې پېښور کښې، د افغاني ولکدار
شاه شجاع سره اول ځل د پاره منظمې خبرې کړې وې، هم
د دې نوم لاندې چې روسان راځي، پرنګیانو څو څو ځله
افغانستان کښې مداخلت وکړو، او هر وار رنګیدلي پوزه ځني
وو تل، اخر د تجربې نه یې سبق واخیستو، نومبر ۱۸۸۰ کښې
جنرال رابرټ د قندهار نه هند اړخ ته کوچ کولو، نو پرنګیانو
ته یې یو پیغام ورکړو، او نصیحت یې ورته وکړو چې د
خدائ د پاره د افغانانو کورنۍ چارو کښې ګوتې مه وهئ، پرېږدئ
چې روسان راشي نو موږ به د افغانانو اِمداد وکړو، چې
په دې طریقه موږه د دوئ اعتبار ګټلے شو.

"shortly after the Battle of Wali Baba , Lord Roberts left KANDAHAR, and via Quetta went to England on sick leave. Before his departure, he expressed his opinion on Afghan question, which showed that by then British Veteran had become wiser and had gained much in experience. He says: " We have nothing to fear from Afghanistan and the best we can do is to leave it as much as possible to itself. The less the Afghans see of us, the less they would dislike us. Should Russia in future years attempt to conquer Afghanistan, or invade India through it, we would have a better chance in attaching the Afghans to our interests, if we would avoid all interference with them".

دغه بیان جنرال رابرټ ستمبر ۱۸۸۰ کښې ورکړے وُ، اتهٔ و میاشتې کم "۲۷ دسمبر ۱۹۷۹" کښې ټیک سل کاله پس روسانو په افغانستان باندې یرغل وکړو، که څه هم ۱۸۶۵ نهٔ پس د زارې

روس سرحدونه آموسین ته رارسیدلي وو، مګر دوئ

په ښکاره دغه جرات نه ؤ کړے، چې افغانستان باندې

حمله وکړي، ددوئ اوپرنګیانو په دې روغه راغلې وه

چې افغانستان به ددوئ په مینځ کښې بفر" » هیواد

وي، اوافغانستان کښې دروس نه زیات دپرنګیانولاس ؤ، د۱۸۸۰

نه پس افغاني خارجه سیاست دپرنګیانو په لاس کښې ؤ،

افغانستان باندې حمله، انګلستان باندې حمله وه، زار روس

دومره قوت نه درلود، چې برطانیه سره یې جنګ کړے ؤ،

اوپل په ۱۹۰٤ - او ۱۹۰۵ کښې د جاپان دلاسه روسان ډېر سپک

شول. دوئ په سمندري جنګ کښې او مانچوریا کښې دجاپانیانو

نه سخته ماتې وخوړه، نو دوئ ټوله توجه مغرب ته

واړوله، اوخاصکر بالکان ته، دیورپ سیاست داسې روان ؤ

چې فرانسویان، روسان او پرنګیان یې مجبور کړل، چې یوه

ډله شي، داځکه چې جرمني ډېر په تیزۍ روان وو، د

جرمني نه فرانس، برطانیه او روس درې واړو ته خطر

ؤ، بالکان کښې ترکي مفاد او د استریا مفاد سره یو شول،

دواړه د زربین خلاف سره یو و، او زربین ملګري او

سرپرست زار وو، عثماني ترکان، استریا او جرمني سره یوه ډله شول، پرنګیان

روسیان، اوفرانسویان ورته بله ډله شول، ددې ملګرتیا په وجه دروس نه

دغه خطره نه وه، چې پرنګي مفادا تو ته به هند کښې یا -

افغانستان کښې نقصان ورسوي جنګ د پرنګيانو په ګټه تمامه شو، روس کښې زاري لاړه، د لينن ترمشرکرۍ لاندې سوشلستي راغله، چې دغه اوس د پرنګيانو اوخاصکر سرمايه‌دارو دپاره نوے مرض وُ، که څه هم کمونستانو دغه نه غوښتل، چې د نورو خلکو او اولسونو حق وخوري، مګر د دوئ نه دغه خطره وه چې دغه سوشلستي نظريه به نورو هيوادونو ته برآمد کړي، او دغلام اولسونو دپاره به هسکو يو مرکز جوړ شي، خواول سرکښې د پرنګيانو دغه خيال و، چې لينن مړ شي، دغه هرڅه به‌سره لاړشي، او بل دوئ روس کښې کورنے جنګ جوړ کړے وُ، اوس د زارې روس په ځاے لينن‌دسويټ يونين په جوړيدوو، چې دوئ ضد استعمار او سامراج وُ، نو ددې سره دافغانستان دامو سرحد په آرام شو، او بل دلته افغانستان کښې قوم‌پرست خلک لګياو، ځانونه ـې منظم کول، ۱۹۱۹ کښې دوئ اميرحبيب الله په لغمان کښې شهيد کړو، او دده کشر زوئ غازي امان الله خان ـې بادشاه علان کړو، ددوئ دپاره‌ښه وخت وُ سويټ يونين کښې لينن و، او دوئ مرکزي ايشياء کښې دباغيانو سره لاس په ګريوان وو، هندوستان کښې ـې آرامي وُ، قبائيلي پښتنو کښې حاجي صاحب ترنګزو، جهاد شروع کړے وُ، نو داسې حالاتو کښې افغاني قوم پرستو ګټه وکړه، دپرنګي

دغلامۍ نه یې افغانستان آزاد کړو، سویټ یونین او برطانیه ای نورو هیوادونو دوستو دیو آزاد مملکت په حیث تسلیم کړې غازي امان الله خان د روس سره د تعلقاتو ښه کولو، په غرض ۱۹۲۱ کښې لوظنامه لاس لیک کړه، چې د ښه ګاونډیتوب او دیر بل په کورنۍ چارو کښې د ګوتو نه وهلو خبرې پکښې وې، روسانو افغانستان ته د تیکنیکل امداد ورکولو، وعده هم وکړه، افغاني او سویټي تعلقات ډیر خوا ښه وو، افغانستان هیڅکله سویټ یونین ته تکلیف جوړ نه کړو، ۱۹۲۸ کښې امان الله خان د سویټ یونین دوره وکړه، هم دغه شان پرنګیانو د غازي خلاف شورش جوړ کړو، او ده تخت و تاج پریښود یورپ ته لاړو، د ده په ځای نادرخان راغئ، هغې هم د ستالن سره ښه تعلق ساتلو د غه معاهده ده نوې لاس لیک کړه، د ده د شهادت نه پس د ده زوئ ظاهرشاه هم دغه د دوستی معاهده لاس لیک کړه، او د واړو هیوادو ترمینځ ښه روابط وو، دویم جنګ عظیم کښې افغانستان بې طرفه او غیرجانبداره پاتې شو، روسانو او پرنګیانو ته یې هیڅ مصیبت جوړ نه کړو، دویم جنګ عظیم پورې سویټ یونین په خپلو داخلي مسلو کښې بوخت وو، نو د دنیا ملکي ځینې پاتې وه، خو دویم جنګ عظیم کښې سور فوج د هټلر فوج ته ماتې ورکړه، او ټول مشرقي یورپ او مشرقي جرمني، د سویټ یونین

تر واکه لاندې راغلل، او س روس یو بین الاقوامي طاقت شو، نه صرف فوجي بلکې نظریاتي طاقت هم وُ، نړیوالو مسائلو کښې یې لاس وهنه خپله وظیفه ګڼله، د دویم جنګ عظیم سره یورپي طاقتونه یعنی فرانس او برطانیه په زوال شول، د دوئ په ځائے امریکه او سوویټ یونین سر ته راوختل، چې دوئ مختلفې نظرې او دسیاسي او اقتصادي نړونند دپاره، یوبل ضد پروګرامونه درلودل، چې ددې سرۀ په نړۍ کښې، د دوئ سیالي شروع شوه، چې څه وخت اګست ۱۹۴۷ کښې برطانیه هند تقسیم کړو، د پاکستان ترنوم لاندې یې مسلمانانو ته یو وطن په تحفه کښې ورکړ، چې دوئ یې سل کاله خدمت کړے وُ، په دې وطن کښې پنځه غټې قومونه ځائے شول، چې هغه بنګالیان، پنجابیان، سندهیان، بلوچیان، او پښتانه وو.

پدې نوي وطن کښې د بلوچو او پښتنو یو زښن - بالکل جداوُ، دوئ د پرنګیانو د قهر ښکار شول، دا ځکه چې دوئ ضدِ پرنګي وو، نو د دوئ نه د بدل اخیستو دپاره پرنګیانو د اریفرنیډم تر نوم لاندې یې پاکستان ته ترنګرکښې واچول دپښتونستان، تر نوم لاندې یې دوئ ته دریفرینډم حق ورنکړ، چونکه افغانستان د افغانانو هیواد وُ، نو دوئ دغه ظلم او زیاتے برداشت

نه کړو، دلاندې پښتنو هایت یې وکړو. نن د دې سره
دپښتونستان اصطلاح راپیدا شوه ، داځکه چې دافغانستان حکومت
دغه ځمکه په ۱۸۹۳ کښې تش په نوم کرښې په وجه داصلي
افغاني وجود نه پرېکړې ګڼله ، نو دوئ دیورنډ لاین یوقانوني
کرښه نه منله ، او دپښتنو دپاره یې د حق خودارادیت په
بنیاد د دوئ نه د پوښتنې مطالبه وکړه ، او N.O ، UN کښې
یې دغه مسله راپورته کړه ، چونکه پاکستان تر ۱۹۵۵ پورې
پوره ازاد نه وُ ، او بل برطانیه نه امریکې چارج اخیستې وُ
نو اوس د برطانیه مفادات دامریکې په مفاداتو بدل شول.
برطانوي دښمنان اوس دامریکې دښمنان هم شول.
د برطانیه دوستان اوس د امریکې دوستان هم شول،
یاپه بله معنیٰ د برطانیه په میراث پاتې اوس امریکه قبضه
وکړه، نو ځکه د برطانیه د تګ نه پس پښتنو ته څه
فایده و نه رسیده، چونکه خدائ خدمتګار د برطانیه
مخالفت کړے و ، نو امریکې هم پښتون نشلزم دخپلو
مفاداتو دپاره خطرناک ګڼلو، یعنې برطانیې او امریکه
کښې هیڅ فرق نه وُ ، او پاکستان امریکې د کمونیزم خلاف
په سنیټو او سیټو فوجي تړونونو کښې شامل کړو، دترکي
نه راواخله تر پاکستانه ، ایران پورې دوئ سویټ یونین
خلاف یوه دایره جوړه کړه ، چې دغه کښې افغانستان د

شامیلدو نه انکار وکړو ، مګر پاکستان د روس خلاف د بلا بیری پېښور هوائي اډه ورکړې وه ، چې امریکی به د روس جاسوسي "یوټو" د ۲ - U جهاز په ذریعه کوله ، خلکو خبرې کولې چې خروشیف تر پېښور سره لیکه تاوه وه ، او ۱۹۶۰ کښې روس دغه U.۲ جهاز په راکټ وویشتو ، نو سوویټ یونین هم په ښکاره کښې ځان نه ملګرې کتل ، او په دې علاقه افغانستان او د پښتنو بلوڅو مسله د دوئ د پاره یوه وسیله وه ، خو افغانستان شاهي حکومت د پښتونستان د مسئلې ذکرمولو دوه بنیادي وجې درلودې ، یوه دغه چې د دې مسلې په نوم د سوویټ یونین او امریکې نه امداد ونه اخیستل او بل یې د دې جذباتي او ملي مسئلې په وجه د افغانستان - داخلي اقتصادي او سیاسي مسائلو نه د خلکو فکر اړولو ، او مشغوله یې جوړه کړې وه ، په حقیقت کښې شاهي حکومت هیڅ کله دا نه غوښتل چې لاندې پښتانه دې د بره سره یو ځاے شي ، نو سردار انو دغه مسئله په خپلو لاسونو کښې اخیستې وه ، چې دوئ سره هیره وه چې بل څوک په قبضه ونه کړي ، او هندوستان به هم د ځانګړ د پاره د پښتونستان قیصه کوله ، دا به هغه وخت دوئ کوله ، چې پاکستان به د کشمیر مسئله ګرمه کړه .

دغه حالات هغه وخت نور هم خراب شول ، چې څه وخت په ۱۹۵۳ کښې سردار محمد داود خان د افغانستان وزیر اعظم

شو، ده کوښښ شروع کړو، چې افغانستان په اقتصادي توګه په ښو ودرويي، ده د پاکستان سره دپښتونستان مسئله ډېره ټينګه و نيوله، چې د دې په وجه حالات دومره خراب شو، چې پاکستان افغانستان پسې ناکه بندي وکړه، ټول سرحدونه يې پسې وتړل، چونکه افغانستان په وچه پروت هيواد دے، هيڅ سمندري غاړې نه لري، جغرافيائي مجبورتياوې يې درلودې، او ددوه ټول کاروبار په طورخم، چمن وُ، او د کراچۍ په بندرګاه وُ، دغه لارې د پاکستان تر واک لاندې وې، دوئ افغانستان پسې بندې کړې، چې د دې سره دافغانستان حالات ډېر خراب شول، مګر داود خان هوښيار سړے وُ ده د ايران د شهنشاه مياتکړيتوب ومنلو، د دوئ په کښې عرضي روغه وشوه، لارې بيرته خلاصې شوې، مګر د دې نه سويت يونين سبق زده کړو، او داود خان ته يې د متبادلې " Alternative " لارې پيشکش وکړو،

داود خان لويه جرګه راوغوښتله، او دوئ ته يې مسئله وړاندې کړه، چې تاسو وليدل چې ما دپښتونستان مسئله راواخيسته، پاکستان راپسې لارې بندې کړې، مونږه سمندر نه لرو، نو که نه د پاکستان سره دپښتنو او بلوڅو مسئله بيرته ګرموم، پاکستان به بيا راپسې،

سرحدونه ته ري، تو که ستاسې خوښه وي راڼه به.
متبادلې لارې کودرې ولټوم . لوى جرګې اجازت ورکړ
ده د سوويټ يوونين سره، خبرې وکړه ، سوويټ يونين
خو ددې په انتظار و، سوويټ نه صرف دوى ته لاره ورکړه
بلکې فوجي او اقتصادي کمکونه يې ورسره وکړل، که څه
هم په اول سر کښې افغاني واکدارو ، امريکې نه فوجي او
اقتصادي مددونه غوښتي وو ، خو امريکنيانو داسې
ذليل شرطونه په تکول چې ، هغه د دوى دپاره د منلو
وړ نه وو ، د سوويټ يونين سره د کلوکار په وجه
مغربي نړۍ او خاصکر برطانيه او امريکه وارخطا شول
چې دغه به د دوى د مفاداتو دپاره نقصان ده وي،
افغاني فوجي افسران په سوويټ يونين فوجي اکيډمو
کښې داخل شول، ضروري خبره وه چې په دوى باندې
د سوويټ يونين سستم او نظريې اثر کولو، مګر څنګه
داود خان او ظاهرشاه دومره کم عقل نه وو، دوى د
مغرب سره بدي نه کړه ، بلکې سوويټ يونين ته د نزديکت
په وجه د دوى سياست دغه و ، چې افغانستان کښې د
مشرق او مغرب سيالي جوړه کړي ، چې يو تربل نه
زيات زموږ سره کمک وکړي ، هم دغه وه چې دشيرخان
بندر نه تر کابله پورې سړک او بيا د تورغونډۍ نه تر.

قندهار پورې روس جوړ کړل ، د کابل نه ترقندهاره سپین بولدک د کابل نه تر طورخمه پورې امریکې اومغربي سرمایه دارو ملکونو ، همدغه شان سردارداودخان د پښتونستان په مسله باندې دافغانستان دپاسه اقتصادي او فوجي کتې وکړي ، فوځ یې نوې او جدید کړو ، اوروس ورته نوې اسلحه او هوائي جهازونه ورکړل او د ملک دننه یې پخې سړکې جوړې کړې ، اوټول ، هیواد کښې یې بندونه وتړل ، بلکې هغه ارمان یې پوره کړو ، چې کوم د امان الله خان غازي نه نیمګړې پاتې شوې وو ، بلکې داودخان به ویئیل ، چې زه امریکي ، سګریټ په روسي ماچس بلوم .

روسته په پاکستان کښې د ایوب خان د راتګ سره حالات نور هم خراب شول ، د دوئ سفارتي تعلقات پرېکړې شول ، پاکستان بیا لارې بندې کړې ، مګراوس افغانستان د سویټ یونین په وجه هغه مجبوري نه درلوده ، چې حالات ډېر خراب شول ، او داود خان د تنوکي نه رښتیانه اوړیدو ، نو دلته یې ظاهرشاه او محمدزیانو لاس ونیولو ، او مجبور کړے شو ، او په ۱۹٦۳ کښې یې د حکومت نه لرې کړو ، داځکه چې محمدزیانوخودپښتونستان په مسئله تجارت کولو ، مګر اوس افغاني عسکرو اونوکرشاهي

کښې د سوویټ یونین همدرد ډېر شوي وو، حفه افسران چې داود خان سوویټ یونین ته د تربیت او سبق د پاره لیږلي وو، دوئ راوا پس شوي وو، او افغان بیوکراسی کښې ځائے په ځائے شوي وو، او په دې کښې بنیادي خلک د رحمٰن بابا کالج او خوشحال خان کالج وُ، دوئ تقریباً ټول پښتانه وو، رحمٰن بابا کالج کښې د افغانستان داخلي اطرافي پښتانه طالب علمان وو، او خوشحال خان کالج کښې د قبائیلي سیمو، طالب علمان وو، چې افغانستان به ورته آزاد پښتونستان وئیلو، د دوئ په ربښتیا سره د پښتونستان د مسئلې سره مینه وه، دوئ ټول تقریباً ښه لې نوکرۍ ته لاړل، لکه فوج او پولیس، او نورې غوړې د ارم نوکرۍ د کابلیانو او محمدزیانو د پاره وې، د دوئ دا خیال وُ، چې افغانستان صرف د دوئ جاګیر دے، هیڅ سیاسي آزادي نه وه، نورو د په بې جوړه کړې وه، هیچا ته د سربیتوپ په لاره حکومت نه د ریسیډلوموقع، نه وه، افغاني روښنفکران دوئ "Redical" کړل، د داودخان د تګ نه پس ډېر هرتالونه وشول، حکومت دې ته مجبور شو چې قانون ومني، وزیرعظم داولس نه وي، دوئ د نوي قانون مطابق د ګوندونو جوړول قانوني کړل، چې د دې سره په افغانستان کښې

قسماً قسم گوندونه مینځ ته راغلل، چې تر مولا نه ینولې
تر کمونیستې پورې وُ، نو یکم جنوري ۱۹٦۵ کښې د حزب
دیموکریټ خلق افغانستان بنیاد کېښودل شو، چې مشرئې
نور محمد تره کی، او نائب یې ببرک کارمل شول، ددوئ
گوندي پروگرام د اشتراکیت په بنیاد ولاړ وو، دسو-
شلستې نظام او سیاست په حق کښې وو، د سرمایه دارۍ
لاره ورته غلطه او ظالمانه ښکاریدله، مغرب ورته-
ظالم او سوشلستې بلاک ورته د مظلوم، ملگرے او قدرتي
دوست ښکاریدو، او د پښتنو او بلوچو مسئله یې دخپل
سیاست موږے وگرځولو، هم په دې وجه د رحمٰن-
بابا او خوشحال بابا کالج پښتانه هلکان او افسران دخلق
گوند غړي شول، خو بیا دغه گوند سره تقسیم شو، چې
په خلقي او پرچمي باندې وپیژندل شول، مگر دو یش،
باوجود د دوئ په پروگرام او سیاست کښې فرق رانغئ.
دواړو دلود سویټ یونین لاره صحیح او سمه گڼله.

د لسو کلونو «۱۹٦۳ - ۱۹۷۳» انتظار نه پس سردار
محمد داود خان د خوشحال خان کالج او رحمٰن بابا کالج د
افسرانو په زور په قدرت راغئ، د ظاهرشاه تخت یې واړوله
چې په دوئ کښې مشهور میجر فیض محمد خان محسود
وُ، چې د خوشحال خان د کالج څخه خلاص شوے وُ،

بیایې د سویټ یونین نه فوجي ډګري اخیستې وه، هم
دغه شان بل باچاګل ځدران ؤ، چې د ے هم د۱۹۵۱
دفوجي اکیډمۍ نه خلاص شوے و، چې روسته د
داود خان په کابینه کښې فیض محمدخان محسود
وزیر داخله شو، او باچاګل وزیر سرحدات
شو، د هغې وخت مطابق سردار داود خان دقوم
پرستو او مترقي خلقو امید ؤ، او ده ډېر مقبولیت
درلوده، نو ځکه په اول سر کښې دده سره تولو قوم
پرستو او محب وطن افغانانو کمک وکړو، ده جمهوریت
علان کړو، شاهي یې ختمه کړه، د پښتونستان مسٔله
یې بیا ګرمه کړه، او سویټ یونین هم د تیرو لسو
کالو د ریکارډ نه خوشحاله ؤ، مګر د ۱۹۵۳ نه تر۱۹۶۳
پورې دده صدرعظمي وخت د سوړجنګ وخت
ؤ، د روسې او امریکې تانړه تانړه رقابت شروع
شوے ؤ، نو د پښتونستان په نوم افغانستان ته
ډېرې کتې کړې وې، بیا د ۱۹۶۳ نه تر ۱۹۷۳ پورې،
حالات بالکل بدل شوي وو، روس کښې قیادت بدل
شوے ؤ، د روسې او چین بدې جوړه شوې وه،
دجناح پاکستان مات ؤ، د هندوستان دلچسپي کمه شوې
وه، پاتې پاکستان د سینټو او سیټو فوجي معاهدو نه وتے ؤ،

د بېړهابېړ پېښنور امريکي اړه ختمه شوې وه دکمونيزم او سرمايه داري د غوبل مرکز اوس افريقه او جنوب شرقي اشيا شوې وه. روسي مشران اوس د امريکي او يورپ سره د ډېټان په چکر کښې وو. د روسانو د پښتونستان مسئلې سره دلچسپي ختمه شوې وه. داودخان چې د مسکو دوره وکړه، نو زر ورمعلومه شوه چې دده شوق نه پوره کېږي. په روس کښې وس نه رسيد و

افغاني پرچمي ملګرېو پسې کښې را واخيسته دوئ، يې يو د بل پسې کښې واکه کړل، د حکومت نه يې وشړل او د دوئ په مرګ يې لاس پورې کړو، افغاني کمونستانو ورته اتفاق وکړو، ۲۷- اپريل ۱۹۷۸ کښې يې داسې کار وکړو، چې د افغانستان په معلوم تاريخ کښې نه وشوے. دوئ په قدرت راغلل، مګر دوئ هم په يوه خوله نه وو يو د بل وينو ته تږي ناست وُو، سويټ يونين د افغانستان په داخلي مسئلو کښې دومره ورننوتے وُ، چې بې طرفه نه شو پاتې کېدلے. او بل کمونستانو داسې اصلاحاتو او فرمانونو ته لاس واچو، چې افغاني ټولنه ورته تياره نه وه، دغه د دم او تعويذ او کودې، پير او مولا په ټولنه کښې دوئ کمونيزم راوستو، چې د بې عقلۍ او بيوقوفۍ حد وُ، چونکه مغرب خو دې ته ناست وُ چې

افغاني کمونستان غلطي وکړي، چې دوئ بیا ځنې فایده واخلي. هغه غلطي دوئ په اوله ورځ وکړه. چې د خلقیانو او پرچمیانو په تقریر یو بل سره وډبول، او بله غلطي دوئ دغه وکړه چې، دوئ دافغانستان جهنډه بدله کړه، چې د دې باندې خو بیوقوف نه بیوقوف افغان هم په دې پوهیده، مولیان، مغرب او پاکستاني پنجابي دکړائي ټټوکانو ورته تیار ناست وو، د جهنډې د بدلولو سره یې د سور کفر پروپیګنډه شروع کړه او مثال یې دغه ورکوو، چې دوئ زمونږه اسلامي افغاني جهنډه په کمونستي سره بدله کړه، چې دغه دروسیانو نشان دے، روس خور، مور نه پیژني، اوس دوئ نور داسې حرکتونه وکړل چې، افغان اولس یې ځپله ځان ته باغي کړو، د ښځو د تعلیم دپاره دوئ مرکزونه خلاص کړل، افغانستان کښې سړو سبق نه وئیلو، دوئ سړئ په ځائے پریښودل، ښځو ته یې سبق شروع کړو، چې ناواده کړیو ماسترانو د دې نه فائده وچته کړه، د خپلو پیغلو شاګردانو سره چا په مرضۍ او چا په زور، ودونه وکړل، چې د دې سره ټول وطن کښې یو غلط فهمي خوره شوه، مولایانو پروپیګنډه شروع کړه چې دوئ د سبق په پلمه ښځې ځان ته ګوري، بس د دې نه

ددوی خلاف یو عام نفرت پیدا شو، ا مغرب ورته لمن وهله، او بل دوی کور دننه بزکشی سره شروع کړه، خلقیانو اول سر کښې پرچمیانو وشړل، د حکمکو اصلاحات یې شروع کړل، دا سې اصلاحات یې شروع کړل چې د خیر په ځای شر ځنې جوړ شو، دوی د حکمکو دویشلو نه زیات دې کښې دلچسپي درلوده، چې د ځمکې خاوندان سپک کړي، کنځلې ورته وکړي، د روائیتي کموښتي بیوقوفي ثبوت دوی هر ځای ورکړو، او بل دوی بې گناه خلق نیولو، او مړکولو باندې پیل وکړو، زه په خپله دسمبر ۱۹۷۸ کښې په کابل کښې داجمل ختک لیدو ته د جرمني نه ورغلې وم، یو ماښام دسپین بولدک او قندهار دسیمي خلک پښتانه، اشکزي راغلل، د ختک صاحب نه یې د مدد سوال وکړو، چې زمونږه خپلوان حکومت نیولي دي، او کابل کښې یې زنداني کړي دي، تاسو دپښتنو مشر یې، د خدای دپاره دوی بې گناه دي، راخلاص یې کړه، دختک پوزشن خو ماته معلوم و، چې خلقي حکومت یې یوه خبره هم نه منله، خو دوی ته یې تسلي ورکړه چې، دے به هر ممکن کوښښ کوي، چې دوی راخلاص کړي، بله ورځ اجمل صاحب وویل، چې حکومت هغه کسان ټول مړه کړي دي، او زه نه غواړم چې دوی ځما دخولې نه خبر شي.

دغه شان په کیرالهٔ کښې دوئ پوره کلئ میرات کړو، دوئ هرچا ته لاس واچوو، خلک بې په زور ورته پرا ریان کړل، که په دوئ کښې لږ هم سیاست یا برداشت وے، نو د مغرب دپاره به ډېره ګرانه وے، چې د دوئ خلاف یې په دې پیمانه اولس راپاروے وائ، بیا د تره کي او آمین بزګښې نور هم حالات خراب کړل، او بل په ایران کښې داسلامي انقلاب په وجه امریکې هرڅه بائیللي وو، نو امریکي غوښتل چې په افغانستان کښې نوې تبدیلي د دوئ په حق کښې راشي، روسان وارخطا شول، چې څه وکړي، د دوئ دپاره اخري امید ببرک کارمل وُ، چې دوئ سره په مسکو کښې ناست وُ، چې په حقیقت، کښې د روسانو داعتماد خلک صرف پرچمیان وُو، خلقیان، دوئ ته مثل خو مجبوري وه، داځکه چې پرچمیان زیاتره پارسي بان وو، او د ایراني کمونسټ ګوند تودے سره دوئ ډېرې نږدې رابطې درلودلې، د تودې ګوند کمونستان د مصادق دغوبل نه پس ۱۹۵۳ کښې د شاه ایران د پولیسو نه یورپي ملکونو ته تښتید لي وُ، نو د دوئ په هرملک کښې رابطې جوړې وې، د روس کمونسټ ګوند سره د دوئ مضبوطې رابطې وې، چې ایراني اذربائیجان او روسي اذربائیجان په وجه ډېرې ژوندۍ وې، اوبل کابلي۔

تاجکو ازبکو او ترکمنو د روسي تاجکو ازبکو او ترکمنو په
وجه د دوئ دپاره اسانه وه، چې سوویټ یونین کښې ځانونه
اعتباري کړي، او بل دوئ K.G.B سره ګډه کارکولو، چې
ددې تولونه خلقیان.بې برخې وو، د دوئ اکثریت د پښتنو،
او پارسي بانو یعنې پرچمیانو او ایراني توده یانو سوویټ یونین
ګوند ته د فاشیستو په نوم ور پیژندلي وو، د دې زه
یو ژوندے مثال درکوم - ۱۹۷۷ «ESSEN» ښار جرمني
کښې د جرمن کمونسټ ګوند کانګرس وو، نو د دنیا ټولې،
کمونسټ پارټئ ته ور ته دعوت کړې وې، او هر ګوند او
ګروپ خپل خپل ستال لګولے وُ، چې پرچمیانو هم لګولے وُ.
چې خه وخت خلقیان راغلل، نو جرمن کمونسټ ګوند ور ته دستال
لګولو اجازت نه ورکولو، دوئ شور سره جوړ کړو پدې کښې
پرچمیان او ایراني توده یان ور ته یو ځاے شول، دوئ به په
جرمنیانو وشړل، جرمنیانو ور ته وئیل چې تاسو موږ ته پیژنو
په افغانستان کښې موږ صرف پرچمیان پیژنو، دا ځکه چې
مغربي جرمني کمونسټ ګوند د هغې وخت مطابق د مشرقي -
جرمني کمونسټ ګوند تر ځکه لاندې یو ډله ګڼه وه، او
مشرقي جرمني کښې ایراني کمونستان ناست وو، نو دوئ،
پښتانه هر ځاے د پرچمیانو په ملګرتیا غلط معارفي کړي وو،
د روس په سترګو کښې اصلي خلک پرچمیان وو، دروسانو

اول کوښښ وو چې د پرچمیانو په زور خلقیان وباسي، مګر خلقیان په فوجي توګه زورور وو ، آمین دوی وشړل بیا ر وسانو او کابلیانو د آمین او تره کي په مینځ کښې ګونې وهل شروع کړل ، دوی بې هم ستمبر ۱۹۷۹ کښې سرع - وجنګول، مګر دد وی دښمن آمین برے وموند ، او س یو آمین پاتې وو ، چې د ے بغیر د زور نه به بله لاره نه تلو.

بل دا چې د افغانستان حالات داسې جوړ شوي وو، چې خلکو پاکستان او ایران ته منډې شروع کړې وې ، امریکې او مغرب ور ته پاکستاني جنرالان په کرایه اخیستي وو، او بل په یورپ کښې د سویټ یونین سیاست ډیر کمزور ے، شو ے وو ، تر دې وخت پورې سپین او پرتګال د NATO ممبران نه وو ، امریکې او مغربي یورپ والو کوښښ کولو چې چې دوی NATO کښې شامل کړي ، او روس کوښښ وو ، چې دوی د NATO نه بهر وساتي ، د سمبر ۱۹۷۹ کښې د هغې وخت سویت یونین وزیر خارجه ګرومیکو د سپین او پرتګال دوره وکړه ، خو د ے په دې کښې کامیاب نه شو ، چې سپین او پرتګال د بیتو نه بهر وساتي دوی د « NATO » غړي شول، چې دغه په یورپ کښې د سویټ یونین ښکاره ناکامي وه، ما ته ښه یاد دي، چې ۱٦ د سمبر ۱۹۷۹ کښې د روسي وزیر خارجه بونډ مغربي

جرمني پا ئې تخت کښې یو پریس کانفرانس وکړو، ما په خپله
په T.V لیدو، ډېر غُصه وُو، مغرب او خاصکر NATO ته
غوریې ټرې کولې، چې دغه نمونه خبرې د ده د طبیعت،
خلاف وې، گرومیکو ډېر سوړ ډپلومات سړے وُ،
جذ باتو کښې نه راتلو، مگر په دغه ورځ دی ډېر غصه
وُ، نو جرمنۍ باندې ئې خپله ټرا ولگیده، چې ده ولې ځنې
تبصرې کولې، چې اوس به د مشرق او مغرب تعلقات
ډېر خراب شي، داځکه چې یوه خبره نه وه، بلکې
مغربي یورپ ملکونو د امریکې ایټمي میزائیلو لگولو
د روس خلاف اجازت ورکړے وُ، د جرمنیا نوسره
ډار وُ، چې روس بیا چیرته د برلن ناکه بندې ونکړي چې
دوئ ۱۹٤۸ کښې یو ځل کړې وه، د گرومیکو د غورې
ټرې نه خلکو قسما قسم مطلبونه اخیستل، دغه د چا په خوښ
وخیال کښې نه وه چې روسان په افغانستان ور دانگي نو دغه
سپنس ډېر زر ختم شو، روسیانو د امریکې ایراني سفارت خانې کښې
د یرغمالو د موقع نه فائده وچته کړه، هغه د جنرال رابرټ ویناتیک؛
سل کاله پس ثبوت ته ورسیده، ۲۷ دسمبر ۱۹۷۹ موبزه په ربښتیا سره
روسان په کابل افغانستان کښې ولیدل، دوئ افغانستان ته داخل
شول، امین ئې شهید کړو، ببرک ئې په اقتدار راوستو، چې د دې سره
د مشرق او مغرب تعلقات داسې خراب شول، چې حد ئې نه وُ.

# د روسیانو افغانستان ته راتګ په وجه

## د مشرق او مغرب تعلقات

روسانو په افغانستان کښې څپله پهانسي ورته لګه کړه، داځکه چې دوئ افغاني تاریخ نه و لوستے، دوئ د سر په سترګو لوستے و، د عقل په سترګو يې نه وو لوستي، دوئ هغه غلطي وکړه، چې سل کاله څخوا د پرنګي جنرال رابرټ ارزو او ارمان و، افغانانو په معلوم تاریخ کښې چا ته هم سر نه دے ټيټ کړے، د سکندر اعظم نه تر دریم پرنګي افغاني جنګ پورې دوئ خپله آزادي په خپلو وینو ساتلې وه، او س د روس د راتګ سره د دوئ آزادي په خطره کښې ولویده، که څه هم دوئ بار بار ویل، چې حالات ښه شي، مونږه بیرته ځو، مګر په دې خبرو چا اعتبار نه کولو، او بل دامریکې غوا لنګه شوه، روسانو څخپله پداسې لومه کښې ځانونه بنخ کړل، چې دغه امریکې د زړه ارزو او ارمان و، چې دوئ د روس نه د ویتنام بدل واخلي نو د ببرکي بې صبري او د روسانو بیوقوفي داسې حالات،

جوړکړل، چې د مشرق او مغرب تر مینځ دلوئ ټکر خطر جوړ شو، د دویم جنګ عظیم نه پس دغه اول ځل و، چې روسي فوجونه یو اسلامي اوغیرجانبدار هیواد ته داخلیږي.

نو مغربي یورپ باندې ترار ولګیدو او خاصکرپه جرمنیانو، د مغرب پریس او ریډیو او T-V داسې حال جوړ کړے و، چې شپه ورځ بل څه نه وو، افغانستان و، او تر دې خبرې کیدې چې د «NATO» او وارسا پکټ تر مینځ ایټمي جنګ کیږي، چې هغه زمانه کښې جرمني په مغربي او مشرقي تقسیم و، د NATO او وارسا پکټ فوجونه او اسلحې د دوئ په خاوره یوبل ته مخامخ وې، که چیرې ایټمي یا روایتي جنګ کیدے، اول جرمن په کښې دوړه کیده، ډېر جرمنیان نیوزیلینډ او اسټریلیا ته لاړل، هجرت یې وکړو، د دوئ خیال و، چې ایټمي جنګ کیږي نو مونږه به لرې پراته یو. داځکه چې دوئ د دویم جنګ عظیم تباهي لیدلې وې.

نو مغربي سفارت کارو به دغه خبره کوله، چې د روس او کمونیزم خلاف مونږ ته اوس century chance په لاس راغلے دے، دغه مونږه نه ضایع کوو،

برسل بیلجیم NATO هیډ کوارټر کښې سړي راجمع شول د سویټ یونین خلاف یې منصوبې جوړې کړې، چې د دوئ

حجامت په افغانستان کښې کول پکار دي، دوئ ته دوه خطري
په یوه وخت کښې پیښې شوې، یو افغانستان ته د روسانو
راتګ، او بل ایران کښې اسلامي انقلاب چې ضدِ امریکه او
مغرب وُ، نو دوئ د منافقت نعره پورته کړه، افغانستان
کښې اسلام په خطره کښې شو، ایران کښې داسلام نه خطره
شوه، نو دوئ دغه دواړه مسئلې چې یوه دبلې ضد وه
په مخ روانې کړې، د ایران دپاره دوئ صدام حسین
په شا وټپولو، ایران او عراق یې په کوړ کښې سره مشغول
کړل، او دافغانستان او سویټ یونین خلاف یې پاکستان
ورته په کرایه واخیستو، پاکستان یې ورته په فوجي اډه
بدل کړو، د ضیالحق او پاکستاني فوج او سول نوکرشاهي
غوالنګه شوه، نو دوئ I·S·I په ذریعه ورته افغاني
مولاڼې ولې، جوړې کړې، بس څه وو د افغانانو کور
د سوشلزم او سرمایه دارۍ د غوبل مرکز جوړ شو، د
نیټو او وارساپکټ جدید نه جدید آسلحې په افغانانو
استعمال شوې، داسې حال جوړ شو، چې افغانستان په وینو
کښې ډوب شو، دافغانستانا څکه دبا رو دي سرنګونه ړ که،
شوه، ببرک کابل کښې میلې کولې، او مولا ورته په پېښور
کښې مزې کولې، پس کمونستانو پاکه افغانان دکمونیزم تر
نوم لاندې اوړ ته واچول، مولا داسلام په نوم یو مولا-

یا مشهور کمونست په دې جنګ کښې مړه نه شول، دمولایانو دلسو روپو دزکړ نه لګیدو، مګر په افغاني ویښو باندې دتجارت نه پس نن کروړ پتي دي، داسې خټو نه یې وکړل، چې سم په لاره تلاۍ نه شي، دغه حال په کابل کښې د تش په نوم کمو- نستان وو، چې دوئ په بنګلو او غټو، غټو موټرې سره جنګو نه وو، دافغان اولس خیر خوا نه مولا ؤ اونه کمونست یو دامریکې او هغه بل دسویټ یونین ایجنټ ؤ.

نو « NATO دامریکې په مشرکړه ورته صلاح وکړه دوئ خلور « points » پروګرام ورته جوړ کړو.

۱- دوئ به کوښښ کوي چې روس ته افغانستان کښې فوجي ماتې ورکړي، چې په دې باندې پوره باوردوئ په خپله هم نه و.

۲- باید دروس اقتصادي ملا ماته کړي، ولې پدې چې روس فوجي طاقت ؤ، خو اقتصادي نه ؤ.

۳- په دریمه نړۍ کښې به دکمونیزم او روس خلاف دغه خبره کوو، چې ومولیده، چې تاسې وېل چې روس ددریمې نړۍ قدرتي دوست دے، وې ګورئ نن صبا د افغان اولس سره څه کوي.

٤- باید چې موږ د کمونستي بلاک دننه بې چینۍ جوړه کړو، او دوئ ته انساني حقوقو په بنیاد ورته مسائل جوړ-

کړو او خلك ورته ولمسوو.

دوئ دغه څلورواړه مقصدونه مخ په وړاندې بوتلل دروس غټه کمزوري دغه وه، چې دوئ دنیا په دې قانع یعنې مطمئنه نه کړے شوه، چې ددوئ تګ افغانستان ته د وخت ضرورت و. دنیا روس ته د سامراج هیواد په سترګه کتل شروع کړل، د روس د سیاسي پنډتانو خیال و چې افغان اولس به د دومره کلکه مقابله ونه کړي، د مغرب متعلق د دوئ خیال و، چې دوئ د هنګرۍ ۱۹۵۶- او چیکوسلواکیه - ۱۹۶۸ په خیر شور جوړ کړي، قیصه به دو روسره شي هم دغه دواړو ملکونو کښې روس فوجي مداخلت کړے و، او بل د روس سیاسي مشران دومره بوړا کان وو، چې نیم پکښې ړانده وو، د سترګو دیدې نه لګیدو، او نیم پکښې کاڼه وو، خبرې به یې سمې نه اوریدې، نو د افغانستان قسمت د ړندو او کڼو په لاس ورغلو، د روس خلاف چین هم د مغرب ملګرے شو، او بل هند هم د روس په راتګ خوشحاله نه و، خو سفارتي سطحې باندې یې د روس حمایت کولو، خو د ننه یې ورته وئیل، چې دغه دې ښه کار نه دے کړے.

په افغانستان کښې په روسانو هغه حال و شو، چې یو سړي په سین، دریاب، کښې د کمبلې غوندې شئ لیدلے

ؤ، نو ده سین ته ور توپ کړل، چې کمبله و نیسي، دبدمرغی
نه هغه یېږه وه، یېږې سرے ټینګ و نیولو، سړي چغې
جوړې کړے، چې زه خو کمبله پریږدم، خو کمبله مانه پرېږدے
هم دغه چل غربیانو د روسي سره افغانستان کښې وکړو.
دافغانستان په وجه مغربي دنیا د مسکو اولمپیک لوبونه
بائیکاټ وکړو، افغاني ګوریلا ته یې امدادو نه ورسم کړل،
دافغانستان په وجه د شرقي او مغربي جرمن تعلقات ډېر
خراب شول، دا ځکه چې مشرقي ته روس بیړی اچولې وه
او مغربي ته امریکې.
د افغان اولس په جرات باندې پولینډیانو هم زړور
شول، دوئ په ۱۹۸۰ کښې دکمونیستي حکومت خلاف راپورته
شول، د روس او وارسا پکټ دپاره دکور د ننه مسئله جوړه
شوه. خو پولینډي حکومت د دریمې ځل عوندې مارشل لا
ولګوله، او س مغرب روس په هر یو ځائے کښې isolate
کړو، نو ددې سره ددوئ اقتصاد او تجارت ځائے په ځائے
ودریدو، مغرب خفیه جاسوسي ادارو، مشرقي جرمني
چیکوسلواکیه، هنګري، رومانیه او پولینډ کښې ورته ترځکې
لاندې دکمونیزم خلاف مختلف ګروپونه منظم کړل، ریډیائي
او T-V نشریات یې مشرقي یورپ او سویت یونین ته اوږده
کړل، بلکې خپل سویت یونین یعنې روس کښې خلقو دافغانستان

متعلق روسي سياست‌غندلو، دپروفیسر سخاروف غونډې خلق په ډګر راغلل.

اوس دبریژنیف او دده مرکزي کیمټې وارخطا وو، ددې سخت وخت متعلق په بریژنیف پورې یوه ټوکه‌مشهوره ده چې وايي، دبریژنیف یوناڅ وُ، چې دده ویښته به یې جوړول، یوځل ناڅ دافغانستان دمسئلې تپوس ځنې وکړو، چې په افغانستان څه وشول،؟ بریژنیف په دې‌غصه شو، خو څه یې ورته ونه ویل. چې دویم ځل‌بیابریژنیف جنرل سکرتري کمونستي ګوند سویټ یونین راغئ، نوناڅ بیا ترې تپوس وکړو، بریژنیف ډېر په قهر شو، خوخاموش پاتې شو، چې څه کم عقل سړے دے، چې دریم ځل بریژنیف دویښتو جوړولو دپاره راغئ، نوغوښتونه یې ډېر بیدل، چې دغه یې وقوف بیا تپوس ونه کړي، چې ده لا دغه سوچ کولو، ډېر شو ناڅ ځنې تپوس وکړو، بریژنیف خوهسې هم غصه وُ، نوناڅ ته یې په قهر وویل، چې نه څوکئ یې، نه د مرکزي کیمټې غړے یې، نه وزیر یې،او نه دسیاسي دفتر ممبر یې، نودافغانستان دمسئلې سره دستا څه دي،؟ ناڅ ډېر په ساده ژبه ورته وویل: چې صاحبه زما نور کار نشته، خو چې څه وخت زه دستاسو ویښته جوړوم، نوکله نه‌کله د-

ویښتو په جګولو کښې تکلیف وي، نو زه چې دافغانستان
نوم واخلم، نو ستاسو ویښته خپل په خپله ځکه ودریږي
نو زه یې بیا ښه کټ کولای شم».

که څه هم دغه ټوکه ده خو په حقیقت کښې به په-
بریژنیف باندې ددې نه هم ډېر زور ؤ، یورپ کښې سوشل
ډیموکریټ ډېر کمزوري شول. او د کمونیزم سخت -
مخالفې ډلې په قدرت راغلي، دمثال په توګه په مغربي
جرمني کښې اکتوبر ۱۹۸۲ کښې سوشل ډیموکریټ وزیرعظم
هیلموټ شمیت حکومت ختم شو، په ځای یې د C.D.U.
کرسچن ډیموکریټ یونین حکومت د هیلموټ کول ترقیادت
لاندې جوړ شو، چې دوئ سخت ضد کمونیزم وو، امریکې
صدر ریګن انتخابات وګټل، لندن برطانیه کښې ټوري په
قدرت راغلل، ددوئ مشره مارګریټ تیچر وه، او فرانس کښې
قوم پرست میتران صدر شو، نو مغربي دنیا کښې آزادخیالو
انتخابات وبائلل، اوقدامت پسند په اقتدار راغلل، چې ددې
سره د افغانستان متعلق د دوئ سیاست بدل شو، دوئ،
هرڅه ته تیار وو، دوئ په یورپ کښې اټیمي میزائیلو
لګولو باندې پیل وکړو، افغاني جنګ یې تیز کړو، دایران خلاف
یې عراق ته جدید نه جدید اسلحې ورکړې.

دافغانستان جنګ اوس ډائریکټ د C.I.A په لاس

ورغئ، دوئ ٦٠٠ میلونه ډالره هرکال په بنکاره سره دافغانی جنګ دپاره ورکول، هغه دپښتو خوځه حساب نه ؤ، فرانس برطانیه مغربي جرمني، او نور مغربي یورپ امدادونه په دپاسه وو.

عربو شیخانو د ډالرو بوجې یوړې په مولایانو کښې یې تقسیمولې، نو د دې سره افغانانو دافغانستان نه ملډې شروع کړې، چې ځینو ته په رښتیا تکلیف ؤ، اوزیات تعداد په دولت پسې، اسلحې پسې پیښور پښتونخوا ته ته راکوز شول، لاندې پاکستاني مهاجر کمشنري، او فوجي او سولی بیوکراسی، دواړه لاسونه په غوړو کښې وو، دوئ دافغاني مولایانو په شمول او ملګرتیا دافغانانو په وینو تجارت شروع کړو، کابل کښې کمونستانو روسي کاو یا خوړله، دپاکستاني افسرانو دشوکې دغه حال ؤ چې یو ځل ارباب دوست محمد په خپله ویل، چې دجرمني صوبه باور یا وزیر علی ستراوس « straus » راغلی ؤ، نو ده په ناصر باغ کښې افغانانو ته تقریر کولو، او مونږه د مهاجرو افسران ټول ورسره ناست وو، چې دې کښې یو افغان په جلسه کښې راپورته شو په پښتو لګیا شو « straus » ته یې ویل، چې صاحبه چې تاسو کوم امدادونه مونږ ته راکوئ، هغه خو ټول دوئ،

يعني پاکستاني افسرانو ګ، خوړل، موږ ته هيڅ نه راکوي

ارباب دوست محمد ويل، چې موږ باندې بزار ولګيدو،

ما ته بريکي صاحب وويل، چې شابس ترجمه يې وکړه، ارباب

صاحب ويل، چې ما straus ته ترجمه کړه خو غلطه، ماورته

وويل، چې دے وائي چې موږ ته اسلحه پکار ده اسلحه

په straus حقيقت پوه نه شو، دوست محمد وويل، چې موږ

به بيا داکوښښ کولو چې دافغاني مهاجرو او خارجي ميلمنو تر

منځ ډائريکټ رابطه رانه شي، تش زموږ ايجنټان افغان

مشران به مو ورته مخ ته کول، دضياالحق د تن ورزوئ

ګ، چې وحيد نوم يې ګ، بن Boon مغربي جرمني کښې

سفير ګ، دافغانستان په نوم يې دومره دولت لوټ کړو

چې روسته يې دنوکرۍ نه استعفى ورکړه، بيا يې ځان ته

کامياب صنعت کار ليکلو، دغه نمونه کامياب صنعت کار بيا-

« Busenessmen » ډير وو، په دې پټولو باندې

لوئ بابا باچا خان ډير غمجن ګ، داځکه چې دے واحد

شخصيت ګ، چې هغه وخت هم په دې لوبه پوهيده، ده

به په ډاګه وئيل، چې دغه اسلامي جنګ يا جهاد نه دے،

بلکې دامريکې او روس خپل جنګ دے، خو زموږ ه په

خاوره يې کوي، چې د دوئ په مينځ کښې روغه وشوه نو بيا

جهاد نه شته، او نه اسلام. په دې باندې ډير مفاد پرستو

دبابا مخالفت کولو، خو وروستۍ ثابته شوه چې باچاخان،
تیز دیله لوړ لیري لګیدو، نن صبا موږ ویږو وینوچې مولایان
څه کوي، هغه اسلام اوجها دڅه شو، دوئ دکرسۍ او
اقتدار دپاره دسپو په څیر دیوبل لاندې وتي دي، کابل
یې لوټي لوټي کړو، په مکه کښې یې قسمونه سره وکړل، د
مسجد نبوي قدري یې وکړه، د زم زم په اوبو یې ولمبول
خو چې کابل ته راغلل بیا یې دسره جنګ شروع کړو، نوددې نه
اندازه لګي، چې دوئ اسلام ته څومره عقیده لري، د دوئ
اسلام دغه دے چې دوئ د اقتدار او دولت خاوندان وي،
نو اسلام هم آباد او افغانستان هم.

او افغاني خاوره د NATO او وارسا پکټ د جدید وسلو
د آزمائش میدان جوړ شوے ؤ، سویت یونین مغرب پداسې
لومه کښې ګیر کړے ؤ، چې روغ وتلے یې ګران ؤو، دافغا-
نستان په سر دمشرق او مغرب هغه پخوانے دسوړ جنګ
دوخت د ټکر سیاست روان شو، د امریکې صدر جیمي کارټر
دروس کمونسټ ګوند جنرل سکرټري بریژنیف ته یولوئ
دروغژن سړے ووئیلو، دمشرق او مغرب اعتماد ختم شو،
په ۱۹۸۲ کښې دوئ اټمي مزائیل د روس خلاف یورپ کښې
لګول شروع کړل، چې د دې سره حالات دومره خراب
شول، چې فوجي خلقو په محدوده پیمانه د اټمي جنګ -

خبري شروع کړې، د امريکې نوے صدر ريګن دبرطانيه وزير عظيمه تهيچر او د مغربي جرمني چانسلر کول، دريواړو د تکراو تصادم سياست ته اوليت ورکول شروع کړل، نو په جرمني کښې په ۱۹۸۲ «peoce mave ment» شروع شو، نو دوئ به يوه سندره ويئله، چې د هغې اوله مصره يا ټپه داسې وه:

«Besuchen sie Europa so lange es noch stet»

ترجمه: «يعنې د يورپ دوره يا کتنه اوس وکړے ترڅو پورې چې سلامت وی».

نو د دې ټولو حالاتو نه پس جرمن اولس ډېر په عذاب وو، هغه که د مشرق او يا مغرب، داځکه که چيري اټمي يا روايتي جنګ کيدے، نو اول دوئ پکښې دوړه کيدل، حالات داسې روان وو، چې د يکښې دبريژنيف دافغانستان دمسئلې په وجه زړه نيل شو، او په ستي مرګ مړ شو. او داغول پې اندروپوف ته پرېښودل.

نوے روسي مشر اندروپوف کوښښ کولو، چې دافغا- نستان مسله او د روس اقتصادي زوال مخه ونيسي او حل يې کړي، خو دے هم زر مړ شو، نو روسانو يو بل زوړ ګيډر راوخکښې کړو، يعنې چيرنينکو، چې دغه به درې مياشتې ورکځ وُ، چير ته به په هسپتال کښې بيمار پروت وُ، نو مغربي

اخبارو به شور جوړ کړو چې مړ شو، نو عاجز به بیا په زور درې خلور ورځې په دفتر کښې کښېنولے شو، چې دخلق وشک ورک کړي، او ورنه جوړتیا بې کړي چې کیدړ لا ژوندے دے بیا به روغتون «هسپتال» کښې پروت وُ، ده هم ډیره زرسا ورکړه، دافغانستان جنګ او سویټ اقتصادي مسئلې داسې حد ته رسیدلې وې، چې دغه درونډو اوکنو دوس خبرې نه وې، د روسي قیادت دغه درنډو اوکنو دله ورکه شوه دوئ یو په بل پسې مړه شول. اخر د روس افغانستان بلکې دټولې نړۍ خوش قسمتي وه، چې په ۱۹۸۵ کښې ځوان ګورباچوف سویټ یونین کښې په قدرت راغئ، نو یو داسې میراث ورته پاتې وُ، چې روس خپل اقتصادي بحران کښې وُ، افغان اولس او روسي ځوان عسکر په افغانستان کښې مړه کیدل، د افغانستان دیرغل سره روس اوکمونیزم هغه اعتبار دلاسه ورکړو، چې کوم دوئ ښخوا لرلو، اودافغانستان په وجه روس، فوجي، سیاسي او اقتصادي تو ګه روان وُ نتباه کیدو، نو اول یې دبریژنیف د وخت افغاني شاه شجاع ببرک کارمل لرې کړو، او افغانستان کښې یې نوے قیادت راوستو، چې هغه ډاکټر نجیب الله وُ چې ځوان پوه او پیاوړے سړے وُ، نو ددواړو په همت او خان عبدلولي خان د سیاست په برکت فضا، دې ته تیاره شوه، چې روسي.

عسکر دافغانستان نه وباسي، دوئ ۲۲ فروري ۱۹۸۹ کښې اخيري سپاهي هم ددوستۍ په پُل امو دريا باندې پورېوتو اخيري روسي جنرال ګراموف بيا په خټو ونه کتل.

اوس د مشرق اومغرب تعلقات رو رو ښه کيدل، داځکه چې مغرب خپل کار کړے وُ، په افغانستان کښې دوئ روسي نظام يعنې سوشلزم .بې عزته کړو، ايراني انقلاب يې د عراق په ذريعه وټکولو، چې روستو هم دافغاني جنګ په وجه کمونيزم ختم شو، د سويټ يونين وجود ړنګ شو، مشرقي يورپ ټول ملکونه دافغاني ماشومانو دوينو په - برکت آزاد شول، د سويټ يونين د جوسې نه يولس نوي ملکونه جوړ شول، (۱) يوکرين (۲)، سپين روس(۳) مالدويا (٤) جارجيا (۵) ارمنيا، (۶) اذربائي جان ۷- ترکستان ۸- ازبکستان، (۹)، قرغزستان، (۱۰)، قازقستان (۱۱) اوروس پخپله.

، مګر دغه ټول حالات باچا خان ونه ليدل، د دے ځنې ځنکښې لاړوکاش چې ده ليدلي واے.

# جولائی ۱۹۸۱ کښې خما د میرمنې د باچاخان سره کابل کښې ملاقات

زه او میرمن مې جولائۍ ۱۹۸۷ کښې سحر وختي اسلام ـ آباد کښې افغان سفارت خانې ته ورغلو، چې ویزه واخلو دغه داسې سخت وخت و چې افغانستان کښې روسان ناست وو، او پاکستان کښې ورته ټوله مغربي نړۍ ناسته وه، د هغې وخت مطابق پېښور، اسلام آباد د بین الاقوامي جاسوسۍ اډې جوړې وې، په ټوله دنیا کښې په یو ښار کښې په هغې وخت کښې دومره جاسوسي ایجنټان نه وو، لکه صرف پېښور کښې چې وو، خو دوئ په قسما قسم نومونو یادې وخت تیرولو، جلال آباد ورته د مشرقي بلاک د جاسوسۍ اډه وه، یعنې د پښتونخاوره د مشرق او مغرب د فوجي لوبې میدان گرځیدلے و، چې هره ورځ به پاکستان کښې بمونه غلا ـ صیدل، او افغانستان حکومت به په کلیو بمباري کوله، ـ چې مونږه سفارت خانې ته ورغلو، دوه درې پرنگیان او یورپیان وو، هغوئ راته ووئیل، چې مونږه درې درې ـ

میاشتې انتظار کوو، څوک ویزه نه راکوي، بس موږ هم ناامیده شو، زما د میرمنې دغه ارمان و چې باچاخان وګوري، نو ما ته چا وویل، چې پېښور کښې کونسلر هم ویزه ورکوي، خو پېښور کښې ډېره سخته وه، د "CID" والو بهر تمبو وهلي وُ څوک یې د ننه نه پرېښودل، خو یو تاڼیدار وهغه ته ما خبره وکړه، چې زمونږ تګ کابل ته ډېر ضروري دے، نو هغه راته وویل، چې قاضي شمس الدین چې د C.I.D لوئ افسر دے، که هغه اجازت درکړي، نو زمونږ څه اعتراض نه شته، د قاضي صاحب زوم قاضي صلاح الدین زما ملګرے و، د هغوئ په ذریعه قاضي شمس الدین زمونږ سره ډېر ښه سلوک وکړو، او بل قاضي صاحب په ترکیه کښې څه افسر پاتې شوے وُ، نو ډېر تنګ نظر افسر نه وُ، د نیا یې لیدلې وه، او بل زه په پېښور کښې خبر شوم چې افغان کونسلر مومند دے، سرفراز نوم یې دے، دغه ما پیژندو، ما په کابل کښې ورسره ملاقات شوے و، خو هغه وخت لا ستو ږ نې وُ.

سحر چې موږ یونیورسټي ټاون پېښور ته لاړو پولیسوالو د ننه د تلو اجازت راکړو نو د باهر پولیس والو موږ ته برنډ برنډ کتل، داځکه چې دوئ د کونسل خانې سخت حفاظت کولو، چې څوک هلته کونسلر سره نه کړي.

موبږ دکونسل خانې لاندې چهت کښې بابو ته پاسپورټونه ورکړل، هغه زر پاس دویم چهته کښې کونسلر ته یوړل، سرفراز خان مامورته وئیلي وو، چې دوئ زه پیژنم په منډه یې پاس راوله، پاس چې موږ لاړو سرفراز خان مومند ډېر په عزت او قدر سره ملوځ شو، صرف یوټیپ. ریکارډ ورسره پروت و، میوزک یې اوریدو، ماته یې ووئیل، چې زما نوم دکونسلر دے، خو په حقیقت کښې زه قیدي یم بهر نشم کرځیدے، بس دلته څوک چې راشي، زه څه ګپ شپ ورسره ولګوم، ګني ټوله ورځ بس دغه ټیپ غږوم، یا اخبار یاکتاب لولم، موږ ډېر ور سره معطل شوو، نو بهر دپولیس والا وارخطا وو چې دغه څوک دي، چې کونسلر په خپله ځان ته وغوښتل، دوئ ته څه پته وه چې زه زوړ ګرګ CID وم.

بس موږ ته یې ویزې راکړې او زباني یې یو څو خبرې راته وکړې، چې زه یې په کابل کښې ددوئ په کور کښې وکړم، موږ یې رخصت کړو، بهر دC.I.D والا په منډه لاړو، د پولیس افسر ته یې ووئیل، چې دے دکونسلر سره پاس ناست و، هغه ورته ووئیل چې دغه دقاضي صاحب میلمه دے. بس دغه شان موږ ه د قاضي صاحب دزوم په موټر کښې ټیکسلا ته راغلو، دلته موشپه وکړه، د

دتیکسلی میوزیم مو وکتلو، ما خو مځکښې هم خوځوځله
لیدلے وُ، خو زما د میرمنې دپاره نوے شئ وُ، داځکه چې
جرمنیان د پخواني تهذیب بنارونو دکتو ډیر شوقیان وي،
ما ته قاضي صاحب ووئیل، چې که چیرې اسلام آباد هوائي
اډه باندې پولیس څه ووئیل، نوځما نوم ورته اخله۔
مونږ اوله ورځ د اسلام آباد نه سواره شوو، نو
کرمي هم وه، ما ووئیل، چې شکر دے یخ کابل ته به ورسو
مګر چې په تورخم مخوا وشا کښې زمونږ جهاز ورسیدو یو څټه
پېچکونړ کړو، وئیلي یې چې کابل کښې موسم خراب دے، بیا
یې راولپنډۍ ته راوړو، بل سحر چې بیا پورته شوو، نو۔
دعاګانې موکولې، چې دے ځل خو مو په خیر ورسوي،
چې په طورخم ورتیر شوو، جهاز مخ په وړاندې روان
وو، بس زه پوه شوم چې دے ځل لاړو، دې کښې پائیلټ ووئیل
چې افغاني خاورې ته داخل شوو، د کابل موسم داسې
دے چې د کابل په هوائي اډه کوز شوو، نو د پاسپورټ
قطار کښې ودریدو، د افغاني پولیسو رویه ډیره ښه وه،
د پاکستاني پولیسو متعلق ما ته مې میرمنې وئیل، چې داسې
مُردار او خیرن پولیس ما نه دي لیدلي، چې چا هم غابنونه
نه وو صفا کړي، خو افغاني پولیس ډیر سمارټ او civilise
وُو، کښې پکار خو دغه وُ، چې زمونږ نه کابل کښې ډیر ځ،

پوښتنې شوے وے، دا ځکه چې افغانستان کښې جنګ وُ،
مګر د دې باوجود هم دوئ ډېر په سرېتوب وو، ځما د
میرمنې سره د باچاخان کتاب وُ چې « D.G.Tendulkar »
ورې. جي. ټنډلکار په انګریزي لیکلے دے، یو افغاني پولیس
جینیي افسر ځینې ولیدو، نو ډېر په حیرانتیا کښې په انګریزۍ
کښې ورته وئیل، چې دغه پیژنې؟ دې ورته ووئیل: چې
دغه ځما سخر دے، کابلے وارخطا شو، بیا یې ورته ووئیل:
چې زما خاوند پښتون دے، او باچا خان د ټولو پښتنو بابا
دے، نو ځما سخر شو، هغې پولیسې ورته ووئیل، چې بس ته ځما
خور شوې، پاسپورټ نه یې د سړ و نه کتل، عسکر ته یې ووئیل
چې د دوئ بکسونه ټیکسي ته یوسه، ما ته یې ووئیل، چې څه تکلیف
پېښیږي نو ځما د ټیلفون دے، هو نړه یې شکریه اداکړه.
هو نړه شهرونو کښې معطل شو اول اجمل خټک ته ورغلو
بله ورځ سحر باچاخان ته ورغلو، باچاخان وزیر اکبر خان
مینه کښې د جنرال عارف خان کور کښې وُ، ځما سره MOVI کمره
وه خو هغه وخت ٨ « super » کمره وه، د دې فلم وخت صرف
څلور مینټه وو، او بل یې آواز نه نیولو، په هغه وخت کښې د
ویډیو کیمرې عام نه وې.
نو باچا خان چې زه ولیدم ډېر خوشحاله شو ما معافي
ځینې وغوښته، چې ځما میرمن جرمني ده، د دې ډېر

خواهش وُ چې تاسو وګوري، بیا ما د دوئ په مینځ کښې تر-
جماني شروع کړه، تقریباً دوه ګهنټې به دوئ دیوبل سره
خبرې کړې وې، باچاخان د پښتنو تاریخ د خدائي خدمتګار تحریک بنسټ او
تاریخ ټول ورته بیان کړو دا څکه چې څما میرمنې ځینې دغه
تپوسونه کول، او باچاخان څنې د جرمني د حالاتو تپوسونه
وکړل، او دې تفصیلاً ځوابونه ورکړل، یوځل داسې چېل،
شو چې باچاخان ته ما په جرمني کښې خبره وکړه او میرمنې ته
مې په پښتو کښې، نو دباچاخان په شونډو مُسکا راغله،
بیا مو د باچاخان فلم جوړ کړو، خو افسوس چې خبرې
یې نشته، تش ژوندے وجودیې دے، دغه فلم په کورکښې
موږه د تبرک په څیر ساتو، خو صرف څلور مینټه دے،
خو ښه په دې دے، چې باچاخان په خپله روان دے، د-
رواني کرسۍ یا سړی امداد نشته، بیا چې څومره کابل کښې
وُو د بابا دیدن ته به ورتلو.،
یوه ورځ موږه د بادبا سره ناست وو، چې دیکښې
نوراحمد نور راغئ، ورپسې د څه وخت نه پس ډاکټر نجیب
راغئ، چې هغه وخت د خاد مشر و، نو څما د میرمنې نه
یې دباچاخان په مخکښې پوښتنه وکړه چې جرمنیان د
ثور انقلاب متعلق څه وایي؟ دې ځواب ورکړو، چې
اول سړ کښې چې تره کی او ببرک چې په راغلي وو، افغانا نوته

په درانه سترګه کتل شول، چې اوس بېرګځ دروسانو په ملګرتیا راغځ نو مغرب ـ ـ څخالف دے، عجیب ورته وویل، چې حالات بنه شي نو روسان به بیا واپس ځي، زما میرمنې ورته وویل، چې دوئ یو ځل میلمانه شي، نو زر نه ځي، مونږ ته تقریباً ددویم جنګځ عظیم نه پس مشرقي جرمني کښې ناست دي، د واپس تګځ بیټ ـې نشته، چې داسې نه وي چې افغانستان کښې ددوئ پنډغولې اوبږ د نه شي، نور احمد نور د پرډیپلوماټ نه ؤ هغه ورته وویل، چې دمشرقي جرمني جرمنیان بنه خلکځ دي، د مغربي والو تربیت امریکنیانو کړے دے، دغه خبرې کېدې چې دې مینځ کښې باچاخان وویل، چې دوئ خو په غټو موټرو جنګځ دي، باچاخان وویل چې خلق وائي چې لینن انقلاب وکړو، نوچا ورته درې کمبلې راوړې وې ده ورته وئیلي وو، چې دسائبریا خلکو ته کمبلې ملؤ شوي دي، هغې ورته وئیلي وو، چې نه، لینن ورته وئیلي ووچې اول دهغوئ تپوس وکړه، انقلاب داسې وي، دلته دوئ په ټکلو اوموټرو سره جنګونه کوي، وطن ـې لتاړ کړو، د روس او امریکې د مقابلې میدان ـې افغانستان جوړ کړو، وئیلې ـې چې ماڅوکځ نه پرېږدي، چې روسانو ته سمه خبره وکړم، ما ترهکي ته هم وئیلي وو، چې انقلاب مه وکړو، خو اوس ـې اوساتځ هم، خلکو ته لاړ شځ، پوه ـې کړځ چې دغه انقلاب،

داسلام خلاف نه دے، دا ستاسو دپاره دے، دوئ داسې
ونه کړل، دښمن ورته اغزي وکړل، نن دغه حال دے، په
دې کښې نجیب هوښیارو غلے ناست وُ. مګر نوراحمدنور د
ناعلان شوي جنګ خبره وکړه، باچاخان ورته وویل چې
تاسو بل څه زده کړي دي، اوکه دغه یوه خبره) په دې جنګ
کښې هم دستاسو ګناه هم شته، چې تره کی دې خلقو ته نه لاړ،
او نن دغه حال دے. چې دښمن د رته خپل خلق پارولي دي،
نوراحمد نور کوښښ وکړو چې څه ووائي، چې ګني تره کی
خو خلقی وو، او موږه ګټې پرچمیان یو، خو باچاخان ورته
ووئيل چې ټول یو شئ يئ. د خلقو په چل نه پوهیږئ،
د خدای خدمتګارو ټول عمر سر جهنډه وه او سرې جامې
خو پرنګي ماته خلق بلواه نه کړاے شول، داځکه چې ماخلک
پوه کړي وو، او ستاسو دطوطیانو غوندې خبرې زده کړي
دي، خلقو ته دسره لاړ نه يئ، او نه يې په چل پوهیږئ، سم
دم افغانستان مو خراب تراب کړو، پس دغه یوه خبره مو
زده کړې ده چې استعمار - استعمار، په دې کار نه کیږي
مولاهم داسلام دپاره جنګ نه کوي نن د امریکې په وینا
جنګ کوي، او تاسو د روسانو په وینا. چې نجیب پوه
شو چې باچاخان اوس نور غریږي، ما ته یې سترګه ووهله
لاړو وروسته نور احمدنور هم لاړو، بیا باچاخان موږ

ته ووئیل چې دغه خبره دې دوئ هره ورځ دلته کوي، خپل قصور ته نه ګوري، پښتون یې تباه کړو. باچا خان ډېرغمجن وُ، ما ته هې میرمنې ووئیل چې موضوع ځینې بدله کړه، زما میرمنې ځینې د عدم تشدد په بنسټه وکړه، نو باچاخان بیا په تفصیل سره ورته بیان کړه، چې عدم تشدد په تشدد نه مشکل کار دے، عدم تشدد مینه او جرأت پیدا کوي، تشدد نفرت او ویره پیدا کوي، ځما میرمنې ورته ووئیل، چې نن صبا جرمني کښې یو ګوند دے، چې شین ګوند ورته وائي، دوئ د چاپیریال د صفا ساتلو د پاره هلې ځلې کوي، د دوئ فلسفه هم عدم تشدد ده او ستاسو او ګاندهي جي په لار روان دی، بیا باچاخان ورته ووئیل، چې که نن صبا اټمي تشدد وشي نو د انسان نسل به تباه شي. اټم بم دا نه پیژني چې ته یهودي یې، که ته مسلمان یې او که هندو یا عیسائي یې، روس او امریکې ترې په ټولو نه نن صبا ضرورت دے، په دې چې بني آدم تشدد پرېږدي، د عدم تشدد په لاره خپلې مسئلې حل کوي، ما ټول عمر د عدم تشدد پرچار کړے دے، نن وینې چې زمونږ په خاوره څومره تشدد کیږي، دغه په جرمني کښې خلقو ته وښایه، چې نن په پښتون کوم ظلم کیږي، بس تر ناوخته پورې ورسره ناست وو، بیا ځنې رخصت شو، ولې په دې چې سحر وختي جرمني ته پرواز وُه

ما ته مې ميرمنې وو ويل، چې داسې بيدارې او ژوند کړه ستړکې ما د چا نه دي ليدلې په دې عمر کښې هم ډېر خبر د ماغ لري، ګنې د دې د عمر خلق پوزې هم نشي پاکولې، وويل يې چې که چيرې مخ يې پټ کړې صرف سترګې يې چا ته ښکاره کړې، نو سړے به هيڅ کله هم داسې نه وائي، چې دغه د دومره عمر سړے دے، دوئ به وائي چې دغه ديرش کلن سړے دے.

زما ميرمنې ورته وويل، چې که جرمنې ته راغلئ، زه به دې خدمت کوم، باچا خان ډېر خوشحاله شو، د دې په سر يې لاس راښکه.

زما ميرمنې څنې پوښتنه وکړه، چې خداي خدمتګاره کښې ښځې ته هم پام شوے وُ؟ باچا خان ډېر تفصيلاً ځواب ورکړو، او ورته يې وويل چې ښځه او نر دګاډي دوه پائې دي، چې ژوند په روان دے.

موږ ته لانديې نور لالې وِلاړ وُ، نور لالې د اجمل صاحب سره کابل ته تللے وُ، هغه زما ميرمنې ته وويل چې په جرمنيانو کښې يو نر سړے وُ، چې هغه هټلر وو، د جرمنيانو نوے نسل د نازيانو نه ډېر نفرت کوي، خو ما پوهه کړې وه، چې زموږه خلک اوس هم هټلر او جنرال رومېل يا دوي، بيا ما د اجمل صاحب او نور لالي قلم جوړ کړو. د شپې لخوا موږه

داجمل صاحب میلمانه وُو. ماښام زما او د صوفي جمعه خان،
په مینځ کښې تکرار هم راغئ خبرې مو په دې کړې شوې
چې ده وئیل چې بهټو فاشیسټ نه وُ، ما ورته ووئیل، چې
د بهټو پلار هم فاشیسټ وُ، نن چې اجمل صاحب کابل کښې
مهاجر دے، دغه خو د بهټو تکو نه دي، او ته چې دلته
د افغانانو وریجې خورې دغه هم د بهټو برکت دے، زمونږ
د دوه صوبائي حکومتونه یې مات کړل، د N.A.P مشران یې په
زهرو باندې حیدرآباد کښې ووژل، خو خدای دے مخکښې
کړو، نو ته وایې چې فاشیسټ نه وُ. نو دیکښې نورلالي
را توپ کړو، چې فاشیسټ څه شئ وي؟ اجمل صاحب موو
جود نه وُ، صوفي جمعه خان په پښور اینجینرنګ کالج کښې
د انګریزی استاد معلم وُ، نو چې ببرک راغلئ وُ، نو دے
یې د انګریزی ژبې ترجمان وُ، نو په دې ځنې ځان
او جهان ورکئ وو، د ببرک سره د ده هم زوال وُ شو.
نیاز مومند زما پره وکړه، صوفی جمعه خان ته یې ووئیل
چې بهټو غټ فاشیسټ وُ.

صوفی یې څکه صفائي کوله، چې د بهټو زامن شاه نواز
او مرتضی او نور پیپلیان د ضیاالحق نه کابل ته راتښتیدلي وو،
نو د صوفي نوې یارانې وي.

مونږ ه بیا نیاز مومند چې دے هم ګوند کښې لوئ افسر

وُ په خپل موټر کښې د شپې ناوخته شهرنو ته راورو.

سحر په اريا بيا افغان ائيرلاين کښې مونږه تاشقند مسکو په لاره فرانکفورت ته مغربي جرمني ته لاړو په جهاز کښې ډېر افغانان وو، ترمسکو پورې بالکل چوپ ناست وو، چې جهاز د مسکو نه پورته شو، نو دلته چا پښتو شروع کړه چا فارسي، يو پښتون هلك وُ هغې راته وويل چې زه د عسکرۍ نه جرمني ته تښتم، خداى خبر چې رښتيا يې ويل او که دروغ ..

دغه شان زما د ميرمنې ارمان پوره شو، باچاخان يې وليدو، او س کله نه کله فلم ګورې چې د باچاخان سر ښخنګ په ښخنګ روانه ده.

# دلوی باباسره په آخیری ملاقات

## (۱۹۸۷ ع)

زه مارچ ۱۹۸۷ کښې دجرمني نه وطن ته لاړم. اوپه دې نیت لاړم، چې دباچاخان په ښه ډېر فوټوګان اخلم، ښه ډېر فلمونه چې له ځان سره واخیستل او ښه مزیداره جاپانه کیمره، زه دوزیرستان نه څکښې اول پېښور ته لاړم، داځکه چې سیاسي وطن خو زما پېښور ؤ، په وزیرستان کښې زماد طبعیت څوک نه وو، زما ټول سیاسي ملګري او مشران په پېښور کښې وو، نو چې ته به ښه په پېښور کښې وګرځیدم بیا به کلي ته تلم، اوس باچاخان ولي باغ چارسده کښې ؤ، دو یزې ضرورت ورته نه ؤ، ځما سره خیال اکبر اپریدی او دده کشر ورور ضیبت الله خان هم وو، موږ اول دولي بابا سره ولیدل، ډېر خوشحال شو، باچاخان دجرې په چمن کښې په کټ وییده ؤ، د سوري دپاره یې یوکټ په دروالی ؤ، او یو بوډا شان ته سرې ورته ولاړ ؤ. په میز یې دوایې پرته وه، اوګینټۍ یعنې ټالې هم وه، مایې اول داسې په ویدو فوټوګان وویستل، مګر په دې کښې څوک میلمانه په زور زور

وغږېدل بابا راوبښ شو ، دغه دکراچۍ پښتانه وو، باباچې زه ولیدم ، نو زه ورغلم ورننوتلم دې یې کړم ، ماځینی تپوسونه وکړل وئیل یې چې ښه یم ، بیا دغه دکراچۍ پښتنو وئیل ، چې زمونږه تصویرونه هم د باچاخان سره واخله ، بس دوئ - بشمول ولي خان د باچا خان دکټ شاته ولاړ وو ، مایئ تصویرونه اخیستل ، د بابا مې هم ښه ډېر تصویرونه واخیستل ، بیا یئ ما ته وئیل ، دغه نور به بیا شي ، بس ما کیمره کښېښوده بابا رانه تپوسونه وکړل ، ده په مرغزو کښې تقریر کړے وُ ، هغه پمفلیټ یې ماته راکړو ، ما ورته ووئیل چې په یو باندې راته د سخط یعنې اټوګرام راکړه ، نه یې راکولو خو دچا ئې څښبلو نه پس به څه سوچ ورغلے وي ، ماته یې ووئیل ، چې خلک زما د د سخط نه غلط کار- ونه اخلي ، بیا یې ماته ووئیل ، چې راکړه ته داسې نه راته ښکاري ماته یې د تقریر په یو پمفلیټ تش (عبدالغفار) ولیکل ، چې دغه ما سره یواځنی د بابا اټوګرام دے ، چې اوس یئ هر هفته کنټرول کوم ، چې رانه ورک نه شي ، دا د بابا پټنګان یې رانه پټ نه کړي ، دا ځکه چې زه یې هم خلکو ته وخت په وخت ورښکاره کوم ، چې زه دومره تبارکي شئ لرم ، او ځکه ځنې زما ملګري ، ټوکې کوي ، چې کور دې پسې تلاشي کوو ، نو چې دوئ لاړ شي زه اول دغه پمفلیټ کنټرول کوم .

خو افسوس باچا خان اوس په خپلو پښو نه شو تلے په روانه

«ګرځنده» کرسۍ کښې به وُ ، مګر په عقل او خبرو کښې یې یوه ذره فرق نه وُ ، ما ورته د جرمنې خبرې وکړې، ده راته غوږ ینولے وُ . بس اوس زه پښتنو ته راغلے وم ، که هره ورځ نه وُ خو دویمه دریمه ورځ به ورتلم یا به هې جلسو کښې لیدو په دې شپو ورځو کښې پښتانه ډېر ګرم وو ، باچاخان وویل چې زه ددوئ جوش وخروش ته وګورم نو ما ته ۱۹۳۰ را یاد شي په شبقدر کښې جلسه وه ، باچاخان ورته راغلے وُ ، ولي خان ، افضل خان او نور مشران هم وو ، ما په دې جلسه کښې د باچاخان نه علاوه ، جلسه کښې ناستو زرو زرو ، خدائي خدمتګارو تصو-یرونه ایستل ، چې دیکښې د پښتون ځلمې یو بنګلي هلک راته وو ئيل ، چې په دې بوډا کا نو څه کوي . ځما تصویر ولې نه اخلې ما ځواب ورکړو چې ته خو لا ځوان یې د غه خلک روان دي نو د دوئ ریکارډ پکار دے . بیا مې د پښتون ځلمې والو ، فوټوګان هم وویستل ، د باچاخان یو بل زوړ ملګرے شاعر په سترګو روندۍ ما یې ډېر تصویرونه واخیستل . ځما خیال دے چې زیارت کل یې نوم وُ ، د چارسدې وُ ، دلته ما د یادداشت د پاره د اسفندیار ولي خان او سنګین ولي خان دواړو ورنو یو ګډ تصویر واخیستو ، چې ډېر ښایسته راغلے وُ ، نو بیا ما غټ کړو ، نسیم بي بي ته مې په تحفه ورکړو ، چې ددې بچي وو « دلته په جلسه کښې ډېر وخلقو خبرې او تقریرونه وکړل هم ښتې

خبره د افغانستان جنګ، د افغانانو بدبختي، او د پښتنو کور د
سویټ یونین او امریکې د پهلوانۍ مرکز باندې خبرې وشوې.
چې دوی یې قسما قسم تحویلونه کول، چې جلسه خلاصه
شوه، نو باچاخان خپل سوزکي وین کښې سوار شوی و.
چې زما نظر په پریوتو خلکو ډېر ګڼ وو، هر چا کوښښ کولو چې
باچاخان ته ورنږدې شي ځما هم دا خیال و، خو ما د خپلې
کیمرې په ذریعه په باچاخان فلمي نږدې کولې، سوزکي کښې مې
ډېر فوټوګان واخیستل، خو کله مې چې فوټوګان صفا کړل، نو
هله ماته پته ولګیده، چې د سوزکي شیشې صفا نه وې، نو دې
سره د باچاخان جامې ډېرې خیرنې ښکارې، خو په څه یې راغونه
نشته، اول سړکښې چې څوک د فوټوګرافۍ نه خبر نه وي، نو
داسې معلومیږي، چې ګنې باچاخان خیرنې جامې اغوستي
دي، مګر چې لږ سرې ورته ځیر شي، بیا پته لګي چې دغه
د شیشې خیرنوالي دے، چونکه شیشې د سوزکي نیمې بندې وې
نو ځکه داسې شوي دي، خو ځما د پاره اهم شی دغه ندے
ځما د پاره تاریخي شی دغه دے چې د باچاخان اخري تصویر
ما دده په سوزکي کښې اخیستے دے، د جلسې نه پس د نیپالول
مشران ولي باغ ته لاړل، چې په هغوی کښې عبدالخالق خان
چې مونږ ورته بچ صاحب وئیلو، حاجي غلام محمد بلوس، فرید
خان هلوقان، افضل خان لالا، لطیف اپریدے، او نور ډېر -

دلته دولي خان بابا کور ولي باغ کښې يوه برنلوه کښې ناست وو.
چې جالي نژې تاوه وه چې څه وخت نوکر چاۍ راوړو نو موږه
ډېر وو ، او زه او فريد طوفان پکښې کښان وو ، نو موږ هم
د نوکر سره امداد کولو شروع وکړه ، خو زه ولي خان بابا منع
کړم ، چې ته خو لا ميلمه يې ، روستو جج صاحب ځان سره توکي
کولې ، چې جرمني کښې راته واده وکړه . چې پاتې ژوندې په
ارام تيرشي ، دغه خويې توکې کولې مګر ماته پته نه وه چې
دے جج صاحب کينسر زخمي دے ، خو ډېر توکي سړے وو ،او
ډېره مطالعه يې درلودله ، د هرچا سره يې آزادي نه کوله
ډېر ښاسته سړے وو ، د بابو خيلو مردان وو .

دلته ما او افضل خان لالا شپه وکړه ، افضل خان لالاما
ته ويئل ، چې دغه د ګلالي کوټه ده ، په دې شپو ورځو کښې
ګلالۍ انګليند کښې ده ، ډاکټري تعليم کوي ، باچا خان هم -
زموږ ګاونډي وو ، ما ته د شپې تشې يعنې ورې ميتيازې راغلې
خو ټوئليټ ته نه تلم ، خيال مې وکړو ، که ټائليټ ته لاړې ، نو
متيازې خوشور نه کړي ، مګر اوبه چې راپريږدې نو شور
کوي ، باچا خان او خان لالا به ويښ کړي ، ما خيال وکړو چې
که جرمني کښې اوسې خو د جرمني خو نه يې ، د وزيرستان -
محسود يې ، نو زه بهر ته ووتم ، د دوئ د جرې سره يو کچه
ديوال وو ، هلته مې متيازې وکړې ، چې واپس راتلم نو خان لالا

ویښن وُ ، ما ته یې وویل چې چیر ته تلے وې؟ ما ورته قیصه وکړه ، صبا خان لالا ولي خان او باچا خان ته قیصه وکړه ، باچا خان ومسیدو ، سحر چې زه وختي ویښ شوم نو د دوئ په باغ کښې مې چکر وهلو ، په دې کښې ولي خان بابا هم راغئ ، ما ته یې دقسماقسم ګلانو په خاصیتونو تبصرې کولې ، او په ټولو کښې یې سپین ګلاب خوښ وُ ، خو بابا ډېر غمجن وُ د غه اول ځل وُ چې د بابا سره ما دکورنئ او ښځې اوخاوند په باره کښې خبرې وکړې ، داځکه چې نسیم بي بي دموټر په حادثه کښې سخته زخمي شوې وه ، یو لاس یې مات وُ موټر میاں افتخار چلوو ، چې ورسره دلبرخان اف ټکر ، فرید طوفان بشیر یلور وو ، دوئ ټول زخمیان شوي وو ، دنوښار سره نږدې دغه واقعه شوې وه ، ما ته یاد دي زه دخیال اکبر اپریدي سره په جرګه کښې وم ، چې ټیلفون راغئ او دده دکُرمې ایجنسي کوم ملګرے ووُ . چې دوئ سوداګر خلق وو ، دوئ اولني خلق وو ، چې د حادثې په ځائے راغلي وو ، دوئ د هر څه بندوبست کړے وُ ، خیال اکبر ته یې په ټیلفون وئیل ، چې نسیم بي بي ډېره پیاوړې او په خوبږ ټینګه ښځه ده ، د دې لاس مات وُ هیڅ فریاد یې نه کولو ، او ګلیاوه دغه نور یې دموټر نه راویستل ، او سرې ډېر یې خونده وو ، چغې یې جوړې کړې وې ، دوئ وئیل ،

چې مونږه لیډي ریډینګ روغتون ته رسولي دي ، بس زه
او خیال اکبر اپریدے هسپتال ته ورغلو ، په دې کښې ولي
خان بابا هم حاضر ؤ ، نسیم بي بي بلتن بلاک کښې وه ، او
دغه نور جنرل وارډ کښې وو ، څو ولي خان بیا دوئ هم
بلتن بلاک ته بدل کړل ، بشیر بلور معمولي زخمي ؤ د ،
مرهم پټئ نه پس کور ته تلے ؤ ، څو فرید طوفان ، میا ن
افتخار او دلیر خان ټکر او نسیم بي بي مکمل داخل شوي
وو ، جج صاحب فرید طوفان پورې ټوکې کولې ، چې
دومره زخمي نه یې لکه کوکي چې دې کولې ، بس څه وخت
نه پس د صوبه سرحد وزیر علی ارباب جهانګیر هم پټوس
ته راغلو ، ځان یې داسې سینګار کړے ؤ ، لکه د پښتو -
مشهوره سندرغاړې ماه جبینه قزلباش ، بس د نسیم بي بي
او دغو نورو خوږ په قسمت ؤ ، مونږه د پاره میله جوړه
شوه ، هر سحر او هر ماز دیګر به لیډي ریډینګ هسپتال
نه د حضرت جي صاحب عرس جوړ شوے ؤ ، چې د ټول -
پاکستان نه به خلق پوښتنې ته راتلل ، او ولي خان بابا به
دربار لګولے ؤ ، او بهر مونږ یوه لویه قالینه غوړولې وه.
چې ټوله ورځ به سیاسي بحثونه وو ، او د نسیم بي بي ورور
عظم خان آف هوتي به کله نه کله د پښتو فلمونو دلوبغاړو
"ایکټرانو" پښې هم پکښې کولې ، بیا دغه نور رخصت شول

او نسیم بي بي خیبر میډیکل هسپتال جمرود روډ ته بدله کړه ، چې ما او افضل خان لالا به یې هره ورځ بیمار پرسي کوله، ما د بي بي سره توکي کولې چې بیا پیغله شوې، ډېره کمزورې شوې وه، ولي بابا غمجن غمجن وُ، خو هر چا ته یې حال نه وئیلو ، دغه سحر چې زه او د سے یواځي وو، او ګلانو کښې مو چکر وهلو ، بابا د بي بي ، خبره وکړه، چې بهر سپرلے د ے ګلان دي، مستي ده غریبه نسیم هسپتال کښې پر ته ده ، ما ورته ووئیل چې بابا په دې عمر کښې دې خدای خوګ کونډ نه کړي ، او د خدائے لوئ فضل د ے چې بي بي بچ شوه ، ګنې ډېر خطرناک ایکسیډینټ وُ، روستو هلکانو د میان افتخار سره توکې کولې چې تا چیرته د ضیا الحق نه پیسې اخستي دي، غوښتل دې چې بي بي مړه کړې ، نو ځکه د بي بي طرف دې د موټر وجنګولو ، هغه خپل لوري د ے بچ کړو.

داسې ما د ولي بابا سره چکر وهلو، چې خان لالا هم را سره شامل شو، په دې کښې لطیف اپریدے هم راغئ دا ځکه چې ملکنډ بټ خیله کښې جلسه وه، د هغې متعلق دوئ سره خبرې کولې ، چې د ې کښې نور خلک هم راغلل چې فرید طوفان ،لطیف اپریدے ،او خان محمد، افضل خان لالا او باباخان عبدالولي خان او زه د دوئ د کور نه د-

خان لالا پیجارو جیپ کښې سواره شوو، دولي خان باباجیپ کښې نور خلک سواره شول، مونږ د ملکنډ غاړې ته روان شوو، چې دولي باغ نه مردان سوات لوئ سړک ته ووتلوو نو دلته د ریل پاټک سره د مردان د خلقو دپاره معطل شوو چې په هغوئ کښې جج صاحب عبدالخالق خان راته یاد دے ما بیا د ټولو د خان لالا د نوي "Pijaro" جاپاني جیپ سره تصویرونه وایستل، فرید طوفان په لارې راپورې ټوکې کولې چې زمونږ ټول عمر سیاسي خوارئ تاپه یوه کیمره یوړه، و یُل یې مشران د ستا قدر په دې نه کوي، چې ته علي خان محسود یې، بلکې په دې دې کوي چې کیمره درسره ده.

هغه شان نیک عمل خان سره د خپلې زړې دسیاکوټ سره ځمونږ جلوس ته راګډ شو، د خان بابا نه ګڼښې روستو د پښتون ځلمي بد رنګه چپاړ وو، دغه ډېر خطرناک وخت وُ، د افغانستان د جنګ په وجه علاقه د اسلحې نه داسې ډکه وه، چې د معمولي ټوپک نه راواخله تر میزائیلو پورې په قیمت پیدا کیدل، او بل د جماعت اسلامي او A.N.P سیاست هم دیوبل سره په ټکر کښې وو، په دې شپو ورځو کښې. جماعت اسلامي څه وه، پوره یورپ او مغربي دنیا، امریکه جاپان، چین، دغه ټول سره یو ځائے شوي وو، دافغانستا

خلاف يې افغاني خلک ږوزل او جنګول، او بل جماعت اسلامي والو د پښتون ستوري ينهتس فيډريشن يو هلک چې نوم يې سيدالله اپريدے وُ، دوئ شهيد کړے وُ، دجماعت اسلامي او A.N.P د فوجي ټکر ډير سخت خطر وُ، دملايانو جنون سرته ختلے وُ، د دوئ جيبونه دامريکي ډالرو نه ډک وُ، نو انسان ورته انسان نه ښکاريدو، خو د ظلت اين اے پي نه دوئ ډاريدل، ځکه دولي بابا حفاظ ډيرو، دسخاکوټ نه موږ زه د مومن اپريدي سره موټرکښې سور شوم، مونږه دجلوس نه مخکښې شو، ما به ځائے په ځائے د جلوس تصويرونه استل، د ولي بابا جلوس چې بټ خيلې ته رارسيدو، نو زه ددکانونو چهت ته ختلے وم، د پاسه مې دجلوس ښايسته ښايسته تصويرونه واخيستل، دلته ډيرلوئ جوش و بيا جلسه شروع شوه دلته وارډه هلکان وو، ډير ښکلے نظم يې په ډليزشکل کښې ووئيلو، ما يې تصوير واخستلو، ځما کوښښ جلسه کښې دغه نه وُ، چې د مشرانو تقرير واورم، ولې پرديې چې ماته د يوې اندازې پورې درک وُ، چې دوئ به څه وائي، زما کوښښ ددوئ تصويرونه اودجلسې عکسونه وو، ولې په دې چې داسې جلسې او غونډې د پښتنو هره ورځ نه وي، دجلسې ميدان نه روستو ورکوټي غونډے

غونډۍ وه ما د دې ځايه د سوات او ډېر د سيندونو ـ
تصويرونه واخيستل ، چې دوئ د مار په شان کاږه وانه دږي
او ډېره ښايسته منظره جوړوي ، ددې جلسې نه پس په ۱٤ اپريل
۱۹۸۷ تيمرګره ديرکښې جلسه وه خان لالا ، ولي خان بابا ته
ووئيل چې زه او محسود به دروش خيله ته لاړ شو ، دروش ـ
خيله د خان لالا کلئ دے ، چې سوات کښې د سيند په غاړه
ډېر ښايسته ځائ دے ، او خان لالا ورته ووئيل ، چې هسې
هم په دير کښې جلسه ده ، زه او محسود به بيا دستا سو
انتظار د چکدرې په پل کوو ، ولي بابا ټوکه پوره وکړه ،
چې د سکندر اَعظم پېښې کوئ ، هغې هم کمپ د چکدرې
دکلي سره وهلے ؤ . خان لالا ورته ووئيل : چې ولې زه او
محسود د سکندر يوناني نه څه کم يو ؟

بس د جلسې نه پس ولي بابا سره د نورو مشرانو ولي
باغ ته لاړل ، او زه د خان لالا سره د رش خيله سوات ته
لاړم ، هلته خان لالا يو دوه ورو ورو جلسو ته لاړو ، زه
هم ورسره وم ، په رښتيا چې جرمني ښا سته دے ، خو د
دولت په زور ، مګر د سوات ښايست قدرتي دے .

د غسې په ١٤ اپريل ، سحر خان لالا سره د سوات
دګر نه د مشرانو او پښتون ځلمي د ځوانانو سره ديوجلوس
په شکل کښې را روان شو ، ما د دوئ ډېر تصويرونه واخيستل

یو دپښتون ځلمي کماندو وُ، دپرلوئ لوئ اوږده اوږده بریتونه یې وو، نو هلکانو پورې ټوکې کولې، چې د بریتووالا چرې توره کرې نه ده. ده ورته وئیل چې وخت راشي بیا به ګورو.

همدغه شان موږه چکدرې پل ته راورسیدو، دلته انتظار نه پس د ولي بابا جلوس رانښکاره شو. بس موږه هم ورسره ګډ شو. رښتیا خبره ده چې د پر او سوات دواړې ډېرې ښکلې منظرې لري، موږ تیمرګرې ته ورسیدو، دلته زموږ سترې مشي دکلا شینکوف په ډزو وشول ځوانانو وئیل، چې موږه په ککره وهوو.

دلته ما هم د معمول مطابق خپل کلا شینکوف یعنې کیمره باندې ډزې وکړې، دجلسې او د مشرانو تصویرونه مې ایستل، او د قدرتي منظرو عکسونه مې هم ایستل، دلته د دجلسې د سټیج سکریټري ځما دکالج دوخت خوږ ملګرے ایډووکیټ نقیب جان وُ، ما ته یې سترګه وهله چې دباباسره مې ډېر فوټوګان وباسه، ما ورته وئیل چې غم مه کوه، د ز ړه آرمان به دې پوره شي، خو دې جلسه کښې دخبرو نه زیات ددیروالو د اسلحې نمائش وکړو، دومره ډېر فائر دوئ وکړو، چې څوک د پښتنو دخوئ نه خبرنه وُ نو خیال به یې کړے وے چې جنګ شروع شوے دے.

د جلسې د ختمېدو نه پس موږ د چکدرې ته لاړو، دلته ولي بابا ته ډوډۍ شوې وه، ظاهرشاه د چکدرې ډېر تکړه ځوان دے، هغه چې زه ولیدم ډېر خوشحاله شو، موږ د دلته سبه مزیدار د ډوډۍ وخوړه، ما ته د پښتون ستو ږ-نتش یو هلک خبره کوله، چې دغه ډوډۍ د واده ډوډۍ ده، وئیل یې چې واده پخوا شوے دے، دوئ ورته ولي بابا، میلمه کړے دے. خو د وخت دکمي دوجې یې ګډون ونکړے شو. خو د چکدرې خان ورته ووئیل چې څه وخت د ښېرکړي جلسې ته ځئ، نو د غرمې ډوډۍ به ځما سره خورئ، ولي بابا ورته وئیلي وو، چې هو دغه مې د رسره لوظ دے، بس موږ هم یکښې میلمانه شوو، د ډوډۍ نه پس خان بابا ولي باغ ته سره د نورو مشرانو واپس شو، زه بیا د خان لالا سره سوات ته لاړم، او پېښور کښې د پښتو عالمي کانفرنس سلیم راز د پښتو نامتو شاعر جوړ کړے ؤ.

موږ بابا ته ووئیل، چې څو ورځې پس به موږ درځو بیا به د ستاسو د کور نه ګډ پېښور ته ځو چې سلیم راز په شادي حال پېښور کښې بندوبست کړے ؤ.

د څو ورځو نه پس زه د خان لالا سره ولي باغ ته روان شوم په لاره سخاکوټ ته ورګود شوو د نیک عمل خان د والد- صاحب تپوس خان لالا وکړو، د ه ټولې جلسې په ویډیو vidio

ليدلي وې، ډېر خوشحاله وو، دے يو لوئ خداى خدمتګار مشر ؤ، خو اوس بوډا شوے ؤ، بس، موږ ماښام ولي باغ ته ورسيدو، ولي بابا ويئيل چې د ډوډۍ وخت دے راځئ، چې ډوډۍ وخورو، په دې شپو ورځو کښې نسيم بي بي دهسپتال نه کور ته راغلې وه، خولاس يې لا پلستر ؤ، خو ولي بابا موږ کښې ؤ، باچاخان هم د ډوډۍ په ميز ويوې غاړې ته افضل خان لالا او ولي خان په ميز ناست وو، ورته مخامخ باچا خان او زه وو، او زما سره کس اړخ ته بي بي وه، خو بي بي هسې ناسته وه، ډوډۍ يې نه خوړله باچاخان په ماته اشاره کوله چې هغه واخله، هغه واخله خو زه هسې موړ وم، ما ته ولي خان بابا ويئيل، دسوات اړيو ته ډوډۍ دتينګې نه ده خوراک کوه، بيا خان لالا باچا خان ته وويئيل چې ډېر ستړي معلوميږئ، باچاخان ومسيدو، خو ولي بابا خبره وکړه چې دخان عبدالعزيز کاکا د زيدې، ميرمن وفات شوې ده زموږ کوښښ ؤچې خبر يې نه کړو، مګر خبر شو، په هغې وخت صوابۍ ته روان شو دغه دے اوس د ستاسو نه نيمه ګهنټه مخکښې راورسيدو، نوځکه ستړے ستړے دے.

دغه ځما اخري ډوډۍ وه د لوئ بابا باچاخان سره صبا چې موږ پاڅيدو، خبر شو چې باچا خان وختي

په خپل سوزکي کښې د پښتو عالمي کانفرنس ته تلے دے. د-
ناشتې نه پس موږ هم روان شو، په لارې ولي خان-
بابا راپورې ټوکې کولې، چې تاویل چې زه د ستا سو لیدو ته
راغلے یم، اخبارو نه خولیکې، چې ته د جرمني د پښتنو پښتو
عالمي کانفرنس کښې نمایندګي کوې، دغه خبر زما متعلق،
سلیم راز ورکړے وُ، چې د کانفرنس رعب د ب جوړ کړي،
بیا ولي بابا خان لالا ته ووئیل چې سواتیه، چې خوشحاله به وُ،
نو خان لالا ته به یې سواتي وئیلو، زه نن ډېر خوشحاله یم، ځکه
چې نن به زه تماشګیر وم، خبرې به نور خلک کوي، چې موږه
رسیدو باچا خان ناست وُ. څو ښې یو ملګرے ډاکټر مطیع الله
ناښاد د سټیج سکرټري وُ، سلیم راز چې یو لوئ عالم، شاعر
او لیکوال دے، د دې کانفرنس مشریعنې چرمین وُ، دلته هر
چا خبرې نه شوې کولے. خو اول برخه د پښتنو سیاسي ګوندونو
پیغامونه ته ورکړه، چې دوئ لنډ لنډ واورول، ما هم د جرمني
د پښتنو لخوا نو ده نو ده سلامونه ورته ورسول او باچاخان
راته مخامخ ناست وُ، بیا د پښتو ژبې عالمان وار په وار راغلل
دوئ د پښتو ژبې په زاړښت، بدبختۍ او ورته پښتون قوم
پام نه کولو باندې خبرې وکړې، چې امیر حمزه شینواری
بابا نه تر ورکوټو لیکوالو ته هم نمایندګي ورکړے شوې وه،
دلته د پاکستان د ټیلي ویژن والا هم راغلي وو، دوئ کانفرنس

فلم کوو،

په اخر کښې د باچا خان وارو، نو دوئ دخپلو نوکرو د پارېه دکيمرې خولې د باچاخان په ځای د تماشګيرو خلقو اړخ ته کړې، وه، يوځل ځما دکالج دوخت زړګئ راپيدار شو او سخته غصه راغله، ما ووئيل چې ور پاڅم دغه کيمره ورته ماتووم. بيا مې خيال وکړو چې سليم راز دوئ به خفه شي، چې ته ځما په کانفرنس کښې جګړې جوړ وې، او بل دا ردو والا بيا ټوکې راپورې کوي، چې ليونيانو بيا جنګونه وکړل، او بل د دې نه ووريدم چې باچا خان به راته په قهر شي، چې زه خو د T.V شوقي نه يم، نو تا دغه کار ولې وکړو، دغه خبرې راته مخکښې مخکښې شوې، ما غصه وخوړه پته نشته، چې نورو خلقو به دا سې محسوس کړي وي، لکه ما خو روستو ما د چا سره په خبرې ونه کړې، ما ښام په T.V خبرونو کښې هم نه د باچا خان نه تصوير او نه خبرې ښکاره شوې.

باچا خان اول لاس، پورته کړل. چې خدائ پښتون قوم ته اتفاق ورکړې، خدا يه آباد او په سمه لاره يې روان کړې. خو بيا يې زر ووئيل چې تش په دعاګانو نه کيږي، بايد چې موږ هم حرکت هم وکړو، بيا يې يو مدلل تقرير د ژبې په حقله وکړو، ووئيل يې چې ژبه لاړه نو هر څه لاړل، ژبه نن زمانه کښې - سياست دے، اقتصاد دے، او کلچر دے، چې چا ته خپله ژبه سپکه ښکاري، حقيقت کښې هغه په خپله سپک دے، د نړۍ

نورو قومونو ته وګوري چې څه کوي، او مونږ پښتانه دخپلې تربې سره څه کوو، بس د ده تقرير سره کانفرنس ختم علان شو د سليم راز خوش قسمتي وه، چې د باچا خان غوندې شخصيت د پښتو عالمي کانفرنس کښې ګډون وکړو، دغه زما اخري د بابا ديدار وُ، په ډيرښو شادي حال کښې. نو بيا جرمني ته بيا واپس راغلم، بيا خبر شوم چې باچا خان ډير ناجوړه دے، د بې هوشۍ په حالات کښې دے. بس ۲۰ جنوري ۱۹۸۸ کښې مې سحر د جرمني ريډيو نه خبر واوريده چې باچاخان په حق ورسيدو، د هند وزير اعظم راجيوګاندي د خپل جهاز څخ د سويډن په ځائې ډيرښور غاړې ته کړو، چې د باچاخان اخري ديدار وکړي.

# دلوی بابا په نړۍ تیر بدل

(جنوري ۱۹۸۸)

چې د بابا خبر مونږه واوریدو، نو زه او حُمامیرمن ډیر غمجن شو، بس څه وو، د جرمني د پښتنو د یوسره نه د بل سر پورې ټیلیفون نه وو، د نړۍ د ټولو ریډیو سټیشنونو نه دغه خبر خور شو.

مونږ ه د واړو اول واکانې ته لاړو د ولي بابا په نوم مویو یو ټیلیګرام ورکړو، د جنازې شرکت ناممکن وو، داځکه چې پاکستان ته داسې ناڅاپي ټکټ ګران و، او بل افغانستان ته هم دایریکټ هوائي سروس، نه و، مغربي دنیا د افغانستان هوائي جهاز و نه "اریانا" بند کړي وو، نو مونږه د جرمني پښتانه یعنې د لرې او برې خوا افغانان د جرمني ښار کلن کښې راجمع شو دغائبې جنازې نه علاوه، د باچاخان په وفات مویو پیغام خور کړو چې زه یې دلته ټکي په ټکی لیکم:

## د باچاخان د وفات په هکله:

د خدائ بخښلي باچاخان فخر افغان د مرګ خبر د پښتنو

تولنیز اولسلیز کوند «پښتون سوشل ډیموکریټ پارټي» لپاره
یو آسماني تندر ثابت شو، چې موږ ټول یې غمجن کړو.
د باچاخان مرګ نه یواځې د افغان اولس لپاره یو لوی زیان دے
بلکې د هغه ټولو انساني قوتونو د پاره هم ډیر لوی تاوان دے
څوک چې په امن او سوله عقیده لري.
په خاصه توګه په نني نړۍ کښې چې د اتمي وسلې کودام
ګرځیدلے دے، د داسې شخصیتونو ډیر لوی ضرورت دے،
چې نړۍ او انساني نسل د تباهۍ نه وساتي. خدائ بخښلي
باچاخان ټول عمر د غریب او مظلوم اولس خدمت ته ملاتړلې
وه، دوئ د پرنګي استعمار په خلاف نه ستړي کیدونکې او نه
پخلا کیدونکې جدوجهد وکړ تر هغه پورې په کراره کښې نه ناسته
تر څو چې یې د استعمار کمبله د هند او لوئ پښتونخوا نه ټوله
کړې نه وه.
باچاخان ټول عمر د پښتون اولس د خدمت لپاره
وقف کړے ؤ، چې د ژوند زیاته حصه یې د پرنګي او
پاکستاني په جیلونو کښې تیره کړې وه، او چې کله به د جیل
نه بهر ؤ، نو بیا به یې د پښتون اولس د اورورولۍ، د سوکالۍ
او اتفاق لپاره کار کاوه، د باچاخان د ژوند میشن دغه ؤ چې
لر او بر افغان اولس سره یو کړي، او د دوئ په وجود د استعمار
تش په نوم کرښه د همیشه د پاره ورکه کړي، چې افغان اولس

*یې په دوو برخو تقسیم کړے دے.

زموږ دګوند دیو ملګري سره د ملاقات په دوران کښې باچاخان اخري ارمان داسې څرګند کړے ؤ، ،، چې زما یو ارمان دے، چې افغان اولس داموسیند نه تر اباسین پورې سره یو شي، او په افغانستان کښې دلویو قونتونو پهلواني چې زموږ په سرونو یې کوي پای ته ورسي،،.

کاش چې باچاخان دومره ژوندے وے، چې دغه دواړه ارمانونه یې په ژوندینې پوره شوے واے. مرګ حق دے خو بیا هم دباچاخان ژوند مبارزه زموږ دپاره یو بلهٔ ډیوه ده، چې موږ ته دعزم، جرائت، خدمت، نورې، وفادارئ ورورولئ او نه ستړې کیدونکي مبارزې سبق راکوي. د باچاخان ژوند یو تاریخ دے، چې افغان قوم پرې د نورو قومونو سره، سیالي کولے شي، د باچاخان دلراوبراولس دیووالي دچغې عملي ثبوت دادے چې لره کښې زیږیدلے او په بره کښې د دایمي ارام لپاره یې وصیت کړے ؤ،.

د پښتنو سوشل دیموکریټ ګوند ټول غړي دخدای بخښلي باچاخان په حق کښې دعاکوي، او د خدای نه داسوال کوي چې دغه لوئ انسان ته چې ټول عمر یې دخپلي اولس خدمت کړے دے، په جنت الفردوس کښې ځائ ورکړي، موږ دخدای بخښلي باچاخان سره داوعده کوو، چې کومه ډیوه

ده بله کړې ده، هغه به بله ساتي او خدای پاک ته سوال کوو،
چې د باچاخان اولاد ته طاقت ورکړي، چې د دې لوی انسان
د تګ داغم برداشت کړای شي، او د نورو غمونو نه يې خدای
پاک وساتي. إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ ۝

«له طرفه د پښتون سوشل ډیموکریټ پارټي جرمني»

همدارنګه يو بل بيان جرمني او يورپ کښې د پښتنو او بلوچو -
لخوا خور شوے و، چې زه يې ټکي په ټکي لیکم:

باچاخان فخرافغان په حق ورسيدو:

«إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ»

باچاخان فخرافغان چې ۱۸۹۰ سنه کښې د اتمانزو په کلي کښې
زيږيدلی و، په ۲۰ د جنوري کال ۱۹۸۸ کښې په حق ورسيدو.
ښکاره خبره ده چې د هرملک تاريخ د هغې ملک اولس له خوا
جوړيږي، خو د ځينو شخصيتونو دنيا دي رول نه چې په
تاريخ کښې يې لري، هم سترګې نه شو پټولے، د غه زموږ
دافغان تاريخ کښې هم بل رول نده، که موږ په خپل د آزادۍ
تاريخ باندې نظر واچوو، نو را ته ښکاره به شي، چې د
باچاخان فخرافغان شخصيت او مبارزه زموږ د اولس د تاريخ
يوه لويه پانه جوړوي، باچاخان نه يوازې د افغان اولس،
د آزادۍ په حقله، بلکې د هند اولس د آزادۍ د پاره يې...
ګاندهي سره اوږه په اوږه مبارزه وکړه چې په نتيجه کښې يې

انګریزي استعمار په دې مجبوره شو، چې د هند خاوره پرېږدي چې د غه وجه ده چې نن په هند کښې د فخر افغان د مړینې له کبله پنځه ورځې په هند کښې د (ملي خواشینۍ) په توګه علان شوې دي».

باچا خان په قول ژوند ترا خره سلګۍ پورې د خپل، اولس د آزادۍ يو الي، او بیدارۍ په لار کښې قربان کړو او تر نن پورې یې د پښتنو او بلوڅو د ملي آزادۍ لویوه ـ روښانه وساتله هم دا دلیل و، چې د خپل ژوند تقریباً دریمه برخه (۳۰) کاله یې د انګریزي کلونیالزم او د پاکستان داستعمارے دیکټا توری په جیل کښې تیر کړل، سره د دې چې باچا خان هر ډول ظلمونه او شکنجې تیرې کړې، خو د اولس د آزادۍ او خدمت نه یې لاس لنډ نه کړو، باچا خان څنګه چې د خپل، اولس د وحدت او ازادۍ د پاره مبارزه کوله، همدارنګه یې د نړۍ د ټولو مظلمو قومونو نه دفاع کوله او ورته یې په درنه سترګه کتلې.

دافغان په حیث دا زمونږه وظیفه ده چې نه یوازې دده کړنلاره ژوندۍ وساتو، بلکې نوره به یې هم پیاوړې کړو، نو د باچا خان مړینه نه یوازې دافغان اولس د پاره بلکې د نړۍ د ټولو سوله، او آزادۍ غوښتونکو اولسونو د پاره لویه ضایعه ده.

مونږه په جرمني کښې پښتانه او بلوخ دده دمړينې
له کبله دخپل اولس او دخپ افغان دکورنۍ سره په دغه ماتم
کښې شريک يو. "آمين"

دباچاخان په وفات باندې دپاکستان سياسي مشرانو
اظهار اخبار جهان کښې ليکي: مرحوم باچاخان کو.
ممتاز پاکستانی سیاستدانوں کا خیراج عقیدت (نذیرلغاڑی)
مورخه ۲۵ نه ۳۱ جنوري ۱۹۸۸ . . .

سیاستدان خدائی خدمتکار، سرخ پوش رهنما خان
عبدالغفار خان، طویل علالت کے بعد ۹۸ برس کي عمر میں انتقال
کرگئے (انا لله وانا الیه راجعون) مرحوم کوگذشته سال مئ
میں علاج معالجه کی عرض سے بهارت لے جایاگیا تها، جهاں،
وه پهلے بمبئ اور پهر دهلی کے اِنڈین انسٹیٹیوٹ آف میڈسن،
میں زیر علاج رهے، وه وهاں پرتقریباً تین ماه تک زیر علاج
رهے، بعد از ان انهیں ۱٤۔ اگست کو وطن واپس لایاگیا، اور
پشاور لیڈي ریڈینگ هسپتال میں داخل کردیا گیا.

خان عبدالغفار خان گذشته صدی کے نوی عشرے کے
اخری سال یعنی ۱۸۹۰ میں چارسده کے قریب اتمانزئ گاؤں
میں جناب بهرام خان کے هاں پیدا هوئے، باچاخان اپنی
زندگي کے ابتدائی ایام میں انگریزي دشمن لیڈر حاجي صاحب
ترنگ زئ سے متاثر هوئے.

حاجی صاحب ایک بڑے مجاھد آزادي صوفي ، مذھبي رھنما اور برطانوی اقتدار سے آزادي کے سچی حامی تھے .

خان عبدالغفار خان نے کانگرس کے پلیٹ فارم سے انگریزو کے خلاف برصغیر کی آزادی کی جدوجھد میں بھرپور حصه لیا ، انھیں گاندھی کے انتھائی متعمد ساتھیوں میں شمار کیاجاتاتھا اور وہ ساری زندگی کانگرس رھنماؤں اورکارکنوں کی نظرمیں قابل احترام شخصیت رھے .

خان عبدالغفار کے انتقال پر ھر تجزیه نگار کا فوری تاثر تعریفی کلمات پر مشتمل ھوگا لکین وقت گذرنے کے ساتھ ساتھ یه سوالات ضرور پیدا ھونگے که برصغیر کی تاریخ میں خان عبدالغفار خان کی سیاسی جدوجھد کوکیا مقام اورکیا رتبه حاصل ہے .

باچا خان کے سیاسي مخالفین بھی یه تسلیم کرتے ھیں که مرحوم ایک با اصول شخص تھے اور انھونے اپنےاصولوں کیلئے کي جانے والی طویل جدوجھد کے دوران قیدوبندکی صعوبتیں بھی برداشت کا مقصد حصولِ اقتدار نھیں تھا ، وہ ساری زندگی متنازعه رھے ، جھاں اُنھیں بیت سے ، لوگوں کی محبت ملي ، وھاں انھیں بھرپور تنقید کا سامنا بھی کرنا پڑا لیکن انھونے تنقید یا قید و بند سے خوفزده ھوکر اپنا راسته تبدیل نھی کیا .

خان عبدالغفار خان ایک ایسی شخصیت تھے جن کی مستقبل مزاجی، سادگی او جذبہ خدمت کے ان کے مخا- لیفین بھی قائل تھے، باچا خان کے انتقال کے بعد جب ان کے قد اور سیاسی مخالف اور جماعت اسلامی کے مقتدر- رھنما پروفیسر غفور احمد سے رابطہ کیا گیا تو انھوں نے کہا کہ:

" برصغیر کی تحریک آزادی می ان کا نمایا رھا ھے، انھونے اپنی پوری زندگی لوگوں کی بھلائی کیلئے گذاردی اور خود کو خدمت کیلئے بطور نمونہ پیش کیا اس سلسلے میں المیہ یہ ھے، کہ جب ایسے لوگ اٹھ جاتے ھیں تو ان کا کوئی بدل نھیں ھوتا ھماری ملک میں سیاسی جماعتوں کیلئے کام کرنا انتھائی مشکل ھے، اور لوگوں بڑے دائرے سے نکال کر چھوٹے چھوٹے دائروں میں محدود ھونے پر مجبور کیا جاتا ھے اِس صورت حال کی، ذمہ داری ملک کے حالات پر عائد ھوتے ھے، ھر حالات عوام کی آزادی اور انکے حقوق کے حصول کی جدو جھد میں رُکاوٹ بنے، ھوئے ھیں، خان عبدالغفار خان نے اپنی زندگی عوام کی خدمت میں گذاری انھونے عام آدمی کی زندگی بھتر بنانے اور مظلوموں کی مدد کیلئے سادگی اور قربانی کا نمونہ پیش کیا ھم ان کی مغفرت کیلئے دُعا گو ھیں ھماری ھمدردیاں اِنکے خاندان اور اُن لوگو کے ساتھ ھیں ھماری ھمدردیاں انکے خاندان .

جمعیت علماء پاکستان کے مرکزی نائب صدر شاہ فرید الحق نے خان عبدالغفار خان کے انتقال پر تاثر بیان کرتے ہوئے انا للہ وانا الیہ راجعون پڑھا اور کہا،

„جنگِ آزادی میں ان کی خدمات قوم کو یاد رہیں گی، ان کا انتقال ایک سیاسی نقصان ہے، خدائی خدمتگار کی حیثیت سے انھوں نے عوام کیلئے بڑی خدمات انجام دئے ان کے نظریات سے اختلافات ہو سکتا ہے، لیکن یہ ایک حقیقت ہے کہ وہ اصولوں پر پختگی سے قائم رہنے والی شخصیت تھے ان کے انتقال سے ایک سیاسی خلا پیدا ہوا ہے ہر آدمی کیلئے ان کی نظریات سے متفق ہونا ضروری نہیں، لیکن ان کی سیاسی اہمیت مسلمہ تھی، میں خان عبدالولی خان اور انکے اہل خانہ کے دکھ میں برابر کا شریک ہوں، اللہ تعالیٰ انہیں صبر جمیل عطا فرمائے"

ملک کے ممتاز سیاستدان مشراحمد پشن امام نے خان عبدالغفار خان، کے انتقال پر اپنے تعزیتی کلمات میں کہا کہ،

„ان کے بارے میں ایک چیز برائے وثوق سے ہی جاسکتی ہے، کہ انھوں نے آزادی کی جدوجہد میں اہم کردار ادا کیا، ان کے نظریات سے اختلاف کے باوجود یہ کہنا بالکل درست ہوگا، کہ وہ ایک صاحب کردار شخصیت تھے، انھوں نے ساری زندگی مسلسل جدوجہد میں گزاری، انھوں نے برسہا برس جیلوں میں گزار دئیے، وہ زندگی کے اخری چند ماہ کی علالت

اور مسلسل بے ھوشی کی وجہ سے سیاست سے علیحدہ رھے
ورنہ پوری زندگي مسلسل جدوجھد اور سیاسي عمل میں
مصروف رھے ، انھوںنے مسائیل اور مصائب سے اکتاکر زندگي
سے کنارہ کشي اختیار نھیں کی، انھوںنے پریشانیوں سے بھاگ
کر گوشہ نشین ھونا مناسب نھیں سمجھا ، ان کی سیاسي ۔
زندگی کا حساب کتاب اب تاریخ کے سپرد ھوچکا ھے ، اس ،
مرحلہ پر ان کے بارے میں حتمی اور فیصلہ کن رائے قایم کرنا
مشکل ھے ، مگر ان کے نظریات اور افکار کے باری میں تاریخ
ضرور فیصلہ کرے گی ،،،
مزدور کسان پارٹی کے سربرہ فتیحیات علي خان نے۔
کھا کہ :

« باچا خان تفخر اور تنی ھوئی گردن کے ساتھ ھم سے
جدا ھوئے ، ان کی موت کے وقت غرور عشق کا بانکپن سلامت
تھا ، وہ برصغیر کے حریت پسندوں کی اُس نسل کے نمائندہ تھے
جس نے انگریزوں سے آزادي حاصل کی ، تاریخ انھیں ایک ۔
حریت پسند کی شکل میں ھمیشہ محفوظ رکھے گی جو اپني
« cammit ment » کمٹ مینٹ اور نظریات سے وابستگي کی
بنا پر دنیا کے اس خطے میں آن ادی کی علامت بن گئے تھے ، اُن
کے مخالیفین بھي ھمیشہ یہ تسلیم کریں گے کہ خلوص ، قربانی
اور اپني آئیڈیل کیلئے وہ کبھی بھی نھیں جھکے وہ اختلافات

کے باوجود اپنے مخالیفین اورحامیوں کا دل جتنے میں کامیاب رہے اوہ اپنے تصورات اور مقاصد کے لئے ٹوٹ سکتے تھے جُھک نہیں سکتے تھے،ان کی وفات سے ھماری سیاسي زندگی میں ایکٔ بڑا خلا پیدا ھوا ھے جو پرُ نہیں ھوسکے گا۔

نیشنل دیموکریٹ پارٹی (این۔ڈی۔پی) کی سربراہ سردار شیرباز خان مزاری نے خان عبدالغفارخان کے انتقال پراپنے رنج وغم کا اظھار کرتے ھوئے کہا، کہ:

باچاخان نے برصقیر کی جنگ ازادی میں نمایاں کردار ادا کیا تھا، انھونے نوابادیاتی نظام اور انگریزي اقتدار کے خلاف دلیرانہ جدوجھد اور قربانی کی جو مثال قایم کی تاریخ اسے کبھی بھی فراموش نھیں کرسکے گی۔ اقتصادي اور معاشی مسائیل کہ حوالے سے سیاسي شعور پیدا کیا، برصغیر کی سیاست پر بالعموم اور سرحد کہ سیاست پر بالخصوص، ان کے نظریات کے اثرات چھائے رھیں گے، ان کے انتقال سے جمھوري قوتوں کو نقصان پنچے ، لیکن۔ ھمیں یقین ھے کہ ان کے پیروکار ان کی مثالی جدوجھد کو جاری رکھیں گے، خان عبدالغفار خان سے میرے ذاتي، تعلقات تھے، وہ میرے محترم اور شفیق بزرگٔ تھے...

ملکی سطح پران کی وفات ایک سیاسي نقصان ھے،لیکن میرے لئے یہ ایکٔ ذاتی نقصان ھے میں بیت غمزدہ ھوں،

خان عبدالولي خان ان کے اهل خانه اور ان کے رفقاکے غم میں برابر کا شریک هوں».

عوامي نشنل پارٹی کے جنرل سکرتري رسول بخش پلیجو۔ نے کها که؛

«خان عبدالغفار خان کی شخصیت برصغیر کی تاریخ کا ایک سنگ میل هے، وہ اس صدی کی ایک قدآور سیاستدان تھے. جنهوں کم وبیش اپنے ایک صدی پر محیط زندگی محروم انسانوں کو بیدار کرنے اور ان کی خدمت کرنے میں صرف کردی. انهونے عوامي سیاست کی نئی روشن روایتي قایم کئے جن کا اجالد بهت، دیر تک اور بهت دور تک پهیلا رهے گا ان کی جدوجهد کی کئی جهتیں هیں، اور برصغیر کی حالیه تاریخ کے مختلف مراحل پر باچاخان کی شخصیت پوری اب وتاب کے ساتھ موجود رهے. انهونے مظلوم اور محروم طبقات کے رهنما کی حیثیت سے بھر پور سیاسي جدوجهد اور قرباني کی لازوال مثالیں قائم کی هیں، انهونے انتهائی کهٹن حالات میں صبر ازما طرز عمل اختیار کی، انهونے انگریزوں کی جیلوں کو آباد کیا، اور قیام پاکستان کے بعد رهنے هی ملک کے زندانوں کے قیدی رهے، وہ ایک قد اور انسان تھے، اور پوری زندگی میں همیشه قدآور رهی رهے لیطف سائیں نے کها که تمام انسان خوب صورت نهی هوتے اور

تمام پرندے ہما نہیں ہوتے بہت کم ایسے لوگ ہوتے ہیں، جن سے بہار کی خوشبو آتی ہے خان عبدالغفار خان ان کم لوگوں میں سے تھے، جن سے مل کر بہار کی خوشبو کا احساس ہوتا ہے »۔

پاکستان پیپلز پارٹی سندھ کے سکرٹری جنرل شفیع محمدی ایڈووکیٹ نے باچا خان کے انتقال پر اپنے تاثرات بیان کرتے ہوئے کہا :

"اس میں کوئی شک نہیں، کہ برصغیر کی آزادی میں باچا خان نے شاندار خدمات انجام دیئے وہ ہمیشہ وقت متحرک اور تاریخ کے شعور سے آگاہ سیاستدان تھے، انہوں نے سرحد کے مخصوص سماجی حالات کیلئے زبردست کام کیا، صوبہ سرحد کے مخصوص سماجی حالات اور قبائلی پس منظر میں ایک روشن خیال سیاستدان کا بھرپور سیاسی تحریکوں کی رہنمائی، کرنا ایک بہت بڑا کارنامہ ہے، باچا خان کے نظریات سے اتفاق کرنا ضروری نہیں مگر ان کے جدوجہد، قربانی اور اصول پر قائم رہنے کے خصوصیت سے کسی کو انکار نہیں ہو سکتا، ہم باچا خان کے پس ماندگان کے دکھ میں برابر کے شریک ہیں، اور ان کی مغفرت، کے لیئے دعا گو ہیں "۔

سندھی بلوچ پشتون فرنٹ کے کنوینر مسٹر ممتاز علی بھٹو نے خان عبدالغفار خان کے انتقال پر اپنے دکھ کا اظہار

کرتے ہوتے کہا کہ :۔

«خان عبدالغفار خان ایک انقلابي مجاهد تھے انھوں نے .
پوری زندگی غریب عوام کی خدمت کے لیئے وقف کردی تھی انھوں نے
عوامی حقوق ،کے لئے بھر پور جد و جهد کی ، میں خان عبدالولی .
خان کے دُکھ میں برابر کا شریک ھوں ، . . .

باچا خان کی مغفرت کے دعاگو ھوں» .

دغه وو دپاکستان سیاسي مشرانو خیالات چې دوئ د بابا
په وفات باندې څرګند کړي وو .

یو بله رساله چې انګریزي ژبه کښې چهاپ شوېده نوم
يې « View Point » دے هغه کښې دا سې لیکلي :

JANUARY 28- 1988

*A giant goes to rest :*
*Editorial*

Eiditor MAZHAR ALi KHAN.

# د B.B.C تبصره

دپښتنو ملي مشر خان عبدالغفار خان د زړه دیوې اوږدې ناروغۍ له امله د ۹۸ کلنۍ په عمر کښې په حق ورسیدو، دې دبرطانوي سامراج او استعمار په خلاف دهند دنیمې وچې د خپلواکۍ غوښتونکي مبارزې له مشرانو څخه ؤ، له همدې امله دهند وزیر اعظم راجیوګاندهي دده د درناوي څرګندولو په خاطر پیښور ته رسید لے،

خان عبدالغفار خان چې څه نه څه اتړ میاشتې دکوما (بې هوشۍ) په حالت کښې تیرې کړې وې، دچهارشنبې په لومړۍ شپې کښې دپیښور په یوه روغتون کښې وفات شو، له مرګ سره دده اوږده مبارزه هم سرته ورسیده. ، خان عبدالغفار خان د ټولنیزو اصلاحاتو ټینګ او کلک ملګرے او طرفدار وو، دبرطانیه څخه دخپلواکۍ د تر لاسه کولو له پاره یې دپاکستان شمال لویدیځ ایالت ته دمبارزو لارښوونه په غاړه درلوده ، دده ان دپاکستان دهیواد دجوړیدو وروسته هم د پښتنو دیوه خپلواکۍ د جوړیدلو له پاره خپلې مبارزې ته

دوام ورکړو، د هند د تقسیم نه وروستو خان عبدالغفارخان زیاته موده په پاکستان کښې بندي وُ، او یا افغانستان کښې، اوسیده، دخان عبدالغفار خان وروستۍ هیله داوه، چې دافغانستان په جلال اباد کښې خاورو ته وسپارلے شي.

دده مړیُ په یوه تابوت دپېښور کنټیکم پارک کښې ایښودے شي، چې خلک یې اخري دیدار وکړي، او خپله درناوے ورته څرګنده کړي، په زرګونو خلکُ دې ځاے ته راغلي دي هم اهم سیاسي شخصیت چې تراوسه یې خان عبدالغفار خان دویں په مراسمو کښې خپله درناوي کړیده، هغوئ کښې دهندوستان وزیراعظم راجیوګاندهي دے، ده خپل د سویلړن سفر وځنډاوو چې درناوي له پاره پېښور ته لاړ شي. دغه اول ځل دے، چې وزیرعظم راجیوګاندهي پاکستان ته لاړو، خو دغه سفر خصوصي دے.

تاکل شوې ده چې د پنجشنبې په ورځ له غرمې وروسته په پېښور کښې دخان عبدالغفارخان د فاتحه اخیستلو مراسم سرته ورسي، دپاکستان صدر جنرال ضیاءالحق دخان عبدالغفارخان په مړینه خپله خواشیني څرګنده کړه، او دے یې یو داسې شخصیت وباله، چې ټول ژوندیې دخدمت له پاره وقف، کړے وُ، او تر اخره پورې په خپلو اصلو ټینګ ولاړ وُ.

خان عبدالغفارخان نږدې ټول عمر د مرکزي حکومت د

قدرت خلاف په مبارزه کښې تیر کړ، لومړي د برطانیه د استعماري قدرت خلاف او وروسته د پاکستان خلاف هم له دې امله ځوځوځله بندي کړے شو، د دے ۱۹۱۹ کښې د اول ځل د پاره د برطانوي حکومت د مخالفت په وجه بندي شو، ده د شمال لویدیځ صوبې څخه د برطانوي استعمار خلاف خپله مبارزه پیل کړه، چې وروسته د هند د کانګرس ګوند سره ملګرے شو، د ده تنظیم خدای خدمتګار د پرنګي د هند نه د لرے کولو د پاره د کانګرس ګوند سره لاس یو کړو، او کانګرس په هند کښې ضد پرنګي یو اعزمت ګوند و، د مسلم لیګ ته همیشه د شک په نظر کتل، د دے په داسې حال کښې چې یو معتقید مسلمان و، او له یې د هند د ویش او بیا د پښتنو د پاکستان سره د یو ځای کیدیو هم مخالفت وکړو، ده ویل چې ځما مبارزت یې هدف د هند آزادي په تیره بیا د پښتنو خلکو آزادي وه،

د دې سیاست په وجه پاکستان ۱۹٤۸ کښې خدا ئ ـ خدمتګارۍ باندے پابندي ولګوله، ده خپلې مبارزتې ته دوام ورکړو، د خپلو خلکو د آزادۍ د پاره یې هلې ځلې کولې، د ۱۹٦۵ کښې افغانستان ته لاړو، ځوځله پاکستان ته ستون شو، خوخپل زیات وخت یې د افغانستان د جلال آباد په ښار کښې تیر کړو.

په پاکستان کښې د پښتنو خلکو د خودمختيارۍ د پاره

خان عبدالغفار خان نه ستړې کېدونکې مبارزه کوله، چې

د يو ملي پيژندګلوۍ د ترلاسه کولو له پاره لاره جوړه

کړي دوی ته خود مختيارې وګټي .

# دآل انډیا ریډیو ما ښام په شپږ بجې تبصره

خان عبدالغفار خان (باچاخان) د چهارشنبې دو رځې په سهر په پېښور کښې په حق ورسیده، دوئ چې اتلهٔ نوي (۹۸) کاله عمر یې درلوده، د سختې ناروغۍ په وجه په تکلیفوُ دخوُ میاشتو راهیسې په کوما (بې هوښۍ) په حالت کښې وُ، دغه بندو بست په پام کښې دے، چې دوئ جلال آباد افغانستان کښې خاورو ته وسپاري.

د هند حکومت د دې له پاره چې خان عبدالغفار خان، (باچاخان) ته خپله درناوی څرګند کړي پنځه (۵) ورځې یعنې دن ورځې نه ټول هیواد کښې دوبیر (ماتم) وخت اعلان کوي، د هند بیرغ یعنې جهنډه به نیم ځوړند وي، او ټولې حکومتي رسمي خوشحالۍ به بندې وي، دمرکزي حکومت ټولې څانګې به د جمعې په ورځ چې د دوئ خاورو ته دسپارلو ورځ ده بندې وي.

خان عبدالغفار خان (باچا خان) په ۱۸۹۰ کال کښې وزیږیدو

په ۱۹۱۹ کال کښې په هغو نا آرامیو کښې چې دګاندهي جي لخوا د انګلستان پرضد پیل شوے وُ، ګډون وکړو، او په دې ډولې دهند دملت سرهٔ اړیکي ټینګې کړې، خان عبدلغفار خان دمتحدهٔ برصغیر او اولسي انصاف دپاره کار کاوه، او دهند په ویش خوابښنې وُ، دخپل ټول ژوند کښې دهند او هندوستانیانو دپارهٔ محبت درلوده. تیر کال دوئ دبهارت رتنا په نامه د هند دهیواد ډېره لوړه جایزه وګټله، دهند صدر اونائب صدر او دهند وزیراعظم ددوئ په مرګ خپله خواشیني څرګنده کړه، دهند دجمهور رئیس لخوا د تعزیت په پیغام کښې وویئل:

{ خان عبدلغفار خان (باچاخان) زموږ دوخت یوستر شخصیت دے دبرصغیر د خپلواکۍ دپارهٔ یې سختې هلې ځلې کړیدي }.

دهند نائب صدر وویئل: دے به د راتلونکي نسل لپارهٔ اغیزمن وي او هغه به یا د ولري.

بناغلي راجیو ګاندهي وویئل: هغه ورو سره تن چې د هند په خپلواکۍ کښې یې ستر رول لوبولے دے، له نړۍ نه لاړو، ددوئ دعدم تشدد پیغام به دهمیشه دپارهٔ پاتې وي.

دجمو او کشمیر وزیرعلی ډاکټر فاروق عبدالله هم د خواخوږۍ دپیغام په ترڅ کښې یې باچا خان ستائیلے دے.

دهند وزیراعظم سویلان ته خپل سفر وځنډاوه. او

پېښور تر سفر وکړو ، چې د باچا خان اخري ديدار وکړي،
او خپله در ناوې ورته څرګنده کړي . د ده سره درانه درانه
وزيران او د دوئ ميرمن هم تر پېښوره پورې ملګرې وو.

# باچا خان دلویو خلکو

# په نظر کښې

(۱) د ترکي نامتو سیاسي مشره او لیکواله محترمه خالدهٔ ادیبه خانم چې د هند په دوره راغله نو د باچا خان سره یې هم ملاقات وشو، دې د دې ملاقات تاثرات پخپل کتاب کښې بیان کړي او باچا خان ته یې خراج تحسین ورکړې دي. لیکي: زه چې د پښتنو د دغه قائد او مشر یو جوان مرد لیدو دے، او د دې نه علاوه بېشکه یو آزاد روح او ضمیر مالک هم دے. د دے یو رښتونے او حقیقي مسلمان دے، د باچا خان خدائي خدمتګار غورځنګ په اصولو کښې اسلامي فلسفه دوراېه جوړه ده، د دوئ اول قسم د الله تعالیٰ لوئ ذات دے، او د خدائې د احکاماتو د تعبیدارۍ تعلیم پکښې موندے شي، بې شکه چې په دې اصولو باندې د باچا خان ټینګ ولاړوالي په وجه د دوئ نه یو لوئ عظیم شخصیت جوړ دے.

کتاب: ژبه اردو «تحریک آزادي اور باچا خان» لیکونکے: «فارغ بخاري».

(۲) مهاتما گاندهي جي د باچاخان متعلق خپله رائې داسې څرګنده وي:

خان عبدالغفار خان يو پوخ مسلمان دے، ماوارده کښې د قيام په دوران کښې ما يوځلے هم نه دے ليدلے، چې ده لمونځ قضا کړے وي، دے دلوئ زړه او سترګې حوصيلې خاوند دے، خدائي خدمتګاران د ده سره بې کچه مينه او محبت لري، چې ده ته فخر افغان وائي، په دې باندې خدمتګار ډير خوشحاليږي. «فارغ بخاري کتاب»

(۳) پنډت جواهر لال نهرو وائي:-

صوبه سرحد د باچاخان په شکل کښې يو لوئ انسان پيدا کړے دے. داسې بنيادم چې ټول هند په فخر کوي دوئ سرحد صوبه د پس ماندګۍ نه راوړچانې کړه، د خپلو قربانو په وجه بې نه صرف صوبه سرحد بلکې د ټول هند سر د فخر نه اوچت کړو، دوئ د خدائي خدمتګار فوج جوړ کړو، د دې په وجه بې يو عظيم کارنامه وکړه، عدد تشدد يو لوئ . . . دے چې صرف پياوړي او بناغلي انسانان بې استعمالولئ شي، د سرحد غيور پښتنو د باچاخان تر مشرۍ لاندې د غه . . . ډير په ښه ادره سره خپل کړے دے، (فارغ بخاري کتاب).

(٤) د متحده هندوستان نامتو قوم پرست مشر جناب-

ډاکټر سید محمود داسې فرمائي:

(پښتنو د آزادۍ د پاره ګوله خوړلي دي مګر په شا شوي نه دي، دغه جذبه د سرحد په پښتنو کښې د باچاخان په وجه پیدا شوې ده، د سرحد پښتنو د قربانو نتیجه ده، چې نن یې ټول هند او مسلمانان د خپل ځان ساتونکي ګڼي، او د سرحد پښتانه په دې فخر او ویاړ کوي، د دوئ په وجه په هندوستان کښې د قوم پرستۍ غلبه شوه هم دوئ خوره کړه، د دې قوم پرستۍ باني او تادا او ابښود ونکي هم دوئ دي، دغه کار د ټولو نه اول شیرشاه سوري کړے وُ، شیرشاه د قوم پرستۍ جذبه دومره پیاوړې کړې او خوره کړې وه، چې د دې اعتراف د پرنګیانو مورخین هم کوي.

دغه شیرشاه پښتون وُ، او د دوهم شیرشاه خان عبدالغفار خان دے چې به دغه کار سر ته رسوي (کتاب فاتح بخاری صاحب).

(۵) مهادیو ډیسائي خپل کتاب (خدائي خدمتګار) د باچاخان متعلق داسې لیکي: ځما په نیز خان عبدالغفار خان کښې له ټولو نه لوئ شی دده روحانیت دے، او ر ښتونې اسلامي جذبه ده، یعني لوئ ځښتن ته سر ټیټول، ما له ټ وند کښې د ډېرو مسلمانانو ملګرتیا فخر حاصل شوے دے، خو چې د فولادو په څیر مضبوط او مستقل مزاج دي، چې هندوانو او مسلمانانو د اتحاد د پاره د هرشي قربانۍ ته

چمتو دي، مګر د دې ټولو باوجود تر ننه ورځې پورې.
داسې شخص ځما په نظر نه راغئ او نه مې ولیدو.

چې غیرمعمولي پاکیزه او سخته زاهدانه ژوند او نازک
جذباتو لحاظ او کامل آیمان په لحاظ چې د خان عبدالغفارخان نه
دې زیات اویا د ده برابر وي.

# Hintergrund

AFGHANISTAN.

## Blutbad bei Beerdigung Ghaffars

**Peschawar** (dpa). Zwei Autobomben haben gestern während der Beisetzungsfeierlichkeiten für den indischen Freiheitskämpfer Khan Abdul Ghaffar Khan in der pakistanischen Stadt Jalalabad ein Blutbad mit mindestens 15 Toten und über 40 Verletzten angerichtet. Die Bomben wurden im Abstand von 15 Minuten auf einem Parkplatz gezündet, der extra für die aus Tausenden von Fahrzeugen bestehende Wagenkolonne des Trauerzugs eingerichtet worden war.

Ein schier endloser Zug von Trauergästen hatte zuvor die aus diesem Anlaß eigens geöffnete Grenze am Khyber-Paß zwischen Pakistan und Afghanistan überquert. Viele Personenwagen, Busse und Lastwagen folgten dem blumengeschmückten Sarg Ghaffar Khans, der am vergangenen Mittwoch nach langer Krankheit 98jährig in der pakistanischen Grenzstadt Peschawar verstorben war. Auf eigenen Wunsch wurde der legendäre Held des indischen Unabhängigkeitskampfes im Garten seines Hauses in Jalalabad beigesetzt, wo er fünf Jahre im Exil gelebt hatte.

Durch die Explosionen wurden acht Busse vollständig zerstört, viele andere Fahrzeuge schwer beschädigt. Tausende von Trauergästen flohen in Panik.

## د خان عبد الغفار خان په جنازه کې خونړۍ پېښه:

پېښور- دوه موټري بمي چاودنې پرون د هند د آزادۍ د اتل د جنازې د مراسمو په دوران کې وشوې. چې دغه پېښه د جلال آباد په ښار کې را منځ ته شوه، په دې خونړۍ پېښه کې ۱۵ مړه او تقریباً تر ۴۰ کسانو پورې زخمیان شول. دغه بمونه د ۱۵ دقیقو په وقفه د موټرو په تم ځای کې وچاودول شول چې د جنازې د ګډون کونکو لپاره خاص د موټرو درولو لپاره جوړ شوی او په ګوته شوی وو. چې د غمجنو او ویرجنو خلکو په زرګونه موټرونه هلته ولاړ وو.

Persönliches 20.1.1988



**Abdul Ghaffar Khan** (98/ Foto), in Indien als Held verehrter Freiheitskämpfer und Weggefährte von **Mahatma Gandhi**, ist in der pakistanischen Grenzstadt Peschawar gestorben. Die indische Regierung ordnete fünftägige Staatstrauer an. Premierminister **Rajiv Gandhi** unterbrach eine Schweden-Reise, um dem Toten die Ehre zu erweisen. Damit besuchte zum ersten Mal seit 28 Jahren ein indischer Premier Pakistan.

Ghaffar Khan, der für die Freiheit 28 Jahre im Gefängnis saß, war für viele Inder ein Symbol der indischen Tragödie: Er stritt 27 Jahre lang zusammen mit Gandhi und Nehru gewaltlos für die Unabhängigkeit. Nach der Teilung Indiens 1947 durch die Briten aber zog er sich entsetzt und angewidert von dem Blutbad nach Peschawar zurück, nur um dort von den neuen Moslem-Herrschern als „Hindu-Agent" verfolgt zu werden. Denn der gläubige Moslem lehnte einen Moslem-Staat ab. Die Einheit Indiens war ihm wichtiger.

## د یو بل جرمني اخبار تبصره

*عبد الغفار خان ۹۸ فوټو:*

هندوستان کې ده ته د آزادۍ د یو اتل حیثیت حاصل دی. دی له ګاندهي جي سره د آزادۍ د لارې کلک ملګری وو. د پاکستان سرحدي ښار پېښور کې په حق ورسېدو. د هند حکومت د پينځو ورځو ماتم او وير اعلان کړو. د هند وزير اعظم راجيو ګاندهي سويډن ته خپل سفر وځنډاوه تر څو مرحوم ته عقيدت پېش کړي او احترام ورته وړاندې کړي. چې همدا په ۲۸ کالو کې د هند د وزير اعظم پاکستان ته لومړنی سفر و.

غفار خان چې د آزادۍ لپاره ۲۸ کاله په جېلونو کې تېر کړل د هند د خلکو لپاره دی د هند د آزادۍ د غيمزې يو علامت او د سمبول په شان و. ده د ګاندهي جي او نهرو سره په ګډه د آزادۍ

لپاره ۲۷ کاله مبارزه وکړه چې
د عدم تشدد په بنسټ ولاړه وه.
خان صېب د ۱۹۴۷ د خوني
پرنګي هند د پلانيزه تقسيم نه
پس غمجن او پرېشانه پېښور ته
لاړو. هلته د نوو پاکستاني
مسلمانانو لخوا د هندو اېجنټ
له تور سره مخامخ و.
ده د مذهب په بنسټ د مسلمان
رياست "پاکستان" مخالفت
کولو. ده ته متحده هند په ډېر
ارزښت قايل و.

THE PUNJAB Assembly has set no laudable precedent by being the only legislature not to condole the death of Khan Abdul Ghaffar Khan, the leading freedom-fighter of our times. That it did not offer 'Fateha' for the departed soul must be regretted by every sane inhabitant of the Punjab, particularly since the decision was taken by those who do not tire of exploiting the name of Islam. Nor can one ignore the fact that the MNAs who opposed offering of Fateha in the National Assembly belonged to this province. The odd couple included Mst. Nisar Fatima of the Jamaat-e-Islami, whose founder not only opposed the establishment of Pakistan but also used rude terms for both Pakistan and its Founder. Nevertheless, the death of Khan Abdul Ghaffar Khan was mourned by the people in the Punjab belonging to various walks of life and all age-groups. Hundreds of Punjabis travelled to Peshawar and Jalalabad to pay homage to Bacha Khan, including many who did not agree with his political views. One can recall that the Jamaat Islami's hawks had acted in a similar way after the execution of the late Prime Minister Z.A. Bhutto. The Punjab Assembly members should rectify their mistake and not keep themselves away from condoling the death of the great political leader whose contribution to the freedom struggle cannot be denied even by his worst enemies.

**January 28, 1988, VIEWPOINT**

# د ګاندهي جي د مبارزې ملګرى وفات شو

*باچا خان د هند د غمیزې یو سمبول:*

پېښور د جنوري په شلم د براعظم هند د آزادۍ یو لوى مبارز له لاسه ورکړ. د ګاندهي جي د مرګ څلوېښت کالنۍ ته څو ورځې لا پاتې وې چې د پاکستان په سرحدي ښار پېښور کې د ګاندهي جي ښه تکړه، باوري او پياوړى ملګري د ۹۸ کالو په عمر کې وفات شو.

دى د هند د آزادۍ پلار ګاندهي جي سره اوږه په اوږه د هند د آزادۍ مبارز وو. يو پياوړى او اعتباري ملګرى وو. د مسلمان خان عبد الغفار خان مرګ په هند کې د وير، ماتم، غم او خفګان فضا جوړه کړه. دا ځکه چې ده د هند د آزادۍ لپاره نه سترې کېدونکې او نه پخلا کېدونکې مبارزه کړې وه چې د عدم تشدد په بنسټ ولاړه وه. د افغانستان سره د سرحد د لګېدو له کبله دوى ده ته سرحدي ګاندهي هم وايه دې لوى پښتون ته ډېره ګروهه (عقيده) لرله دوى يې عزت او احترام کولو ده ته يې د هند د آزادۍ په وجه د يو اتل (Hero) په سترګه کتل.

هم دغه وجه وه چې هندي وزير اعظم راجيوګاندهي د سويډن له ستهاک هوم څخه نېغ په نېغه پيښور ته لاړه هلته يې ډېر وخت دده په درناوي کې تېر کړ راجيوګاندهي وروستنى درناوى، مينه او احترام پر ځاى کړل چې د وفات شوي اتل وروستنى ديدن وکړي.

دغه په ۲۸ کالو کې د هند د وزير اعظم پاکستان ته لومړنى سفر او تګ وو.

خان عبد الغفار خان چې د خپل ژوند ۲۸ کاله يې د آزادۍ لپاره په جېل کې تېر کړي وو، يعنې د خپل ژوند درېيمه برخه. هم دغه وجه

ده چې د هند د خلکو لپاره دی یو سمبول او ورسره یوه غمیزه هم وه.
خان عبد الغفار خان ۲۷ کاله ګډ د هند د آزادۍ لپاره د ګاندهي جي او جواهر لعل نهرو سره څنګ په څنګ مبارزه وکړه د دوی مبارزه د عدم تشدد په بنسټ ولاړه وه مګر دغه مبارزه د هند د تقسیم د غم لړلې مرحلې نه تېره شوه تر څو چې هند په ۱۹۴۷ کې وویشل شو دی خپل سرحدي ښار پېښور ته چې د افغانستان سره جوخت دی لاړو.
د اسلام په نوم جوړ شوی پاکستان د حکمرانانو د زور، ظلم او ناروا چلن سره مخامخ شو دوی هم پسې واخیست. سرحدي ګاندهي ۱۴ کاله په پاکستاني جېلونو کې بندي پاتې شو ده حکمران جماعت مسلم لیګ کې د شمولیت نه انکار وکړو. هم دغه وجه وه چې په ۱۹۵۱ کې یې دی تر دې تور لاندې بندي کړ چې خلک لمسوي تر ټولو سخت جېل ته یې واچاوه چې ټول درې کاله وو.
هغه سړی چې ۱۹۳۴ کې د کانګرس ګوند صدارت نه پرې انکاري شوی وو د ده الفاظ یې داسې څرګند کړي: چې زه یو سپاهي یم هم دغسې به مرم مګر پاکستاني حکمرانانو دی غدار او د هندوانو ایجنټ وباله. دی سره له دې چې یو ښه دینداره مسلمان و د مذهب په بنسټ له جوړ ریاست پاکستان څخه مخالف وو. ددې باوجود ۱۹۴۷ نه پس ده د پاکستان تابعیت قبول کړو.
تر ۱۹۶۴ پورې په پاکستاني جېلونو کې پاتې شو چې په پښتنو کې دی د ټینګ عزم او خپلې خبرې نه د نه اوړېدونکي په نوم مشهور شو همدا اراده او عزم و چې دی یې بیا، بیا جېل ته بوتلو.
ددې نه پس افغانستان لاړو چې دغه جلا وطني یې خپل خان ته خوښه کړې وه چې په ۱۹۷۲ کې سرحدي پښتنو صوبې ته بېرته راغی.
*د آزادۍ د هڅو برخه یې داسې را نغښوو:*
دده زوی خان عبد الولي خان ددې باوجود چې د حزب مخالف ډلې

مشري په غاړه لري د نيشنل عوامي گوند مشر هم دی. د پاکستان حکمران جنرل ضياء الحق په دې مېنځ کې خان عبد الغفار خان ته د محبِ وطن ويلو باوجود يې نورو صوبو ته د هغه په تگ بِاندې بنديز لگولی دی همدا لامل و چې په ۱۹۷۸ کې بېرته افغانستان ته لاړو او په ۱۹۸۲ کې بيا راغلو او تر پايه په مخالف لوري کې پاتې شو. د خپل وطن حکمرانان دوی ته په ښه سترگه نه گوري او له پامه يې غورځوي. مگر ددې په مقابله کې په هند کې ورته ډېر احترام او درناوی کېږي. په ۱۹۶۹ کې د گاندهي جي د سلم تلين په موقع دوی ته د نهرو د امن انعام ورکړی شو.

دی د کانگرس د سل کلن کېدو په موقع په ۱۹۸۵ کې د مشر مېلمه حيثيت لرلو. چې په بمبۍ ښار کې وو. چې څه وخت تېر کال په ده يوې ناڅاپي ناروغۍ حمله وکړه او په هندوستان روغتون کې د بې هوشۍ په حالت کې پروت وو. هندوستاني مېډيا دده د نارغۍ هره شېبه ډېره په اندېښنه او خفگان سره څار له او هندي وگړي يې خبر ساتل.

په هند کې د آزادۍ اتل خان عبد الغفار خان ته چې هندوان ورته بادشاه خان وايي او د بادشاه درجه ورکوي دوی د گاندهي جي، نهرو، سردار پټيل او يا د چرن سنگهـ غوندې کسانو په کتار کې شمېري.

د اونۍ په پينځمه ورځ ځينو کسانو په مات زړه وويل چې اوس صرف له اتلانو نه يو پاتې شو چې هغه د هند سابقه وزير اعظم ۹۲ کلن موراجي ډيسائي دی.

*حواله:*

**Frankfurt Allgemeine Zeithung: Germany.**

# Kampfgefährte Gandhis gestorben

## Ghaffar Khan – ein Symbol der indischen Tragödie

PESHAWAR, 20. Januar (dpa). Der indische Subkontinent hat einen seiner bedeutendsten Freiheitskämpfer verloren. Nur wenige Tage vor dem 40. Todestag des Mahatma Gandhi starb am Mittwoch in der pakistanischen Grenzstadt Peshawar im hohen Alter von 98 Jahren einer der treuesten Mitstreiter des Vaters der indischen Unabhängigkeit.

Der Tod des Muslims Khan Abdul Ghaffar Khan, der wegen seines unermüdlichen – gewaltlosen – Einsatzes für die Unabhängigkeit eines ungeteilten Subkontinents und seiner Herkunft aus dem Grenzland zu Afghanistan auch „Frontier Gandhi" genannt wurde, löste vor allem in Indien große Trauer aus. Denn hier wurde der riesige Paschtune mit der ungewöhnlich großen Nase als Held verehrt. Ministerpräsident Rajiv Gandhi machte auf dem Weg nach Stockholm am Mittwoch eine mehrstündige Zwischenlandung in Peshawar, um dem Verstorbenen die letzte Ehre zu erweisen. Es war das erste Mal seit 28 Jahren, daß ein indischer Premier das Nachbarland Pakistan besuchte.

Ghaffar Khan, der Mann, der für die Freiheit 28 Jahre – fast ein Drittel seines Lebens – im Gefängnis saß, wurde für viele Inder ein Symbol der indischen Tragödie: Er stritt 27 Jahre lang zusammen mit Gandhi und Nehru gewaltlos für die Unabhängigkeit, zog sich dann – entsetzt und angewidert von dem Blutbad nach der traumatischen Teilung Indiens durch die Briten 1947 – nach Peshawar an der Grenze zu Afghanistan zurück, nur um dort von den neuen Herrschern des neuen Muslim-Staates verfolgt zu werden.

14 Jahre saß „Frontier Gandhi" in pakistanischen Gefängnissen. Er weigerte sich, der regierenden Muslim-Liga beizutreten, und wurde wegen „Volksverhetzung" schon 1951 zu drei Jahren verschärfter Haft verurteilt. Der Mann, der 1934 die Präsidentschaft der Kongreß-Partei mit den Worten abgelehnt hatte: „Ich bin ein Soldat und werde als solcher sterben", wurde von Pakistans Regierenden als „Verräter" und „Hindu-Agent" beschimpft. Denn er, der gläubige Muslim, lehnte einen muslimischen Staat im Grunde ab. Auch wenn er sich nach 1947 dazu bekannte, Staatsbürger Pakistans zu sein. Bis 1964 brachte ihn die bei Paschtunen schon sprichwörtliche Hartnäckigkeit immer wieder ins Gefängnis.

Dann ging er nach Afghanistan ins selbstgewählte Exil. Nach seiner Rückkehr 1972 in die paschtunische Nordwest-Grenzprovinz dauerte die Freiheit nicht lange. Ghaffar Khan, dessen Sohn Wali Khan inzwischen Chef der oppositionellen National Awami Party (Nationale Volkspartei) geworden war, wurde von Staatschef Zia-ul Haq zwar als „Patriot" anerkannt, erhielt jedoch striktes Einreiseverbot für die anderen Provinzen Pakistans. 1978 ging er daraufhin wieder nach Afghanistan, von wo er erst 1982 zurückkehrte, um sich schließlich mehr oder weniger offen der Opposition anzuschließen.

Von den Regierenden des eigenen Landes mißachtet, wurde ihm in Indien nur Verehrung entgegengebracht. 1969,



*Abdul Ghaff[illegible]. KHAN* Foto dpa

zum 100. Geburtstag des Mahatma Gandhi, erhielt er den Nehru-Friedenspreis. Er war Ehrengast bei der 100-Jahr-Feier der Kongreß-Partei 1985 in Bombay. Als er im vergangenen Jahr, nach einem schweren Schlaganfall, in einem indischen Krankenhaus im tiefen Koma lag, verfolgten Indiens Medien seinen Krankheitsverlauf mit ängstlicher Anteilnahme. In Indien wird der Name des Freiheitskämpfers Badshar Khan, des „König Khan", gleichgesetzt mit denen Gandhis, Nehrus, Sadar Patels oder Charan Singhs. Jetzt, meinten manche am Mittwoch wehmütig, bleibe nur noch ein großer Name übrig: der des früheren Premierministers Morarji Desai, der in diesem Jahr 92 Jahre alt wird.

# Bonn dringt auf Annahme des Delors-Pakets

## Genscher vor dem Europäischen Parlament zur deutschen EG-Präsidentschaft

[illegible]RG. 20. Januar. Die [illegible] Schlüsselrolle zu sagte Genscher. Es

# ورته کتلي کتابونه

| کتاب | لیکونکے | ژبه | چاپ ځای |
|---|---|---|---|
| ۱- د پښتنو تاریخ اول جلد | مرحوم قاضي عطاالله خان | پښتو | د مروتو ادبي جرګه سرائے نورنګ - بنوں |
| ۲- مقصود آل مؤمنین | بایزید روښاني، تبصره ډاکټر میرولي خان "محسود" | انګریزي | خیبر پرنټرز سیال انډسټریز اسټیټ کوهاټ روډ |
| ۳- احمد شاه دراني | ډاکټر ګنډه سنګهـ | انګریزي | د افغانستان د علومو اکاډمي ۱۳۴۴ |
| ترجمه | سرمحقق مرستیال نصرالله سوبمن "ملګل" | پښتو | |
| ۴- زما ژوند او جد وجهد | عبد الغفار خان (مرحوم باچاخان) | پښتو | کابل دولتي مطبعه ۱۹۸۳ع |
| ۵- د آزادۍ تلاش | اکبرشاه میا ببدرشی | پښتو | منظور عام پریس پشاور |
| ۶- وزیرستان | لائق شاه درپه خیل، دوړ | پښتو | المطبعة العربية ۲، لیک روډ پراني انارکلي لاهور پاکستان |
| ۷- بنو وزیرستان تاریخ | ګل ایوب خان سیفي | پښتو | |
| ۸- INDINA | LUDWIG ALSDORF | جرمني | DEUTSCHER VERL AG. BERLIN ۱۹۴۰ع |
| ۹- CHINA and RUSSIA The great game. | O. EDMUND CLUBB. | انګریزي | COLUMBIA UNIVERSITY PRESS U.S.A |
| ۱۰- پښتانه د تاریخ په رڼا کښې | سید بهادر شاه ظفر کاکاخیل | پښتو | یونیورسټي بک ایجنسي پېښور |

| کتاب | لیکونکی | ژبه | چاپ ځای |
|---|---|---|---|
| ۱۱- میبن وزیرِ لهجه یعنی مومنز | EVELYN HOWELL | انګریزي | Karachi oxford university press 1979 دویم ځل<br>اول چاپ 1931 = شیمله ګورنمنټ اف انډیا پریس. |
| The VICTOR of MAIWAND -۱۲<br>فاتح میوند | محمد علی<br>Kabul Karta = 4 Afghanistan July = 27 - 1970 | انګریزي | printed in pakistn By. The punjab EDUCATIONAL press Lahore. |
| ۱۳- فقیر ایپي | عبدالحمید ترین | اردو | تاج کمپني لمیټډ کراچي، پاکستان |
| ۱۴- پښتانه او ون یونټ | مرحوم باچا خان | پښتو | پشاور چاپ |
| ۱۵- تحریک آزادی اور باچا خان | فارغ بخاري | اردو | مکشن هاوس ۱۸ دمزنګ روډ لاهور پاکستان |



BAYAZID ANSARI (PIR ROWSHAN)

پير بايزيد روښان د روښاني غورځنگ ملي- مذهبي- ادبي او سياسي
مشر خيالي عكس.



همایون مغل کې د ماتې نه پس د شېر شاه سوري د فوج نه پس په تېښته دی.

**As turbulent as India's past,** the 1,560-mile Ganges churns down a road of history. A canvas (**left**) in the Patna Museum chronicles the flight in 1540 of Humayun, Mogul ruler of northern India. The painting reflects the legend that a faithful water boy ferried the white-turbaned monarch on an air-filled skin across the river to safety, eluding Afghan enemies and a toothy crocodile.



د مغلو شاهان گس اړخ ته همايون جهانگير ښي اړخ ته بابر- اکبر باچا.



د مغلو تیموري کورنی اخری بادشاه ظفرشاه په هند کې.



د هاتهي نه د جلات کار په خلي د مغلو سزاګانې.



پر کال- ۱۸۵۷ کې ناکام پاڅون نه وروسته پرنګیان د پاڅون پلویانو
ته پېښور کې سزاګانې ورکوي او په توپ يې الوزوي.



د بابا يو تصوير پر کال ۱۹۴۲ع کې د جرمني د يو کتاب نه.



ظاهر شاه پغمان کې د شهزاده نادر سره ۱۹۵۰




د امریکې د جاسوسي طیاره چې U-2 پوټو نوم یې وو- اپریل ۱۹۶۰
کې بډه بېره پېښور نه پورته شوه پخواني روس کې را وغورځول شوه.




»Der Schwanz der Geschichte«

Karikatur von Low auf die britischen Weltinteressen, die 1934 von der Pariser Wochenschrift »Lu« übernommen wurde.

د پرنگيانو زمري تر کړۍ لکۍ راتاو کړې



لارد کرزن وایسرای هند

۹۷۹



ښاغلی ولي خان د ANP د یو مشر سره د جلسې په اړه خبرې کوي.

